# دیوان

# شاد محمد خان

رئیس مردان

• مع حواشی و مقدمه

ډاکټر سید عظیم شاه خیال بخاری

نظر ثانی و تصحیح

پروفیسر محمّد نواز طائر

پښتو اکیډیمی پېښور یونیورسټی

١

وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ فَهُوَ حَسْبُهُ

# دیوان




رئیس مردان

# شاد محمد خان

• مع حواشي و مقدمه

ډاکټر سید عظیم شاه خیال بخاری

نظر ثاني و تصحیح

پروفیسر محمد نواز طائر




پښتو اکیډمي پېښور یونیورسټي

# تشکر

پښتو اکیډیمي د نومیالئ مېرمن

## زري سرفراز

د قدردانئ او ښې پېرزوینې تشکر کوي چه د
خان شاد محمد خان دیوان ئې د دے ادارے
په مطبوعاتو کښې شامل کړو او ټول مصارف ئې
هم په خپله برداشت کړل -

---

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم ○

---

د پښتو اکیډیمۍ د قیام غرض وغایت د پښتو ژبې د پښتنو د ادب، ثقافت او تاریخ مطالعه او په دې باندې تحقیق کول دي. دا دې د پښتو اکیډیمۍ د قیام دوه ویرش کاله پوره کیږي. په دې زمانه کښې چه دې ادارې د خپلو اغراضو او مقاصدو د سرته رسولو دپاره کومې اسې ز ې کړې دي هغه د پښتو ژبې او ادب د تاریخ یوه اهمه برخه ګرځیدلې ده. په دې کښې نه یواځې دا چه دلغت سازۍ په کار کښې اهم پیش رفت شوې دې بلکه د ادب او تحقیق نورډیر موضوعات هم چیړلي شوي دي او ډیر مستند کتابونه میدان ته راویستې شوي دي. په دا سې مستندو کتابونو کښې د جدید او قدیم ادب نادرې نمونې هم شته او د پښتنې فوکلور خونډ ناکې مجموعې هم. په قدیمي ادب کښې چه اصطلاحًا ورته کلاسیکي ادب وئیلې شي دا سې ګڼړې قلمي نسخې راجمع کړې شوي دي چه یا خو ورکې وې او یا بیا ډیرې کمیابې وې. دغسې څه قلمي نسخې منظومې او نثري پښتو اکیډیمي وخت په وخت چاپ کړې هم دي او اُنسده به ئې هم که خیر وي د پروګرام مطابق چاپ کوي.

د پښتو د دا سې کلاسیکي ادب د اشاعتي سلسلې یو اهم کتاب د مردان د شاد محمد خان مرحوم دادیوان هم دې. خان شاد محمد خان د دیارلسمې صدۍ هجري د اول سر یو ډیر سپیځلي شاعر وو. چه هم ئې د شعر وسخن فن زده وو او هم د شاعرانو او عالمانو مربي او قدردان وو او ځکه به ئې هر وخت په ډیره کښې د علاقې نوموړي سخنوران شاعران او عالمان راجمع وو. بحثونه مباحثې او علمي خبرې اترې به هم کیدې او د سخنورۍ او ذوق سخن د باغ آبیاري به هم کیده.

د خان شاد محمد خان د دیوان بحقله هسې خومونږه ډیر څه اوریدلي وو او

داهم راته معلومه وه چه داکبرپوره یو ستر شاعر او لوئے عالم مولوی محمد رفیق هم دهغوئ د مخه خپل یو ضخیم دیوان د دیوان شمس الفلک په نوم مدون کړے وو چه یوه قلمی نسخه ئے لا اوس هم د اسلامیه کالج پیښور په اورنټل لائبریرئ کښے محفوظه ده -

هرکله چه د ابتدا راسے د اکیډیمی تکل د داسے نوادراتو د راجمع کولو او محفوظولو پاتے شوے دے نو په دے لړ کښے څئے مائکرو فلمونه او مخطوطے د بهرنو ملکونو د کتب خانو نه هم حاصلے کړے شوی دی - په دے کښے په خصوصیت سره د انډیا آفس او برټش میوزم د هغه قلمی نسخو او قلمی کتابونو نقول دی کوم چه اوس د اکیډیمی په کتب خانه کښے محفوظ دی - دغسے څئے قلمی کتابونه چه ډیر کمیاب وو او د څنو علم دوسته کسانو سره د هغوی د خاندانونو په ذاتی کتب خانو کښے محفوظ وو ، اکیډیمی په ډیر څیکړخون د دغه کتابونو د نقل د حاصلولو کوشش اوکړو او د داسے څنو کتابونو په نقل حاصلولو کښے ورته کامیابی حاصله شوه - د دے قسم نوادراتو په لړ کښے یوه نسخه د مرحوم شاد محمد خان منظومه معراجنامه چه د معارج النبوة ترجمه ده هم شامله ده - دغه شان نوش بختانه پښتو اکیډیمی ته د دوو داسے اهمو کتابونو په لاس راتلو موقعه حاصله شوه چه د وارړه دیو نوموړی پښتون مشر او ستر شاعر تخلیقات دی -

د خان شاد محمد خان د دیوان د اشاعت خبره داسے منځ ته راغله چه په یوه موقعه د درنے میرمن **بیگم زری سرفراز خانے** سره د اکیډیمی په حقله او په څنو نورو موضوعاتو زما څه خبرے اترے کیدے چه په دے کښے هغوئ پخپله د مرحوم خان د دیوان ذکر شروع کړو - او بیائے ماته اوویل چه که چرے اکیډیمی د دے کتاب د چاپ کولو ذمه اخلی نو نۀ یوا ځے داچه د دغه دیوان فوټوسټیټ نقل به هغوئ اکیډیمی ته حواله کړی بلکه په دے کتاب ' اند ے چه هرڅومره خرڅ راځی د هغې بندوبست به هم د خپله طرفه اوکړی - زۀ د هغوئ په دے پیشکش بے لحده ډیر خوشحاله شوم او دا مے یقینًا چه خپل یو اعزاز اوګڼړو چه محترمے

بیگم صاحبے دپښتو اکیډیمی سره دا سے د مهربانئ او شفقت اظهار اوکړو۔ ما
هم هغه وخت دهغوئ دغه پیشکش قبول کړو او څهٔ وخت چه رخصتیدو نو
هغوئ خپل سیکرټری ته حکم اوکړو چه ددغه کتاب فوټوسټیټ نقل د سے
په ورځ دوه کښے اکیډیمی ته اورسولے شی ۔ هم دغسے او شوه دکتاب فوټوسټیټ
نقل اکیډیمی ته را اورسید و او مونږ هر سے دپروګرام مطابق کار شروع کړو ۔

زهٔ د دوؤ نومورو محققینو ښاغلی ډاکټر سیّد عظیم شاه خیال بخاری او ښاغلی
قاضی عبد الحلیم اثر افغانی شکریه اداکوم چه هغوئ زمونږ په دعوت ددے
کتاب په حواشی لیکلو او په دے باندے دعلمی، ادبی او تاریخی نقطه نظره ډېر ډېرو
علمی او تحقیقی تمهیدی مقالو لیکلو په کار کښے زمونږ سره لاس اوکړو ۔

دپښتونخوا په مخیّر و خلقو کښے دمیرمن بیګم زری سرفراز نوم د مرچا سره
وړاندے ذکر دے چه هغوئ نهٔ یواځے دا چه د ولسی ژوند په ډیرو قومی فلاحی
کارونو کښے دلچسپی اخلی او مالی امداد هم ورسره کوی بلکه د علمی او ادبی دنیا سره
هم خپل ژور تعلق او مینه ساتی ۔ بیا په خصوصیت سره چه دپښتو ژبے او پښتوادب
سره دهغوئ کومه بے لجه مینه ده هغه هرچا ته په ښهٔ شان سره معلومه ده
دا هم د ژبے او ادب سره دهغوئ ددے مینے اظهار وو چه هغوئ دخان شاد محمد خان
ددیوان داشاعت دپاره دپښتو اکیډیمی سره رابطه قائمه کړه او دا اداره
ئے ددے جوګه کړه چه هم دهغوئ په مالی اعانت ددے دیوان دشائع کولو
تابیا اوکړی ۔

زهٔ دخپل طرفه او دپښتواکیډیمی د طرفه دمیرمن بیګم زری سرفراز ددے
په زړهٔ پورے پیرزوینے که هر څومره تشکر اوکړم نو هُم ئے لږ ۔ ولے دد سے
سره سره زهٔ دا هم توقع لرم چه هغوئ به داکیډیمی سره خپل دا تعلق او مینه
هم دغه شان قائمه ساتی او په علمی او مالی دواړو میدانونو کښے به ددے ادار سے
سره دهمکارئ او سرپرستئ لاس کوی ۔

ذهٔ د پښتو اکېډيمۍ د ځينو ملګرو خصوصاً د مولوي محمد اسحاق ، ميرمن ياسمين پرويز احمد خان ، پېغلې سلمىٰ شاهين ، لطف الله خوشنويس ، قاضي حنيف الله ، کتاب دار سرفراز خان ، و حاجي محمد شفيع ، ښاغلي فدا محمد او ښاغلي محمد انور او نورو ټولو منندوی يم چه دوی د کتاب د اشاعت او پريس سره د رابطې په کار کښې ئې ځيل پوره پوره کوشش کړے دے او دا کتاب ئې د اشاعت تر مرحلې رسولے دے .

وَمَا تَوْفِيقِي إِلَّا بِاللهِ

پروفيسر محمد نواز طائر
ډائرېکټر پښتو اکېډيمي
پېښور يونيورسټي

# مقدمه

## د دیوان خان شاد محمّد خان مرحوم رئیس مردان

دمردان د یو تیر دور دخان، دخپل قام او د اولس رئیس او مشر مرحوم خان شادمحمد خان یوسفزی دیوان چه ماته دحواشی او مقدمے دیکلو دپاره را اوسپارلے شهٔ نو ما دپښتو اکیډمئ ډاکټر صاحب ښاغلی محمد نواز طائرؔ دا پیرزوینه په ډیره مننه قبوله کړه . سره دخپل یو خاص مصروفیته چه ما دا کار په خپل سر اغیشته نو په دے کښے یو دوه پټ مقصد ونه هم لرل . یو خو داچه کیدے شی چه په دے دیوان کښے دمولانا محمد رفیق (مرحوم) د اکبرپورے څهٔ داسے حالات په گوتو راشی ، کوم چه ماته نهٔ دی معلوم دمحمد رفیق استاد څه ذکر خو به وړاندے راشی خو په دے موقع دُومره وئیل ضروری گڼړم چه محمد رفیق استاد دمرحوم خان شادمحمد خان را او بیا د هغوئ دخاندان سره ډیر زور تړون او تعلق لارهٔ .

دویمه خبره داچه مرحوم خان په خپل وخت کښے دیوسفزو د سر یوه درنه ښته وه . نو ممکن ده چه د هغهٔ په کلام کښے دیوسفزوالے بخوانئ پښتو څهٔ خاص الفاظ او څهٔ خصوصیات رامعلوم شی . او دریمه خبره چه د ټولو نه اهمه ده داچه دیوسفزو د تاریخ د "منځنی دور" څهٔ حالات به مے په لاس راشی .

دیوسفزو د اولنی دور حالات خو د پښتو یو ستر مشر غازی حافظ رحمت خان دهغهٔ په خاوره په روهیلکنډ کښے لیکلی او محفوظ کړی وو ، چه دنوی کلی دیو دروند پښتون خان روشن خان په کوشش او زیار ترچاپه رسید لی دی . بلکه په اردو کښے ئے په ښکلی دول ترجمه هم چاپ شوے ده .

په خپلو دے مقاصدو کښے دآخری مقصد وضاحت به دا سے اوکړم چه یوسفزے دپښتنو په قبائلو کښے یو ډیر لوئے مشهور، توریالے، جنګیالے او ننګیالے قام دے او د جنګ او ننګ د تورے او د میړانے د کارنامو نه ډک یو اوږد تاریخ لری. بخوانی وختونه خو یو خوا ته، په دے نیمګړی دوړ کښے ئے دمغلو سکهانو او بیائے د پیرنګیانو په مقابله کښے په ډیره نره او میړانه تورے وهلے او دخپلے آزادئ او خپلواکئ بیرغ ئے تل جګ ساتلے دے. دایوسفزے قام وو چه دهغه لویو لویو طاقتونو او حکمرانانو تل خپل دسر دښمن ګڼړلے او تل په ویره ترهه کښے وسیدلی دی.

زه ډیرے مودے راهسے په دے لټون یم چه دیوسفزو په شاعرانو کښے کوم داسے شاعر د ماضی دوړ کښے د تیر و نه رابرسیره شی چه دکلام نه ئے ددے اولس داسے حالات دتورے میړانے کارنامے او څه داسے د فخر وړ واقعات هم د هیرے دتیرو نه رانړاته را اووځی. او ددے اولس دلوړوالی یو روښن نښان اوګرځی لکه څنګه چه دختکو مشر خوشحال خان ختک خپلے کارنامے په خپل کلیات کښے په داسے ښکلی ډول خوندی کړے او محفوظ کړے دی چه دخپل ځان دخپلو پلرونو نیکونو نه علاوه ددرست ختک قام نامه ئے په درست جهان هسکه کړے ده هم دغه طمع زه دپښتنو نورو قبیلو په حقله هم لرم ــ او په هم دغه طمع ماوے په د"مرحوم خان" (رشاد محمد خان) چه نه یوائے دیوسفزو یو درون خان او مشر وو او نه یوائے داچه ډیر علم دوسته او عالم پروړه انسان وو، بلکه بخپله هم یو (لوړاوښه) شاعر وو، نو ضرور به ئے په دیوان کښے دخپل مقصود ګوهر بیا مومم! ــ اګرچه په دے دیوان یا څه بل کوم داسے کتاب دورکے نه راووځی او د یوسفزو او د دغو وختونو ځنے نورو مشرانو به د شهرت او عظمت په هسک لکه دځلانده ستوړو را اوبریښوی.

د"مرحوم" خان دا دیوان هم ډیر اهمیت لری. خو دا اهمیت ئے څه په بل

ډول دے ۔ ما دا دیوان دڅهٔ یک نه آکها هو، په ډیر شوق او مینه دسرنه
تر آخره پورے اولوست نو که چرے ماته نهٔ وے معلومه چه دا د مردان دیو
لوئے خان دیوان دے نو ما به ضرور داګمان کړے وے چه دا دکوم غریب ،
درویش منش او دصوفی طبع شاعر کلام دے ۔ "خان مرحوم" په خپل دیوان کښے
څُنے وخت خو داسے خیالات څرګنـد کړی دی چه داسے ترے ښکاری چه هغه پـه
دښـتیا دځنو ناشونو حالاتو او وجوهاتو له کبـله دخانـئ له دوړه پریوتے وی
اویا نو دا چه هغهٔ پخپله خانـئ او سرداریٔ له لتـه ورکړے وی، او دتصوف
او دزهد تقوی لارے نیولے وی ۔ دا دیوان لکه درحمان بابا ددیوان لوستونکے
په ډیره مغالطه کښے اچوی او دهمدغے مغالطے له کبـله درحمٰن بابا په حقله
رنګ رنګ بے اصله او فرضی قیصے مشهورے شوے دی او دهغهٔ نه ئے "دوهمه ملنګ"
بورکړے دے - همدغه شان که دمرحوم خان دنوم نه "مردان دخان" الفاظ
لرے کړے شی نو دتش دیوان دلوستلو نه همدغه ورانده ذکر شوے مغالطه
پیـدا کیدے شی ۔ ځکه چه دخان مرحوم" په دیوان کښے هیڅ څهٔ داسے شے نشته
چه دخانـئ، شته منئ لوئـئ او دسرداریٔ اظهار ترے اوشی ! دلته خو غریبی
ده، پنج بنا دی او دمذهبی احکامو پابندی ! هو عشقیه شاعری هم پکښے شته
او ښهٔ په مره کیـده ئے عشقیه شاعری هم کړے ده ۔ محض دوعظ وپنـد
نه ئے خپل بیاض نهٔ دے تورکړے، بلکه ښهٔ رنګینه انځرونه هم لری ۔

داسے ښکاری چه "خان مرحوم" درحمٰن بابا لار نیولے ده ۔ ځکه چه قدم په
قدم شعر په شعر پکښے درحمٰن بابا اثر بریښی بلکه ددیوان په شروع کښے ئے هم
درحمٰن بابا په پل ئے قدم ایښے دے ۔ فرمائی چه ؎

ګوره هسے پاک سبحان دے رب زما
چه صاحب دکل جهان دے رب زما

درحمٰن بابا اولنے شعر دے چه ؎

گوره څنګه کردګار دے رب زما
چه صاحب د کل اختیار دے رب زما

یا دا بل شعر چه ؎

شریک نهٔ لری پخپله بادشاهی کښ
بے شریکه بے مکان دے رب زما

رحمن بابا وائی چه ؎

شریک نهٔ لری په خپله بادشاهئی کښے
بے شریکه شهریار دے رب زما

دے نه څرګندیږی چه "خان مرحوم" په شاعرئی باندے درحمن بابا څومره زور اثر دے بیا د دے نه وروستو ئے هم ډیرے غزلے داسے دی چه هغه هم تقریباً درحمن بابا په "زمکه" (یعنے وزن او قافیه ردیف) کښے ویلے شوی دی۔

لکه رحمن بابا وائی ؎

که صورت د محمد نهٔ وے پیدا پیدا کړے به خدائے نهٔ وه دا دُنیا

خان مرحوم وائی ؎

محمد آخر زمان ے دے پیشوا امید شته چه ما به نهٔ کا بے نوا

دے پسے درحمن بابا غزل دے چه ؎

هوښیار مهٔ ګڼړه هوښیار دیٔ دنیا بے وقوف دے وقوف دار دے دنیا

"خان مرحوم" وائی ؎

غلط مهٔ شه په سنګار دے دنیا په دام نهٔ شے ګرفتار دے دُنیا
لکه ناوے د دولئ په پرده پټه ښهٔ او بد وی اظهار دے دُنیا

لږ یا ډیر درحمن بابا نه متاثره دے۔

درحمن بابا نه علاوه د مرحوم شاد محمد خان په دیوان کښے څنے غزلے د حمید مومند په رنګ کښے هم شته۔ خو دحمید ویښته چولے او "سخن سازی"

پکښې نکته - شاعرانه باریکۍ استعارے، کنائے پکښې ډیرے کمے لیدے شي.
ساده باده کلام دے خو داسے ساده چه سل رنګینۍ ترے ځارشه.
دمرحوم خان په دے دیوان کښې یوه عجیبه خبره داده چه که څوک غواړي
نو دغه دیوان په دوه ډُغوڼو پریکړو برخو کښې ویشلے شي.
یوه برخه ئے "مجاز" ده یعنې مجازی عشق معاشقه. معشوقه حُسن او
بنائست وفا، جفا، ګل وبلبل، شمع وپتنګ، زلف ورخسار، خط وخال، سترګے
لب، ساقی وشراب او داسے نورے شمیره خبرے چه مجازی عشق او مینے سره
تعلق لري، اوکومه چه دشرقی شاعرۍ خاصه ده.
او دویمه برخه هغه "غزلے" دي چه حقیقت او پند و وعظ سره تعلق
لري. په دے کښې دخدائے پاک مینه - دشریعت پابندي، نمونځ روژه، زکوٰة
خیرات، پنځ بنا، امرونهي، ښه اخلاق، نیک ژوند وغیره داسے خبرے
دي، کومے چه یوزاهد عابد له دنیا ګوښه نیولے نیک پرهیزګار - صوفي
صافي نیک او صالح وګړي د ژوند عکاسي کوي. غالباً چه دکلام دهمدے برخے
ته ئے اشاره کړے ده.

عارفان به دحیرت ګوتے په خوله کړي
که زما په باریکۍ اوکړي نظر!

لوستونکي به وائي چه دادواړه نوعه شاعري خو داکثرو پښتنو په شاعرۍ
کښې موندے شي. د"خان مرحوم" په دے خصوصیت دځه؟ ــ دخان شاد محمد خان
مرحوم دکلام په دے مجموعه کښې خصوصیت دادے چه دنورو شاعرانو، چه
رحمن بابا غوندے شخصیت هم پکښې شامل دے. په خپلو غزلو کښې دغه
بدنی دواړه نوعه یوبل سره ګډ وډ کړي دي - یعنې هم په یو غزل کښې څنې
شعرونه ئے دیونوع دي او څنې شعرونه دبل نوع! خان مرحوم په خپل
کلام کښې داکمال کړے دے چه په هر یو "غزل" کښې ئے په ټولو شعرونو

دمطلع نه واخلے تر مقطع پورے په یو نیب فقط دیو نوع شعرونه وي‌لي دی. یعنې که یو غزل ئے دعشقیه شاعرۍ دے نو په دے کښے ټول شعرونه د مجازی عشق سره تعلق لری - او بل نوع غزل ئے دسرنه ترآخره پورے دحقیقی مینے او دوعظ وپند په شعرونو مشتمل دے! دغه وجه ده، لکه چه ما وړاندے اووے د "خان مرحوم" دکلام دغه مجموعه په ډیره آسانه په دوؤ غټو برخو ویشلے کیدے شی - دا دواړه برخے دیو دبل نه بیخی مختلف دوه رنګونه لری او هیڅوک به دا نهٔ شی ویلے چه ګونډے دا دهم یو واحد شاعر کلام دے!

په یوه برخه کښے شاعر دیوے مجازی معشوقے یو رښتونے عاشق بریښی چه دهرهر اندام په بناؤسټ ئے سرومال شیندی! د مجازی حسن په صفتونو نهٔ مړیږی - هرهر اندام له ئے بنکلی بنکلی، دمبالغے نه ډک تشبیهات راوړی - په بله برخه کښے شاعر ناڅاپه ارخ بدل کړی - او دلوستونکی په نظر کښے یو داسے زاهد پاکباز، عابد، پرهیزګاره، په خدائے رسول مئین، سخی زړهٔ سواندے، اوږد لاسے دنمونځ روژے دغیره پنځ بنا کلک پابند، یوګوښه‌نشو صوفی صافی غوندے بنکاره شی! چه ګونډے دُنیا او دُدنیا دمال ومتاع او حُسن ورنګینۍ سره هیڅ سریکار نهٔ لری!!

دتصویر دغه دواړه ارخونه یو تربله داسے مخالف دی، لکه اور او اوبهٔ آیا دا اور او اوبهٔ چرے یو ځائے کیدے هم شی؟ آیا په یو انسان کښے دغه دواړه خصوصیات یو ځائے راوړل ممکن دی؟ په ظاهره خوئے جواب په نفی کښے دے - خو نه - دمرحوم شاد محمد خان شاعری هسے ټک بندی نهٔ ده، محض شاعرانه الوت نهٔ دے، محض خیالات او تصورات نهٔ دی، چه دشعر په جامه کښے ئے خوندی کړی دی - دا د مرحوم خان خپل محسوسات تجربات، جذبات او قلبی واردات دی. حه نه الفاظو او وزن کښے ـــ

محفوظ کړي دي - د"خان مرحوم" ژوند دغه دواړه اړخه لري - عجيبه خو
ښکاري ، رئيس هم دے ، د قام اولس مشر هم دے خان هم دے ولے بيا هم

مرا طريق اميري نہيں، فقيری ہے !

ځکه خو هغه په خپل درست کلام کښے ميچرته هم يو خان او يو رئيس نهٔ
ښکاري - بلکه يو عام غريب وګړے ښکاري چه ورځ او شپه په عبادت و
رياضت او په صوم صلوٰة کښے بوخت وي - دنيا دارئ سره هيڅ سرے کار
نهٔ لري -

او بل خوا ــ هغه له خدائے پاک يو داسے زړهٔ ورکړے دے چه په
کومه دُنيا کښے اوسي، له هغې ګوښه کنار نهٔ دے - د خالق کائنات د تخليقاتو
د ښائست او د حسن نه ئے سترګے پټې نهٔ کړے دي ــ هغه به لا څهٔ
بني آدم وي چه خالق کائنات د تخليقاتو د حسن نه به متاثره کيږي نه.
هغه به لا کوم زړهٔ وي چه د هغهٔ "د احسن تقويم" د مجازي حسن پلوشو
ته به وِيلے نهٔ شي ! د"خان مرحوم" په نزد خو دنيوي ښائست يوه زينه
ده چه بني آدم پرے د سماوي ښائست بام ته رسي لکه چه وائي ــ

عشق بنهٔ دے حقيقي که مجازي وي
حقيقت ته نږدے لار ده د مجازه

د دے ديوان په دوه وُ برخو کښے د ويشلے کيدو په لړ کښے ے دا خبره
مخے ته راغله چه د دے ديوان (قلمي نقل) په سر ورق باندے لکه د
رحمٰن بابا د ديوان "دفتر اول" هم ليکلي دي - د دے نه دا برخيره کيږي
چه ګوندے دا ديوان د رحمٰن بابا د ديوان هسے دوه "دفترونه" يا برخے
لري - خو دا ديوان (قلمي نقل) د فلسکيپ سائز کاغذ په دوه وُ سوو او اتهٔ
ديرش (۲۳۸) مخونو خور دے - چه په هر مخ کښے پنځلس کرښے دي (ځکه چه
خطے جلي او ارت ارت ليکلے شوے دے) او په دے کښے دالف نه واخلے تر

ری) پورے ټول ردیفونه راغلی دی - مطلب دا شهٔ چه د دیوان په دے قلمی نقل کښے دویم دفتر نشته - د دے دوه صورتونه کیدے شی یو خو دا چه د دے دیوان دویم دفتر به هم چرته موجود وی - و که دا سے نهٔ وی ( - او غالباً چه دا سے نهٔ ده ) نو بیا د دے دویمه وجه دا کیدے شی چه شاعر (خان مرحوم) د دویم دفتر دلیکلو نیت هم لارهٔ - او یا نو بیا دا چه هغهٔ هم د دے دیوان په دوو برخو کښے ویشل غوښتل -

"خان مرحوم" د دیوان د لوستلو نه آګاهو زما دا خیال وو چه "خـ ت" سرے وو د علاقے رئیس وو، علم پرور هم وو ځکه ځنے ښهٔ ښهٔ عالمان او شاعران به ئے په حجره کښے راجمع وُو - او لکه څنګه چه خټک د ختکی نه رنګ اخلی، د هغهٔ په ذره کښے به هم د شعر ویلو شَـه راولاړه شوے وی او څهٔ ماته ګڼړه شاعری به ئے کړے وی - د حجرے "خان ښهٔ وائے" خلقو چه به د غه شعرونه اوریدلے وی نو د خوشامند وله رویه به ئے "ښهٔ داد" ورله ورکړے وی - او مرحوم شاد محمد خان به په د غو تعریفونو او صفتونو تېروتے وی - او خپله شاعری به ئے په خپل زعم کښے - په ښتیا دا وچتے پائے شاعری ګڼړے او محفوظه کړے وی! — خو چه ما دغه دیوان اولوست نو راڅرګنده شوه چه هسے ورغرے نهٔ دی برابر کړی او د "خانئ" په ذور ئے شهرت نهٔ دے موندلے بلکه دا خو دا سے او چتے پائے کلام دے چه دا د پښتو ادب بد نصیبی ده چه دا لوړ او ښکلے کلام سره د دے چه د دے خاندان تقریباً ټول غړی، ښهٔ شاعران پوهان او تعلیم یافته او ورسره ښهٔ شته من هم وو، تر اوسه پورے په صندوقونو او الماړو کښے خوندی پټ پروت وو -

دا هم عین ممکنه ده چه لکه د دکن د نظام میر عثمان علی خان مرحوم چه شاعری ئے کوله، د ښو ښو شاعرانو نه به ئے اصلاح هم اغیسته

همدغه شان خان شاد محمد خان مرحوم هم دخپل مجلس دښو شاعرانو
خاص طور سره دمولانا محمد رفیق یادا سے نومړو شاعرانو ته اصلاح اخستے
وی - خو په دے درست دیوان کښے دا سے قسم هیڅ ذکرنشته - خو دهغهٔ
په مجلس کښے دمحمد رفیق استاد غوندے لوړ شاعر او عالم موجودګی، چه
خان مرحوم د خاندان دځنو افرادو استاد او اتالیق هم وو - او بیا دا چه
"خان مرحوم" دهغهٔ دعلم او شاعرئ له کبله دهغهٔ بے حده ډیر قدرومنز
هم کاوهٔ ! ددے خبرے ثبوت دے چه محمد رفیق استاد به ضرور په دغه
کلام کښے کوتے وهلے او سر خښے به ئے ورله کړے وی -
خو زما په نزد خان مرحوم ځانګے یو ښهٔ شاعر وو، یو سړے چه پیدائشی
شاعر نهٔ وی هغهٔ په تعلیم وتربیت شاعر کیدے نهٔ شی - شاعری په منځ اوزیار
نهٔ ده - دخدائے په بخښنه ده ! ځکه نو دا سے ښکاری چه خان مرحوم د
محمد رفیق استاد د رفاقت نه اګاهو هم شاعر وو او دا دهغهٔ شاعری او علم
سره مینه وه چه محمد رفیق استاد ئے د اکبر پورے نه راښکلهٔ او په مردان کښے
ئے په استوګنه مجبور کړ !
که داسې څه نهٔ هم وی نو هم "کلام الملوک ملوک الکلام" دیو لوئے خان
دشاعرئ ادب او علم سره مینه هم، ډیرے ستائنے او وقدر وړ ده !
دمولانا محمد رفیق ذکر راغے چه عام طور سره دمحمد رفیق استاد په
نوم مشهور دے، چه دیو شاعر او دعالم په حیثیت ئے خان مرحوم سره
ډیر ژور تعلق وو - ښائی چه یو څو ټکی دهغهٔ په حقله هم اوویلے شی -
محمد رفیق استاد د اکبر پورے اوسیدونکے وو او یو لوئے شاعر او عالم وو -
په خپل جماعت کښے به ئے درس ورکوو - د لرے لرے نه دعلم پتنګان دغے
شمع ځان ته راجمع کړی وو - چه ورته به ئے طالبان وے - بخوا به چه په کوم
جماعت کښے چرته لوئے عالم امام وو نو د لرے لرے نه به طالبان دعلم په طلب

کښے ورته راجمع کیدل - زموږ دکلو اکثر جماعتونه له داسے قسم طالبانو نه ډک وو ! عالمان هم ډیر وو ، د علم شوق هم زیات وو - خو چه دمغربی انداز مدرسے جوړے شوے - نو دجماعت دطالبانو دغه جمع هم خورے شوے - دغه وجه ده ، ډیر نګیانو د دوړ نه آګاهو به په سلو کښے اتیا کسان خوانده وو ، او اوس حال دادے چه په سلو کښے اتیا کسان ان پړه او ناخوانده دی - نو محمد رفیق استاد هم یو داسے لوړ عالم وو - دهغه ډیلے شوے منظوم خطبے به تر اوسه پورے په اخترادینه په جماعتونو کښے لوستے شوے - دا یوه رنګینه او اوږده قصه ده ، چه محمد رفیق استاد د اکبرپورے نه مردان ته څنګه اورسید ، که رنګینی ترے بیرته کړو - نو دا به او وایو چه دا د "خان مرحوم" او دهغه کورنئ شعر وشاعرئ سره تړون او علم پروری وه ، چه محمد رفیق استادئے د اکبرپورے دخاوړے نه داسے ځانته راښکلۀ لکه څونګ چه مقناطیس د اوسپنے ټوټه ځانته راکاږی ! د محمد رفیق استاد کلام چه د مولانائے روم د دیوان شمس تبریز په سمون ئے ورله نوم دیوان "شمس الفلک" ایښے دے ، د اسلامیه کالج پیښور په درنه کتب خانه کښے په قلمی شکل کښے محفوظ دے - ددے نه علاوه دمحمد رفیق اُستاد یو لویه کارنامه د فردوسی د شاهنامے پښتو ترجمه ده دا د پښتو د نوړو ترجمو په شان تشه د نوم ترجمه نۀ ده بلکه د ډیرے اوچتے پائے شاعری ده - دا ترجمه هغهٔ د "خان مرحوم" ( شاد محمد خان ) او د ډیر د هغے وخت د نواب محمد شریف خان په فرمائش کړے ده ! دے سره تړلے هم یوه ډیره عجیبه او حیرت انګیزه قصه بیانیږی - دا قصه ماته مولانا عبد القادر مرحوم کړے وه ، خو ددے د بیان دا موقع نۀ ده ( او بیا دا چه دغه قصه تحقیق طلبه هم ده - ماچه په خیل کلی ( اکبرپوره ) کښے کومه واقعه اوریدلے وه هغه په بل رنګ ده ) دفردوسی شاهنامه په ښپیتو زرو شعرونو

مشتمله ده ، نو ځکه قیاس واڼی چه دغه پښتو ترجمه به ئے هم په ډیرو جلدونو مشتمله وی خو په دے کښے صرف یو جلد دخوشخط قلمی نسخے په شکل کښے دپښتو اکیډیمۍ په کتب خانه کښے پروت دے ! دنورو جلدونو په حقله زما علم نشته - خو دغه یو جلد نه ئے هم څرګندیږی چه ډیره دقدر وړ کارنامه ده - ؏

قیاس کن زګلستانِ من بهار مرا !

متاسفانه د"خان مرحوم" په دے دیوان کښے د محمد رفیق استاد هیڅ ذکر نشته خو دهغوئ دخاندان یو بل خوږ دوست مرحوم محمد اسلم خان کمالی څوک چه د محمد رفیق اُستاد شاګرد هم وو ، دهغه ذکوئے په خپل یو نظم کښے کړے دے په کوم کښے چه هغهٔ دخپل وخت دځنو نابغهٔ وګړو ذکر کړے دے وائی ے

مُلا رفیق غوندے ادیب شاعر لاړله دُنیا

ادبیت دے په ژړا چه ادبا ءنشته دے

او دے سره ئے یو نوټ لیکلے دے چه مولوی محمد رفیق اکبر پوری ثم مردانی ! دخان مرحوم دکورنئ دغه ستر غړے ، خان محمد اسلم خان کمالی بره خانخیل رئیس دمردان دے ( د اسلم خان کمالی داکلام دنن نه څهٔ دیرش کاله مخکښے د"منتخبات کمالی" په نوم چاپ شوے دے )

خان مرحوم (رشاد محمد خان) لکه چه ما وړاندے اووے ډیر عالم فاضل سړے وو - ددے اندازه ددے خبرے نه لګیدے شی چه هغهٔ د "معارج النبوة" غوندے داوچت معیار کتاب دفارسئ نه په پښتو کښے ترجمه کړے ده - "معارج النبوة" په فارسئ ژبه کښے لیکلے شوے دے او سره ددے چه ځنے لوړ محققین (لکه سید سلیمان ندوی) ددے کتاب په مختلفو روایتونو او بیانونو اعتراضونه کړی دی - خو په خپل وخت کښے دغه کتاب ډیر قدروئے

شۀ - او فارسی خوئے دادب په لحاظ اوس هم ډیره داوچت معیار او په ډیره ګرانه ژبه کښے ده ! او یو کتاب چه ځومره په ګرانه او پخوانئ ادبی ژبه کښے وی ترجمه ئے دومره ګرانه وی ! او بیا په تیره تیره د نثر د کتاب ترجمه په نظم کښے کول خو لا ډیر ګران کار دے - د دغے ترجمے نوم "معراج نامه" دے - په پښتو کښے نورے معراج نامے هم لیکلے شوے او چاپ شوے دی. خو دا کتاب ځان له یو بیل مقام لری - رښتیا په ښئۀ وی که د خان شاد محمد خان د اعلمی او ادبی کارنامه هم د هغوئ د دے دیوان په رنګ د شائع کولو ځئۀ تابیا او کړے شی -)

د دے معراج نامے نقل زما دورانئے دے چه د پښتو اکیډیمئ ملکیت دے او د پښتو اکیډیمئ پاک نویس میاں ثناءالدین د اصل قلمی نسخے نه د اکیډیمئ د پاره په کال ۱۹۶۱ء کښے نقل کړے وو - د دغه اصل نسخه د نوموړی محمد رفیق اُستاد د لاس لیک ده چه د کتاب د لیک په آخر کښے د خاتمے دا الفاظ لیکلی دی -

" قد تم من تصانیف لیئق اورنګ جلالت عالی منزلت جناب شاد محمد خان صاحب کثیر المواهب قدوة الخوانین العظام ذوالاکرام رئیس اعظم قریهٔ مردان علاقه یوسفزائی ضلع پشاور والسلام بدست خط فقیر محمد رفیق عفی الله تعالےٰ عنه ولجمیع المومنین بحرمة النبی وآله الامجاد -"

د خاتمے د دے الفاظو نه معلومیږی چه محمد رفیق اُستاد سره د خان شاد محمد خان مرحوم ځومره ډیر قدر وو - خو د یو لاسه نۀ خیژی ځکه لازمه ده چه خان مرحوم به هم د محمد رفیق استاد ډیر قدر کاوۀ ! بله خبره د خاتمے په الفاظو کښے "من تصانیف" د تهکی نه دا هم را برخیره کیږی چه د خان مرحوم کنی تصانیف وو چه یوه پکښے دغه ترجمه ده !

دغه وړاندې ذکرشوې معراج نامه په کال ۱۳۱۲ھ کښې ترسره رسیدلې ده لکه چه خان مرحوم پخپله " درسنهٔ کتاب مستطاب معراج نامه" دعنوان لاندې لیکې چه .

په سن دیارلس سوه دولس کښې عجب
په تاریخ داتویشتم کښې درجب
شهٔ تمام کتاب په خیر سره ضرور
په کتوئې دمؤمن زړهٔ شی مسرور
او زما پکښې مطلب وو صرف ثواب
په درګاه دِ ئې مقبول کړی پاک تواب
له فارسئ نه مې پښتو کړو داکتاب
په زیور دنظم ما کړو انتخاب
شاه محمد ه نور به څهٔ وائې اوس بس کړه
خدائې رسول په لاره سم دِ خمه هوس کړه
هرچه سم د روم ی په لاره ددوئ صادق دې
چه څوک غیر دړومی له دوئ نه منافق دې

دخان مرحوم ددیوان کوم نقل چه زما دوړاندې دې، داهم دخان مرحوم دخپل لاس لیک نهٔ دې بلکه داصل یو خوشخطه نقل دې . ددې نقل په آخر کښې دسلطان محمد خان ختک په قلم یو نوټ لیکلې شوې دې چه مضمون ئې دا دې -

( دیوان شاه محمد خان رئیس مردان علاقه یوسفزی)
یادداشت :- اصل نسخه پیر احمد شاه صاحب مردان کے پاس ہے نسخہ ھذا خان بہادر محمد رحیم خان عمرزئی نے کوشش کرکے اصل نسخہ سے پھر عبدالودود صاحب پیش امام مسجد خانصاحب فتح محمد خان نقل کیا - اور

نام بردہ نے بہ کمال مہربانی بندہ کو عطا فرمایا ۔ فقط

احقر العباد بندہ سلطان رحمن خٹک ساکن مردان بقلم خود

23/4/1922

دا ایک په ۱۹۲۳ء کښے شوے دے او د خان مرحوم د کتاب معراج نامے د پوړکیدو کال ۱۹۱۳ء دے گویا د دوئ په منځ کښے د لسو کالو پاړه ده۔ نو څکه قرین قیاس خبره داده چه د خانِ مرحوم د دیوان د غنه اصل نسخه به هم د مرحوم محمد رفیق استاد دلاس لیک وی۔

د مرحوم خان شاد محمد خان د شاعرئ دهغوئ د علم دوستئ او عالم پرورئ او د هغوئ د دیوان په حقله ځنے اهم خبرے بیان کړے شوے۔ چه بنا غلی لوستونکی د خان مرحوم د دے کلام په حقله یوه صحیح تو له قائمه کړے شی! او لکه چه وائ چه " مشک آنست که خود ببوید نه که عطار بگوید " څو څکه زۀ دے لوئے بناسته دیوان له گلستانه چه رنگارنگ خوشبویه خوش رنګه گلونه پکښے غوړیدلی دی یو دوه گلدستے د دوړاندے کوم۔ هره غنچه ځان له ځل بیل رنگ وبوئ لری۔ داکه وائي د مرحوم خان د ژوند دوه اړخونه دی او که وائي دهغهٔ دکلام دوه مخونه دی!

# وړومبئ گلدسته
## د تصویر یو مخ

---

د خانِ مرحوم شاعری " غزلیه " ده اُن چه دهغهٔ بچیله ځلے یو مرثیه ته هم د " افسوس غزل " ویلی دی! خو دا هوے " غزلے " د " غزل " دهغه معنی په تول پوره نهٔ ختږی کوم چه " غزل " اصل او بنیادی معنے دی۔ خو د پښتو پخوانو شاعرانو د غه هر قسم ځینونه د غزل په دائره کښے راننویستی دی۔ اُن چه د قصیدے د دول اُوږدهٔ اُوږدهٔ نظمو نهٔ هم په غزلو کښے ورګډ کړی دی.

او څهٔ عنوان ئې ورله نهٔ دے ورکړے۔

"غزل" اصلاً دعربۍ ژبې په شاعرۍ کښې دقصيدے يوه برخه وه۔ ددے معنے معشوقے سره زياد معشوقے په حقله) خبرے کول دی۔ په قصيده کښې به يوڅو شعرونه په داسې رنګ کښې وئيلے کيدل، او بيا به قصيده شروع شوه۔ دغه قصيده چه ايران ته راغله او په فارسۍ کښې قصيده ګوئ شروع شوه نو دفارسۍ شاعرانو "غزل" دقصيدے نه بيخي بيل کړو۔ يوخوائے قصيدے له جدا مقصد او رنګ ورکړو۔ او بل خوائے غزل له داسې ترقی ورکړله چه دا د شاعرۍ يو مؤثر، ښکلے او رنګين صنف اوګرځيدو۔ او داسې صنف چه دشاعرۍ نور ټول اصناف ئې شاته پريښودل۔

ددغے نه پس په تيرو سوو نو کالو کښې دفارسۍ شاعرانو، دعشق معاشقې، ګل وبلبل، شمع و پتنګ، وصال او بيلتون، ساقی او شراب، او بيا په تيره تيره دمعشوقے دصرانډام، دس دويښتو نه واخلے، دپښو تر نوکونو پورے دهرې ځائے چه دشاعرانو انګيخت باعث به وو۔ صفتونو ستائنو، تشبيهاتو استعارو او کنايو په لړ کښې دومره څه وئيلی دی چه دصرنوی لوړ شاعر په وخت کښې داسې ښکاريده چه دهغهٔ نه مخکښې او تيرو شاعرانو دهغه دوئيلو او خيال آرائۍ دپاره هيڅ هم نهٔ دی پريښودی۔ خو شاعرانو هيڅکله همت نهٔ دے بائيللے۔ او دخپل خيال او تصور په زور ئې ټل نوی نوی تشبيهات استعارے او کنائے راپيدا کړی دی۔ او "غزل" شاعری ئې مخ په پورته بوتلے ده۔ او دمعشوقے ديو يو اندام صفت او ذکر ئې په سل سل رنګه کړے دے۔ دفارسۍ يو ځوانی شاعر وئيلی ووچه!

دربند آن مباش که مضمون نمانده است
صد سال می توان سخن از زلف يار گفت

او ربښتيا خبره داده چه ديار داوږدو زلفو خبره دومره اوږده شوه

چه سوونه کاله پرے تېر شول - لوئے لوئے شاعران راغلۀ اولاړل، خو د یار د زلفو اوږدوالے توروالے د نولتیا، مشکینیٔ، رنګینیٔ اوخدائے زده چه د څه څۀ بیانه اوشول، خو دا سلسله لاختمه نۀ ده . ـه

چه څوک وائے نۀ ختمیږی نۀ لنډیږی چرے
دومره څوږه دومره اوږده ده دجانان قیصٔ

د پاک وهند دیرو زړو غزل اونور ټول اصناف، د فارسیٔ نه پورکړی دی او غالبًا چه په دے لړکښې پیل مرے "پښتو" کړے دے. ځکه چه پښتو په هند آریائی ژبوکښې ایرانیٔ څانګے سره تعلق لری او بیائے یوه لویه کاوسوړه هم ده . په پښتوکښې هم د غزل په میدان کښې د فارسیٔ شاعریٔ په انداز کښې زرګونه ذرګونه شعرونه وړاندے کړےشوی دی اردو بے شکه چه یوه نوے زیږیدلے ژبه ده خو اردو چه کومه سرپرستی په دیلی، لکهنو، دکن او په پنجاب کښې شوے ده که دهغې لسمه برخه سرپرستی د پښتو ژبے شوے وے نو خدائے زده چه نن به "پښتو" په کوم مقام ولاړه وه!

د پښتو دغزل په ځوانو بهترینو شاعرانو کښې د مرحوم خان شاه محمد خان نوم هم راځی - دا جدا خبره ده چه تر اوسه دهغهٔ شاعری په صندوقونو او الماروکښې پټه خوندی پرته وه - خو لعل نۀ په ایروکښې پټیږی اونۀ په کانړوکښې - لعل هرچرته چه وی لعل دے - د خان مرحوم کلام هم لعل وجواهر دی چه اوس د پښتو ادب لاس ته راغلل، او دا میدان ته شول -

رحمٰن بابا دحمد ونعت نه پس ددُنیا ذکر کړے دے - خان مرحوم هم د رحمٰن بابا پیروی کړے ده - رحمٰن بابا ددنیا په حقله وائی ـه

ښه ده ښه ده دادنیا | چه توښه ده دعُقبیٰ
ددنیا په بازار کښې | دهغه جهان سودا

خان مرحوم هم په دے لحاظ سره دُنیا ته نۀ خو ښهٔ وائی اونهٔ بده-

خو د دنیا د ښهٔ والی او بدوالی ترون ئے د انسان خپل عمل سره کړے دے۔ وائی ؎

یو هغه چه ترے زکوٰة خلق بیل نهٔ کا
د هغو دهٔ ضرره دادُنیا

بلکه هغه خلق چه خیر وخیرات کړی د خپل مال زکوٰة اوباسی نو۔




چه خیرات کوی زکوٰة پکښے اوباسی
هغه ښهٔ دهٔ سراسره دادنیا

نو دخان مرحوم مطلب دادے چه دُنیا یعنے ددنیا مال ودولت ځانی څه بد شے نهٔ دے۔ ښهٔ والے او بدی ئے په استعمال کښے دهٔ او هم دغه خبره رحمٰن بابا هم کړے دهٔ چه ؎

په دنیا کښے بدی نشته که بدی نهٔ وی له تا

ددُنیا د ذکر نه پس خبره اصل مقصد یعنے غزل ته راګرځی۔ د پخوانی انداز یعنے د غزل (وغیره) رسمی شاعری ددغه وخت خاصه دهٔ، هغه په هر شاعر نهٔ ګرزیدے کیده۔ دچا په کلام کښے به چه د ګل وبلبل، شمع او پتنګ ګل وبوټا، او بیا په تیره تیره، دخپلے (فرضی او خیالی) معشوقے دحُسن او ښائست په حقله بے ځیه ډیرے ډیرے مبالغے نهٔ وے! او لکه چه ما اول وئیلی دی چه ددغه شاعرئ سر د ایران د فارسئ شاعرئ نه لګیدلے دے۔ او بے شکه چه د مینے او عشق خبرے دنورو ژبو په اشعارو کښے هم څهٔ کمے نهٔ دی، خو کومے باریکئ او ډیښتهٔ چوُنے چه د فارسئ په شاعرئ کښے شوی دی۔ هغه بل چرته کمے کوز ے لیدے شی۔ او حقه خبره داده چه د معشوقے ذکر تشبیهاتو استعارو او مبالغونه بغیر هیڅ خوند نهٔ کوی! که څوک اووائی چه زما د یار سترګے ډیرے ښکلے دی! نو ښکلے سترګے خو ډیرے وی او بیا هر چاته د خپل یار سترګے ښکلے ښکاری۔ خو که د یار سترګو له غټو غټو سترګو، د

هوسئ هسې سترګو سره تشبیه ورکړې شي - بیا پکښې سرې سرې ناغې ، د سرو شرابو رنګ څرګند کړې شي - او بیا د شرابو په مناسبت په سترګو کښې نشه پیدا کړې شي او "خماری" او مستې کړې شي - بلکه ددې نه هم یو قدم په پورته واغشتې شي او دغه سترګې ځیله د شرابو په پیمانو، نه په دګو پیمانو بدله کړې شي - نو خبره دکوم ځائ نه کوم ځائ ته اورسی! داخبرهٔ دیار د زلفو یا د بیلتون د شپو هسې دیره اوږده ده - که چرې مونږ هم داسې د محبوب د حُسن ذکر راواخلو، او په دې حقله د شاعرانو مبالغې او سروپې دروغ راجمع کول شروع کړو، نو بغیر د دروغو او مبالغې نه څو څو پېرچلدونه به تیار شي - خو د سترګو ذکر به سرته اونهٔ رسی! د خوحقه خبره داده چه که دا مبالغې او دروغ د شاعرئ نه لرې کړې شي نو تش بوس او پوک به پاتې شي -)

ما د معشوقې د ښائست په لړ کښې د "سترګو" ذکر ځکه اوکړ چه د معشوقو ښائست هم په سترګو لیدې شي - او ځکه نو د مینې او عشق سرهم له دغې "سترګو" نه لګی او بیا د معشوقې د حُسن اصل مرکز مخ وی - په مخ کښې کنږ څیزونه (اعضا) شامل دی - لکه وروځې ، بانړهٔ ، اننګی ، پوزه شونړې ، ژنه ، خوله غاښونه وغیره - په دې ټولو څیزونو کښې د هر یو څیز (عضو) په حقله په زرګونو زرګونو شعرونه (مصرعې او ټپې) وئیلې شوی دی -

بیا د یار قد وقامت دې چه شاعرانو د سرو چنار نه شروع کړې، او تر قیامته ئې رسولې دې - غاړه یا مرئ ده ، سینه ده (مرحوم خان اکبر د "صدر" په لفظ یاده کړې ده - مټې دی ، لیچې دی ، ګوتې دی ، ملا ده چه شاعرانو د ویښتهٔ نه نرئ کړې ده ! بلکه ځنې خو وائی چه هډو شکاری نه ، او ځکه نو ځنې په شک کښې دی چه شته هم که نه ! د اردو شاعر اکبر آله آبادی

دے قسمہ مبالغہ آمیزو تشبیہاتو پورے یوہ ښکلے ملنډه کړے ده۔

مغرب کی خوردبین نے کمر اُن کی دیکھ لی
مشرق کی شاعری کا مزا کرکرا ہوا!

بیا د ملا نه په ښکته خوکم کوز شاعران ورکوز شوی دی. هوخانِ مرحوم وړنونو ته هم وررسیدلے دے ؎

پسین ورنونه دِ دواورے په سان سپین دی
دواړه پښے دِ کنډاوے، ښهٔ دِ رفتار!

پښتو غزلیه شاعری چه دکومے ورځ نه شروع شوے ده دهغې ورځے راسے دپښتو شاعرانو هم، دخپلو خیالونو اوتصوراتو تیلی د مبالغے په میدانونو کښے زغلولی دی - دادوی دخوشحال خان او رحمٰن بابا نه دیر آکاهو شروع شوے۔او ترننه رارون دے بے شکه چه نن - د غزل محنه لږه بدله شوے ده او دځوانی عرق غزل څهٔ چه دفارسئ په غزل کښے هم هر قسم نوی نوی خیالات ورکړی شوی دی - غزل اصلاً دعربو نه راغلے وو - او هم د عربو د "بَدّو او داوښ" قصّه ورسره اوشوه - چه یو بدو په خپل وړوکی شان تنبو کښے ناست وو، باران ورېدهٔ - اوښ ئے راغے او په تنبو کښے ئے دخپل سرننویستلو اجازت اوغوښت - اول ئے سرننویست بیا وړه وړه وړاندینئ پښے ئے ننویستے - داسے وړه وړه تنبو کښے ننوتو - آخر اوښ په تنبو کښے ننوت او بدو ئے دتنبوګی نه لغړ بهرته اوښکهٔ - دغه کانه غزل سره هم شوے ده - د معشوقو سره یا د معشوقو په حقله یا زیات نه زیات دعشق معاشقے سره تړلے خبرو سره نور نور څیزونه، سیاست، فلسفه، مذهبیات معاشیات اوخدائے زده چه څهٔ څهٔ ـــ دغزل په تنبوګی راننوتل - چه اوس دغزل په دغه تنبوګی کښے نور خو هر څهٔ شته خو"غزل" پکښے کم کوز ښکاری!

دخانِ مرحوم په وخت کښې په غزل کښې د ا ملاوټ " ذکر ون ) لا نهٔ وو شروع شوے اوکه څهٔ وو هم ، لکه پند و وعظ یا تصوف ، نو خان مرحوم دغه څیزونه ترے ښکیله جدا کړی وُو - ځکه نو دخانِ مرحوم غزل "سوچه غزل" دے - هیڅ قسم له ګډ ون نهٔ لری - اوځکه دخان مرحوم دکلام په دے برخه کښې دګل وبلبل شمع او پتنګ دمعشوقے د زړهٔ راښکونکی حسن ، د معشوقے دبدن دبیل بیل ځی بیان ، خط وخال ، زلفے او مخ ، سترګے اوورو ځے شونډ ے او زنه ، خولهٔ او غاښونه ، قد و قامت وغیره وغیره هغه مرځهٔ موندے شی کوم چه ددغے وخت یا دځوانو وختونو تقاضا وه - لکه واخلئ یو مو بے له خوارِه -

دو ا یه وروځے دِ لیندے بانړهٔ دِ غشی
هم ګولوسترګو دِ اوویشتم یو وار!
سرهٔ لبان دِ چوارے لاړے شهد
ستا د زنے په کوهی کښې شوم ګذ ار
سرهٔ زونړی دِ بازوبند د په ملا کړی
پینے یچے دِ ویستلے ذوالفقار

دے سره د سپینو ورنو نو ذکر ورانده تیر شوے دے -

یا دا شعرونه :-

دنګه غاړه ٔسینه پلنه ٔپیږے مټے
دلالا دګل نازک لرے کمر

یادا چه :- نرۍ شونډے دِ په مثل چوارے دی
سره عذار دِ ناغدار دی ترګلابه

تورے زلفے دِ دمخ ځنے هاله کړے
ګل رخسار دِ شعلے کاندے له آفتابه

یادا چه:- تا چه اوویني وریځ کښې نښو ځي

نمر سپوږمۍ دِ هیڅ کئ نشي رخسار ته

یادا چه:- تورے زلفے دِ فانوس مخ دِ چراغ دے

بلّوري دِ دهٔ مرۍ سینه مرمره

یادا:- نوئ ملا دِ د لالا دګل نازکه

صنوبر سرو خجل شو ستا تر قد

تورے سترګے دِ نرګس خله دغنچه دهٔ

سرهٔ عُذار دِ ناغدار لکه وَرَد

سپین صدر دِ دهٔ باغچه غاړه بلّور

دا الفاظو دِ چاپیر کړ ترے نه سدّ

چه یو ځائے کښے ئے دباغ د مختلفو ګلونو مقابله دیار دحسن سره کړے دهٔ لکه چه وائ ؎

نمر پرست شو سرنګون له دی رجنونه

چه ګمان کوی په نمر دیار مست

دصد برګ ژبے په وصف شوے تورے

ګلاب تول شو نکئ په هر یو خار مست

دچنبے ګلونه نغاری مخ په پانړو

راویل تول پرمر پرمر شو بیمار مست

پیچ وتاب شو لو سنبل دغمه تورشو

چه ښکاریږی په شین رنګے بهار مست

دا سے قسم دیر شعر ونه لری خو دا دا سے تشبیهات او تشریحات دی، چه دیخوا راسے راروان دی چه فرسوده یا پا افتاده بللے شي۔ خو یو پښتون چه دکوم پښتون شاعر کلام لولی نو کم نه کم نن صبا — دا لمتون پکښے ضرور

کوی چه دے شاعر په "ایرانی رنګے" شاعرئ کښے "پښتنی" کوم رنګ ورکړے دے ؟ یا ایرانی شاعری ئے څه رنګه "پښتنه" کړے ده ؟ دخانِ مرحوم په کلام کښے داسے رنګونه هم څهٔ کم نهٔ دی چه د ایرانی او پښتنی شاعرئ ترمینځه سرے بیلتون ورکړے شی لکه دا شعرونه چه ځنے معشوقے ته ئے پښتنی کالی ور اغوستے دی -

سور پیزوان دِ دے جلا دتوره په لاس کښے

سره نتکئ دِ تیزندئ دګنهګار

سپین دخسار دِ لکه نمر هسے شعلے کا

دسروتیک دِ بدرِ تام خال دِ کوکب

تیک پیزوان او نتکئ وغیره خو خیر نور و پښتنو شاعرانو خپلو خپلو رخیالی) معشوقو ته وراغوستی دی . خو خانِ مرحوم چه کوم تشبیهات د پښتنی ژوند او معاشرے ته وراغوستی دی - او خانِ مرحوم چه کوم تشبیهات د پښتنی ژوند او معاشرے نه راپه نوسی کړی دی ، دهغه خاص طور سره دذکر ور دی -

خانِ مرحوم شاد محمد خان یخپله یو خان وو ، د لوئے دوتر او د زمکو خاوند وو ، زمکے ئے وے ارهټونه ئے وو ، او دخواوشا چاپیرچل کښے ئے د خالص تنی ژوند دوس دوره وه - خو ډیر و کمو خلقو دغے پښتنی ژوند او ماحول ته داسے په غور او ژور نظر کتلی دی - او دخانِ مرحوم په شان بنکلی بنکلی تشبیهات ئے ترے راپه لاس کړی دی لکه واخلے ، دتیلو کانړئ خو په یخوانو وختونو کښے عامے وے . خو داسے تشبیهه ته دچا نظر وررسیدلے دے ؟

ذهٔ شړشم ، بیلتون دِ واچولم کانړئ ته

په یو ځل شولمه تیل دغم په لته!

دکانړئ لټ چه کوم زور قوت سره د شړشمو ، کونځلو او دجامو نه

تیل او باسی ، شاعر د غې سختې ته دبیلتون سره تشبیهه ورکړې ده ۔
بل ځائے وائی :۔

دشړشم په شان دتیل کرم په کانړئ کښے
مجبوره ستا په مارانی لکه دلته

بت ، بنیے او ارهټ دپښتنی کلیوال ژوند یوه لازمی برخه وو . دده نه

هم تشبیهات داپسے اکری دی وائی ؎

سپین رخسار ته دِ کتے نه شمه غټ
بیلتانه دِ وریت بنیه کرمه په بت

یا دا :۔ داوربشو په شان پروت یم په بغرئ کښے
دبیلتون مولو په شان کرم لکه بته

شاعرانو د ژړا او اوښکو نه سیندونه بیولی دی خو داتشبیه هم اوګورئ ؎

په رخسار ے هسے موج دسترګو دړو می
لکه دړو می والهٔ دکه د ارهټ

( دارهټ کوهے په مثال دسترګے دے او د ارهټ دلوټکو نه داسے اوښکے

رابهیږی چه دکه والهٔ ترے روانه شی ۔

دخیبر لار خونړ ورځ دیره زیاته آباده ده ، په سوونو ، موټرے ، بسونه

ټرکونه پرے چلیږی ، دخانِ مرحوم په وخت کښے دلته هیڅ هم نهٔ وو ۔ د

کاروانونو لار وه ۔ هرطرف ته کندرے کوندرے اوخوشکیا وه چه پکښے

خرارے رندیدے پیاده پلے سرے خو یک تنها په دے لاره هډو تلے نهٔ شهٔ

هر وخت به دشوکے او لوټ کیدلو ویره وه ؛ خانِ مرحوم ددے حالاتونه

هم څهٔ ښکلی تشبیهات او استعارے راپیدا کری دی وائی ؎

آفریدی به دبیلتون دشوک په شوک کا
عاشقئ لاره په مثل دخیبر ده

یادا چه :- دبیلتون آفریدی لوښ دوصل رخت کړی

که عاشق دوان دعشق په خیبر شهٔ

ددا نکته یاد لرل پکار دی چه په دغه وخت کښے لا د اسلامیه کالج بنیاد نهٔ وو کیښودے شوے - د پیښور صدر د غربئ دروازے نه واخلے ترجمرود ه پورے په دغه لویه کاروانی لار کښے هیڅ قسمه له آبادے څهٔ چه جونګړه قدرے هم نهٔ وه - کوز او برتهکال هم ددغے شاهراه نه لرې په ډډه پراتهٔ وو) ګویا که عشق د "خیبر" ګرانه لار ده چه دبیلتون آفریدی پکښے پراتهٔ دی - چه هیڅوک ترے روغ بے شوکے او په امن کښے تیریدے نهٔ شی !

دوړاندے تللو نه آګاهو د خیبر په لاره نه ، بلکه په دے مقاله کښے) د خان مرحوم یو څو نور شعر ونه هم په دغه لړ کښے واورئ ؎

پسین دخار دِ دے کتاب ور وځے حاشیے دی

نهٔ کرم بل مطالعه کتاب په هیڅ

یادا چه ؎ په اوښیو ے هیڅ تاؤ د عشق کم نهٔ شو

لا تازه شی دکباب په اوښیو اور !

د یوے قطع بندے تشبیهه نه اول دا شعر اولولئ ؎

نادانان به عاشقی ګڼړه آسانه

مګر ماته دا داوره برابر ده

اوس دا قطع بند ـ ؎

هر لرګی باندے چه تیره سره لمبه شی

پس له هغے نه خالی شی پاتے سکور

هسے رنګ هم دهغه عاشق بدرنګ شی

لا دسکوره تاؤ داور اووینی ذور

د "اعتدال" یاد حکمه سره سم او سیدلو سیق ورکوی ، خوشحال ځے هم

او لولئ ــ

دحسابه چه څهٔ زيات شي يا څهٔ کم شي
هميشه گرځئ په سر دغه پــيزار

(کيدے شي چه ددے مقابے لوستونکو کښے څوک دا ســے هم وی چه چاپيزار په سر" نهٔ وی ليدلے ، خو ددے کرښو ليکونکی په څلو سترگو په ځنيو کوالی کښے ځنے کليوال او بانډيسيان داسے ليدلی دی چه پنړے به ئے په يو بل اړولے او په سر ايښے وے او پښے ابلے به روان وو ! چه پيزار په پښه تنگ يا ارت وی نو مزل نهٔ کيږی او پښے خوږ وی ! )

"خان مرحوم " دعشق معاشقے خبرے خو کړی دی خو تشه توره شاعری ئے نهٔ ده کړے بلکه پخپله ئے هم دغه لارے کوڅے ليدلے وے ، ځکه اکثر دا دهغهٔ خپل واردات وو - خو دحيرت خبره داده چه خان مرحوم سره ددے چه د فارسئ دشاعرئ مطالعه ئے ښهٔ ډيره کړے وه او د معشوقو د بدنی حُسن خوندناکے خبرے خوئے زياتے کړے دی خو د معشوقو دکشش او د زړهٔ راښکون د يو بل اهم څيز ذکر ئے بيخی نهٔ دے کړے - يعنے "صد شيوه هاست بتان را که نام نيست " خو دکومو " شيوو" چه نوم شته او کړو بلکه هر يو شاعر ئے ډير ډير ذکر کړے دے - يعنے ناز ، ادا ، کيځ مکيځ ، نخرے ادا کانے وغيره ، خان مرحوم د معشوقو د معشوقتوب دا ارخ تقريباً بيخی نظر انداز کړے دے . ددے وجه ــ زما په نزد دا ښکاری چه هغهٔ د معشوقے د پاره بدنی او جسمانی حُسن او بنائست خو خوښ وو - او ضروری ئے گانړهٔ خو دا د "دمو" هسے نخرے پېښے او مصنوعی کيځ مکيځ ئے نهٔ وو خوښ - ځکه ددے څيزونو ئے هيڅ ذکر نهٔ دے کړے . ددے په مقابله کښے "خان مرحوم "چه د معشوقے د پاره د بدنی بنائست نه علاوه کوم شرط په گوته کړے دے ، هغه به کچه ډير اهم او د توجه وړ دے - وائی ــ

معشوقه بویه صادقه هم عاقله
دبې عقلو یاري اوکړه انکار
بل ځائے وائي ؎
معشوقه په کار د عشق چه نهٔ پوهیږي
لکه خره ته غږوي سازنده ساز
بل ځائے وائي ؎
دبې عقلې معشوقې عشق سقر دے
په څوکاره کښې سقر ترے لا بهتر دے

او حقه خبره هم داده چه په صحیح معنیٰ کښې معشوقه خو هم هغه ده چه د عشق په کار پوهیږي، عقلمنده او هوښیاره وي - او بیا صادقه رښتونے او وفاداره هم وي که دا څیزونه د یوے معشوقې د توکو نه اهم صفتونه نهٔ وے نو جهانګیر باچا به یوے کونړے ښځے پسے ولے دومره لاس و پښے وهلے؟ او هغه به ئے د خپل محل رڼا ولے ګرځوله؟ د لویو او پوهه خلقو معشوقه تشه د تن بدن او مخ د ښکلا او ښائست میرمن نهٔ وي بلکه هغه اهلیت هم لري چه د خپل مین همدمه او همرازه اوګرځي — زما په خیال ډیرو کمو کوزو شاعرانو د معشوقو د دغه اهم صفت یاد شرط ذکر کړے دے بلکه تش د بدن او د مخ ښائست او نازونو اداګانو او ملګځونو په مخه وړي دي -

عشق او مینتوب په سرو انګارو او په بلو غرغنډو ورتیریدل دي - په دے حقله د خان مرحوم یو دوه شعرونه بره ذکر شول په عشق او مینه کښې د ګلونو سیج او سور پالنګ د عاشق کله کله په برخه کیږي، ګلونو سره ازغي هم دي بلکه اکثره ازغي ډیر، او ګلونه کم دي!

اکثر شرقي قومونه چه پښتانه یکښې په اول سر کښې شامل دي - د عشق او مینے قصے داستانونه خو چه ډیر خوند خوند لولي او آوري - لیلیٰ مجنون ،

شیرین فرهاد، آدم درخانئ - دے شهئ - رابعه فتح خان - هیر رانجها - سوهنی مهینوال - دت پدم وغیره وغیره قصے په ډیر شوق لولی او آوری، بلکه څنے وخت د څنو خوانو مینو مجازی مینو له د حقیقت رنګ ورکړی - خوکه د دوئ په موجوده معاشره کښے څوک زیے، څنے پیغلے سره خپله مینه څرګنده کړی - نو توره توپک ورپسے راواخلی او کله کله خوئے ټوټے ټوټے او غلبیل غلبیل کړی — او چه په دے واقعه اتیا سل کاله تیر شی نو بیائے په قبرونو جنډے لګے کړی - شاعران ئے منظومے قیصے او داستانونه اولیکی - او بیا دا قیصے بدلے چاربیتے اخونان ناظمان او سندرغاړی په جرو مجلسونو کښے آوروی - لوئے واړهٔ ورته سرونه خوزوی - او څنے وخت خوئے په همدردئ کښے دردر اوښے هم توئے کړی! چه هائے په دغو ربنتونو مینانو څومره لوئے ظلم شوے وو!

دغه شان د هرے زمانے مینانو ته قسم قسم مشکلات او سختئ وردوڅارهٔ شوی دی او څکه ئے شاعرانو په خپلو خیالی معاشقو کښے د بیلتون، غمان تومت، رقیب ربار وغیره په نامو ذکر کړے دے او په دے کښے ئے هم د ډیرو زیاتو مبالغو نه کار اخستے دے بیا د پښتو شاعرئ خو د "بیلتون" نه یو "مجسم" دښمن ساز کړے دے - او د دے ذکرئے اکثره په داسے انداز کښے کړے دے چه لکه بیلتون یو ژوندے مجسم، زورور، ظالم، ناترسه خونی دښمن وی چه هر وخت عاشق پسے لګیدلے وی — او رنګ رنګ ظلمونه او ناکردے پرے کوی - غالبًا چه دا خصوصیت یعنے د بیلتون تجسیم - د بلے کومے ژبے په شاعرئ کښے نشته! خان مرحوم هم لکه د نورو شاعرانو د بیلتون ذکر ډیر کړے دے - یو څو مسلسل اشعار ئے ملاحظه کړئ -

زهٔ یواځے بیلتون نهٔ یم مظلوم کړے
خوشحالی ئے له وجوده کړه بهرته

بیلتانهٔ په تورهٔ هسې یم غوځ کړے
چه کټے ے طبیبان نهٔ شی پرهر ته

بل ځائے وائی ؎

زهٔ چه ډیر دبیلتانهٔ نه شکایت کړم
دهٔ ظالم زړهٔ ے ریبلے دے په لور

په لور ریبل یا حلالول هم دپښتو دشاعرئ خصوصیت ښکاری . په نورو ژبو کښے په څه چارهٔ حلالول یا په اړوے چارهٔ حلالول وئیلے شی - خو په لور ذبح کول خاص دپښتو محاوره ښکاری چه دډیرظلم څرګندونه ترے کیږی لکه علی خان هم داسے وائی ؎

پیښن شهٔ علی خان په هسے چورو خونه چورو
چه وژله ے زده نهٔ وو پرے ے لور و لګاوُو

عشق 'مینه ، محبت تقریبًا یو شان معنے لری خو دعشق په ځکی کښے ډیر زور اوژور وا ے ښکاری - غالبًا هم داوجه ده چه خان مرحوم دعشق او عاشق لفظونه ډیر استعمال کړی دی - دمینے محبت لفظ په درست دیوان کښے یوځل نیم راغلے دے! او "مئین" لفظ خو که تیر وو زم نه ، نو یکښے بیخی نشته -

عشق او مینے سره تړلی ډیر الفاظ — یا مضامین دی چه شاعرانو ے "زړور" استعمال کړے دے او خانِ مرحوم هم دعامو شاعرانو په شان دچل خیال تیلے پرے زغلولے دے - خو زهٔ دابیان نورنه اوږدوم او تش په "زیبار" ے ختموم -

په شرق اکثرو قومونو کښے لکه چه ماوړاندے اووے ، دزلمی پیغلے په خپله کښے مینه کول ډیر لوئے جرم ګڼړے شه - او اوس هم ګڼړے کیږی - خو اوس د مغربی تهذیب او دنوی ګړ تعلیم له برکته - ښځو دکورونو چاردیوارئ سورئ کړی دی او بهر ته دوتلو رنګ رنګ لارے ے ایجاد کړی دی - ځکه نو دملاقات

دپاره سل لارے او سل حیلے نو پخوا دا صورت نهٔ وو بے دهغو (پښتنو) قبیلو چه خانه بدوش وے او دستر پردے رواج پکښے نهٔ وو، په نورو قبیلو کښے به اکثر زنانه دکورونو په چاردیوالو کښے دننه په پرده کښے بند وے ځکه نو دزلمو پیغلو ملاقات هم یو ناشونے غوندے کار وو - خو عشق نو عموماً په لیده کتو، خبرو اترو او په ملاقاتونو پیدا کیږی او وده کوی - هر کله چه لیده کاتهٔ کم او ملاقاتونه شاذ و نادر وو - نو ځکه دعشق او مینے اور به هم په زړونو کښے کم کوز لګیده - خو دا یوه فطری خبره ده دا سیلاب په بندونو ترلو نهٔ بندیږی، چرته خوسر اوباسی - زلمو پیغلو به بیا هم دلیده کتو لارے راپیدا کړے - خو داسے ملاقاتونه په بلو غوندو ورختل، او خپل سرونه په تلی کښے ایښودل وو - خو عاشقان دسر کله پروا کا؟" هغوئ به دا ملاقاتونه دسرونو په بیعه کول،

خان مرحوم وائی ؎

معشوقه موندل په سر باندے ویړیا دهٔ
که مے بیا موندهٔ ویړیا ترحد بیاد دهٔ

نو د ملاقات لیده کتو وغیره دپاره خو هم په مینځ کښے څهٔ ذریعه لازمی ده - دغه ذریعه د "پیغام" ده ځکه نو د پیغام په حقله هم دپښتو په شاعرئ کښے بے شماره دیرش ونه را او تپے مصرعے وغیره ویلے شوی دی) بیا د پیغام هم دیر قسمونه - لکه بودئ مکاره تجربه کاره ښځه ماشوم پیغام د معشوقے دړوکے ورور خور - او داسے نور هغه اعتباری کسان چه بے د شک شبهے نے رسائ تر معشوقے کیدے شوه ! خط کتابت عام نهٔ وو، ځکه د خطونو او "محبت نامو" پیغاری لا نهٔ وه شروع شوے -

پیغاری هم څهٔ آسان کار نهٔ وو - کله کله خو به چه راز څرګند شهٔ نو پیغامبر به هم پکښے سر اوخوړ! ځکه عاشقانو به د پیغامبرانو هر قسمه

خوشامندے ، قدر او عزت کوؤ ۔

خان مرحوم هم د مینے مهم د سرکولو دپاره "دیدار" له ډیر اهمیت ورکړے دے وائي ؎

تلوسه ئے په زړهٔ بار د وصالت دے
محتاجي د عاشقانو د دیدار ده

دیدار په منت ځان چاته بد ښکاری
د هغے عاشق په سر خاورهٔ انبار ده

عاشق تل په وسیله د دیدار رسی
بے دیداره معشوقه موندل دشوار ده

د خانِ مرحوم د کلام دا برخه په مجازی عشق یا په مجازی شاعرئ مشتمله ده ۔ خان مرحوم په مجازی مینه او په حقیقی مینه ۔ او په دے مناسبت په مجازی شاعرئ او د حقیقت په شاعرئ ډیر بله پوهه وو ۔ او غالباً چه د مجاز نه په نزئ لار حقیقت ته رسیدلے وو ۔ هغه د خپلے شاعرئ په حقله وائي ۔

حقیقت وایم غزل کښے د مجاز
په باطن ظاهر ومه د زړهٔ داز

خو رښتیا خبره دا ده چه حقیقت بیل شے دے او مجاز بیل شے دے ۔ د حقیقت کو شاعر په کلام کښے هم ځنے مجازی شعرونه داسے ضروروی چه هغه په هیڅ دول حقیقت ته نهٔ ور اوړی ۔ د رحمٰن بابا نه به بل کوم شاعر حقیقت گووی ۔ خو د هغهٔ په کلام کښے هم ځنے شعرونه داسے دی چه هغه خالص مجازی دی ۔ د غه شان د خان مرحوم ټول کلام ته حقیقت نهٔ شو ویلے ۔ ځنی د مثال په طور دے لاندینی شعر ته به څوک د حقیقت شعر اووائي ؎

صدد دِ باغ زنخے زیلئی پکښے خورے
ماچه لمټوهٔ پکښے ے بیا موندهٔ انار

یا دا شعر چه ــه

قد د سروے نرئ ملا لکه لا لاستا
په ځدر د دوه کلونه دا انار

# دوئمه ګلدسته

## د تصویر بل مخ

په اول سر کښے ویلی شوی وو چه د "خانِ مرحوم" دیوان مونږ په دوو غوټو برخو کښے ویشلے شو - یو د مجازی عشق او دمینے برخه، چه مختصر ذکرئے وړاندے تیر شهٔ، دا د تصویر یو مخ وو - دوئمه برخهٔ حقیقی عشق یا د پند و وعظ برخه - دا د تصویر دوئم مخ دے یعنے د "خان مرحوم" د شاعرئ او د خیالاتو دوئم اړخ - او غالباً چه ورسره د هغهٔ د زړونه هم!

تقریباً د هر یو مشرقی مسلمان شاعر په کلام کښے که هغه د پښتو شاعری ده که د فارسئ او که د اُردو وغیره ژبو شاعری، دا دواړه قسمه موجود وی - او ددوئ په هر غزل کښے دا سے صوفیانه، عارفانه او واعظانه شعر ونه، د عاشقانه شعرونو سره کربښه په کربښه، شعر په شعر سره ګډ وډ، خلط ملط شوی وی - دا ده چه غزلو کښے عموماً عاشقانه شعر ونه ګنړ وی - او واعظانه یا صوفیانه شعر ونه پکښےکم وی - د "غزل" خوبی یا نقص دا دے چه یو شعرئے بل شعر سره هیڅ ترون نهٔ لری - هر یو شعر ځان له جُمله یوه دُنیا لری - که هغه عاشقانه دی که صوفیانه او که د نن زمانے د غزلو په نسبت فلسفیانه یا سیاسی وغیره - که دغزل د عاشقانه شعرونو نه، دانور شعر ونه لرے کړے شی نو بیا د غزل عمارت هم ورسره رنګ شی! خو د "خان مرحوم" په کلام کښے دا سے ګډ وډ ے نشته او د عشقیه شاعرئ نهٔ ئے دوعظ و عرفان شاعری په آسانه بیلیدے شی - ځکه مونږ د هغهٔ د شاعرئ د غه دواړه ډمله یو جُمله بیل کړے

شول -

راځئ چه اوس دخانِ مرحوم دکلام په دے دويمه برخه يو روان اوسرسرى نظر واچوو -

که چرے دخانِ مرحوم دکلام ددے برخے نه د شاد محمد خان رئيس مردان" نوم لرے کړے شى نو بيا به دا د يو خان نه بلکه ديو غټ صوفى او زاهد سړى کلام ښکارى چه د سلوک په لار راهى وى او د مجازه سره ئے هيڅ تړون نهٔ وى ! خو حقيقةً داسے نهٔ ده خانِ مرحوم اول د مجاز په لار وکوښو کښے ګرځيدلے دے دکلام غونډه نيمه برخه ئے ددے دعوے يو روښن ثبوت دے هغه پخپله وائى ؎

عشق ښهٔ دے حقيقى که مجـــازى وى

حقيقت ته نزدے لار ده د مجـــاز

خو داسے ښکارى چه هغه لا د مجاز په کوڅو کښے ګرځيدهٔ چه حقيقت ته ئے مخه شوه ځکه په يوه دعا کښے وائى ؎

د مجاز په "نزدے لار" به ځم تر کومه

اوس روان مے په لوئے لار د حقيقت کړه

او داسے ښکارى چه د هغه دُعائے قبوله شوه - او "خانِ مرحوم" د مجاز د کوڅو بازارونو نه جماعت او محراب ته راواوړيده - او دے سره ئے د شاعرئ رنګ هم بدل شو -

کيدے شى چه خانِ مرحوم د مجاز د غه شاعرى دخپلے ځوانئ او مستئ په دور کښے کړے وى او عارفانه او واعظانه شاعرى ئے د ژوند داخيرنى دورسره تعلق لرى. خو داضرورى نهٔ ده ځکه چه صوفيانه او واعظانه شعرونه تقريباً دهر شاعر په کلام کښے موندے شى ، خو داسے هر يو شاعر صوفى او زاهد نهٔ وى په شاعرانو کښے داسے شاعران کم کوز وى چه د طبيعت رجحان ئے داوله سره زهد وتقوىٰ ته وى - او بيا وروستو ورو ورو ديوے کوڅے نه بلے کوڅے ته وراوړيدلى دى -

حسن پرست خو هر يو انسان وى او زهٔ خو وايم چه هغه به لا کوم انسان وى

چه حُسن او ښائسْت به نهٔ ښوبوی او یا په تیره تیره شاعر خو هرو شاعر کیدے نهٔ شی که هغه حسن پرست نهٔ وی - شاعری او حسن پرستی یو بل سره تړلی او لازم ملزوم دی - هو! دا بیله خبره ده چه د غه حُسن د فطرت حسن دے - د قدرتی مناظرو حسن دے د ګلونو چمنونو حُسن دے - او که د بنی آدم حسن دے -

مشرقی شاعرانو خپل شاعرانه عشق د بنی آدم د حسن د پرستش نه شروع کړے دے او خال خال پکښے حقیقت ته رسیدلی دی - ګنی اکثره په همدغه لاره کښے ورک پاتے شوے دی -

خوشحال خان خټک او رحمٰن بابا د پښتو د بے ښر شاعران دی - د دواړو ډے جدا جدا دی - خانِ مرحوم موږ د هغه د کلام د محنه په دوشمه ډله کښے شمیر سے شو - د خانِ مرحوم په دے صوفیانه او واعظانه شاعری کښے ترډیره حده د رحمٰن بابا رنګ برخیږن دے لکه و اخلئ د رحمٰن بابا مشهور شعر دے چه ؎

تر و رخ تیرے اوبهٔ په بیرته نهٔ جارووځی
نهٔ جارووځی تیر ساعت په بیرته بیا

تیر ساعت په مثال مړے د لحد دے
مړی چادی ژوندی کړی په ژړا!

خانِ مرحوم هم همدغه خیال په مختلفو طریقو وړاندے کړے دے وائی ؎

تللے وخت به په بیرته چرته نهٔ جارووځی
هرچه تیر شی هغه شی نسیان په کوچ!

یا دا :- تللے وخت به په ستون نهٔ شی بیا په بیرته
هزارها ژړا فریاد کوے که شور

یا دا :- هر چه لاړ دوباره نهٔ راځی په بیرته
نهٔ راځی اوبهٔ تیرے د سیلاب

دُنیا په حقله د خانِ مرحوم خیال وړاندے تیر شوے دے یعنی نهٔ خو دنیا به

ده نهٔ بیده - ځکه انسان له پکار دی چه دُنیا سره خپل تعلق تر خپل ضرورته ساتی او زړهٔ دِ ورپورے دا سے کلک نهٔ تړی چه آخرت هیر کړی او داد یاد لری چه دنیا د آخرت پټی دے او دا چه دنیا نه آخر تلهٔ دی - او دا هر څهٔ پاتے کیدونی دی - لکه چه وائی ؎

ناګهان به شے له دے جهان په کوچ بے له خدایه دی همه روان په کوچ
داچمن به تار په تار لکه میره شی د عدم په لار به شے روان په کوچ

نهٔ به پاتے خوار غریب فقیر امیر شی
هم به کډ شی خان نواب سلطان په کوچ

او چه آخر فنا ده او نهٔ دے دنیٰ نه تلهٔ دی نو چه بنی آدم چه په سفر ځی، نو بیا خو دِ دلارے توښه هم ځان سره ضرور اخلی - خان مرحوم وائی ؎

په سفر باندے چه ځے توښه دِ واخله
چه بیا نهٔ کړے په توښه پسے ارمان

چه صباله په توښے پسے ارمان کړے
دا ساعت دِ توښه اوګوره د ځان

که دا نهٔ وی نو د قیامت په ورځ ؎

د قیامت په ورځ به هر ځائے شرمنده ئے
هم ولاړ به خدائے رسول ته ئے مخ تور

ملائک به دِ په طوق داور بسته کا
په دوزخ به دِ ورننځ کا سر نسکور

کوم ــ سړے ــــ بیا لاچه هغه پوهٔ خان هم وی - او دا سے قسم خیالات لری او په دګه خلهٔ دغه خیالات نورو ته وړاندے کوی - هغه بویه چه پخپله هم پوه نیک او با عمله انسان وی ــ خانِ مرحوم پخپله هم پوهه عالم وو او د علم په حاصلولو ئے ډیر زور ورکړے دے، خو د علم نه ئے په "عمل" لاډیر

زور ورکړے دے وائی ے

هر عالم چه عمل نهٔ کا بل ته پند کا
د ډیوے ډنډا وی بنده په ډیوټ

د پښتو مشهور متل دے چه د ډیوے د ګټې لاندے تیاره وی - خان مرحوم د
ډیوے د ډنډا او د ډیوے دلاندے د ډیوټ د تیرے څهٔ ښکلی تشبیه د بے عمله
عالم د پاره پیدا کړے ده -

بل ځائے وائی ے

بے عمله علم مهٔ غواړه له خدایه لا په وینو او ښکو ډیر بڼے بانډے ژاړه
علم کړه عمل اوبهٔ ، نیکی دانهٔ ده بے اوبو نه څهٔ دانه غواړے له ساړه

هر یو کار دے د عمل د علم نهٔ دے
دے شیطان ته به لعنت نهٔ وو په غاړه

د بے عمله عالم ئے څه ښکلی او له عبرته ډک مثال ورکړے دے چه علم خو د
ابلیس هم ډیر وو ، خو چه عمل ئے پرے نهٔ وو - نو لعنتی شهٔ ! او دغه ډیر علم
ئے مخ په ښه رانغی - دغه شان هغه خلق ئے هم غندلی دی چه قرآن خو په
ډیر شُر او خوند او خوش الحانئ سره لولی - خو عمل پرے نهٔ کوی - د داسے قاری
په حقله وائی ے

هر قاری چه بے عمله قرآن لولی
دے پیښے کوی د بل په ژبه لواړه

د خان مرحوم " واعظانه او د عمل تعلیم ډیر مختصر وے ډیر جامع دے - که دغه
مختصر تعلیم ئے خور کړے شی نو دیو کتاب جواب کوی وائی ے

امر ، نهی ، پنځ بنا په ځان قبول کړه
هم پنځه وقته کړه نمونځ په جماعت

په امر و نهی خو د اسلام ټول تعلیمات راغونډ شی - بیا ئے دده عموم تخصیص د

اسلام په پنځه بناؤ کړے دے او بیائے په دے پنځه بناؤ کښے خصوصیت سره د نمونځ ذکر کړے دے هغه جماعت سره!

د پنځه بناؤ ذکرئے په نورو ځایونو کښے هم کړے دے لکه ؎

پنځه بنا په سترګو سر کړه ستهٔ قبول
عبادت کړه هر ساعت د خپل تواب

(د خدائے پاک د "تواب" په شکلی نوم کښے توبے او استغفار پلو اشاره هم دا اوځی) د امرونهی ذکرئے بل ځائے داسے کړے دے -

امرونهی پنځه بنا په ځان قبول کړه
د اشیطان به ډِ اخته کاندی په ګنده

د امرونهی او د پنځه بنا تلقین صرف نوره ته نهٔ کوی، بلکه اول ئے دغه احکام په خپل ځان قبول کړی دی - وائی ؎

امرنهی پنځه بنا زما قبول دی
مستقیم ے تل په فرض واجب سنت کړه

دخان مرحوم د پاکیزه ژوند اندازه موږ د دے لاندینی شعر نه لګولے شو، چه هغهٔ پس له مرګه هم نهٔ غوارِی چه ناپاکه خلق ډِ د هغهٔ په جنازه کښے شریک شی

چه څوک ستا د حکمه غیر په لاره درومی
په هغو ے ډِ اونهٔ شی جنازه

د یو شاعر د کلام نه د هغهٔ د ژوند او بیا خاصکر د هغهٔ د عمل په حقله که یو څو ډیر څهٔ معلومیدے شی خو بل خوا اکثر د شاعرانو په کلام کښے ډیرے خبرے داسے دی چه هغه د هغوئ د عمل سره سمون نهٔ خوری ځکه د شاعر د کلام نه د هغهٔ د اعمالو او د کردار په پته لګولو کښے ډیر احتیاط بویه - قرآن پاک هم داسے قسم شاعران چه قول او عمل ئے یو نهٔ وی - غندلی دی - فرمان د رب دے چه
اَلَمۡ تَرَ اَنَّهُمۡ فِیۡ كُلِّ وَادٍ يَّهِيۡمُوۡنَ ۝ وَاَنَّهُمۡ يَقُوۡلُوۡنَ مَا لَا يَفۡعَلُوۡنَ ۝ (شعراء)

("یعنی راے پیغمبره) تا اونهٔ لیده (یعنی تا ته معلومه نهٔ دهٔ) چه دا شاعران
په خیالی مضامینو کښے په هره وادیٔ کښے حیران او سرګردان ګرځی - او
دوئ هغه څهٔ وائ چه کوی ئے نه")

نو دلاس بنځه واره ګوتے خدائے پاک هم برابرے نهٔ دی پیدا کړے - په
دے شاعرانو کښے داسے شاعران هم دی چه په تلامیذ الرحمٰن" بللے شی - په داسے
قسمه شاعرانو کښے دنبوت دبارګاه لوی شاعر حسان بن ثابت" هم شامل وو - او ډیر
لوئے لوئے صحابه کرامؓ او امامان هم شاعران وو - خو دهغوئ په وینا او عمل کښے
هیڅ توپیر نهٔ وو! نو ځکه که دخان مرحوم داشعارونه دهغهٔ دعمل او کردار
قیاس اوکړو او بیائے تاریخ هم مرسته اوکړی - نو مونږ په ډیر اعتماد سره ویلے
شو چه خان مرحوم یو ډیر پاکیزه، زاهدانه او عابدانه ژوند تیر کړے دے -

اسلامی زهد تقویٰ د نورو قومونو د رهبانیت او سادهو توب وغیره بیخی
بیل شے دے، دنیاوی مال دولت، زمکے بهتی پولے او جائیداد په دے کښے حائل
کیدے نهٔ شی - دمال په حقله نو هغهٔ په خپله ویلی دی چه دنیاوی مال هغه
خراب او ضرری دے دکوم چه شرعی زکوٰة اونهٔ ویستے شی او کوم سړے چه د
خپل مال زکوٰة نهٔ اوباسی، نو هغه بل ته څنګه ګوته نیولے شی؟ او چه دکوم
مال نه زکوٰة اوویستے شی نو هغه پاک شی - که هغه مال په زرګو وی په لکونو او که
په کروړونو - حضرت عثمان رضی الله عنه داسلام راوړلو نه اول هم دولتمند وو- او
داسلام نه پس هم ډیر دولتمند وو - او دحضور پاک صلی الله علیه وسلم نهٔ وروستو
نو ډیر صحابه کرامؓ دکروړونو خاوندان وو! خو دهغوئ دغے مال دولت، محلاتو
او دېنځو غلامانو، دهغوئ په روحانی او مذهبی لوی حیثیت هیڅ اثر نهٔ وو غورځولے
مقصد مے د دے وینا نه دا وو چه که خان مرحوم یو لوئے خان وو، رئیس وو د زمکو
جائیدادونو څښتن وو - نو دے څیزونو دهغهٔ په تقویٰ هیڅ اثر نهٔ شو غورځولے
ماں! دا هم یو حقیقت دے چه د زهد او تقویٰ او د دولت دوستی کمه کوزه جوړیږی.

دخان مرحوم کوم شعر چه بره ذکر کړے شهٔ یعنې ؎

امر نهی پنځ بنا زما قبول دی

مستقیم یم تل په فرض واجب سنت کړه

نو د زهد وتقوٰی دپاره د دے نه زیات کوم ځیز کیدے شی؟ — په همدغه دُعا کښې خواست کوی چه -

امان راکړه هم د شره هم د کبره

هم غرور هوٰی له تنه یم رخصت کړه

غصّه قهر یم کړه بند په طوق د صبر

ژبه خلهٔ یم بند دَهر ځا په غیبت کړه

او چه دغه برنے شعر هم ورسره یو ځائے کړو نو د دے نه بنهٔ انداز ه لګیدے شی چه خان مرحوم څهٔ قسم ژوند غوښتهٔ — او څهٔ قسم ژوند به ئے تیر کړے وی -

د بنو او پوهه شاعرانو کلام لکه یو تاریخ وی اَن که دغه تاریخ ډیر مختصر هم وی او د هغهٔ د کلام نه د شاعر د وخت د معاشرے حالات هم لږ یا ډیر معلومیدے شی - دخانِ مرحوم د کلام نه هم مونږ څهٔ نه څهٔ معلومات تر لاسه کولے شو -

هسے خو د آسمان ، د فلک وغیره څخه د کمینه پروری او سفله پروری یو ډیر پخوانے شکایت دے ، بلکه ویلے شو چه د هر یو تیرے زمانے شاعر په خپل کلام کښے دا سے قسمه شکایت ضرور کړے دے - "دخان مرحوم" په کلام کښے د خپل وخت او زمانے شکایت موجود دے -

زمانه زمونږه آخره شوه په شمار

ورور په ورور دے بدگمان یار په یار

زوړ پلار ته لومړه ایښې د تڼکي ده
هم په زویو به تڼکي کوي خپل پلار

اخلاص صدق دین وتلے له هر چا نه
موږ په لوړ' او لوړ په موږ نۀ کا اعتبار

بل ځائے وائي ـه

هسې رنګے زمانه شوله برخېره چه بے دینه خلقه ئے کړله ډېره
د حرامو تریخ طعام ورته خوږ ښکاري د حلالو به حلوا ګڼړي ګنډ یږ!

هر سړے به ځان په لویه پایه شماري
چا کئي ځان به سیوا ګڼړي تر سیږه

او یوه عجیبه خبره ئے پښتو دا هم کړے ده چه ـه

که ئے خپله ښځه ښکلے وي تر ګلو پردۍ ښځے ته ګرځي به چا پېږه

او په آخر کښې وائي ـه

که دِ دا بدي بیان کړله د نوږو
شاد محمده اول ځان پښتنے خپل شمیږه

د رحمٰن بابا هسې وینا ده چه ئے ویلي دي ـه

نوم دستا او د بل اخلم ځان ته وائیم
نۀ مے کار نۀ مے غرض شته په بل چا

د جوارګي او د پړي په حقله وائي ـه

چه د ګټې په نظر د تاوان نۀ وي
پړي ډېر دي تاوان کړي په خپل پړ!

د بے غیرتۍ بے حیایۍ په حقله په څۀ ښکلي انداز کښې طنز کوي ـه

په حیا پسے دِ ډال توږه تر ملا کړه
هر ساعت ئے له غیرت سره په شر

بل ځائے دسرو دکم همتئ په حقله وائی ؎

زنانـه شوے نارینـه ، نارینـه ښځے
ښځـو کېښوه په سرونو پټکی پېین

یو غټ قباحت چه نن صبا خو پښتنو پورے ورغوټه شوے دے ، هغه نسوار دی ۔ چه په قلمونو کښے هم ورپورے سخرے کیږی ۔خان مرحوم په ځپل وخت د پښتنو دا خراب عادت محسوس کړے دے او په دے حقله ئے ځپله کرکه ډیر ځایه څرګنده کړے ده ۔ حالانکه دډیرو کمو کوزو شاعرانو توجه په دے لور وګرځیدلے ده۔ وائی چه ؎

راشه اوباسه توبه له همه غیرو
چه اوئے کړے نسوار بنګ چرس شراب

په بنګو چرسو او شرابو سره ئے په "غیرو" کښے نسوار هم شمیرلی دی۔ بل ځائے وائی ؎

که ئے رنګ قدوقامت جوشه وی ښـکلی
پوزه خله کښے ئے چه نسوار شی مه ئے وینه

بل ځائے وائی ؎

بد نصیبه چه شی کمیر په بدو چارو
پوزه خله مکان وی ستا د نسـواری

انسان او په ځناورو کښے تمیز په عقل کوے شی ۔ خان مرحوم عقل له ډیر اهمیت ورکړے دے وائی ؎

بنده اوبد سره په عقل پیژندے شی    څه بیلتون کوی دینه ګډبدو دواب
عقل سر دے دهمګی ښو خویونو    داجوهر چه چاله ورکړی پاک تواب

چه دعقل خزانه چا ګڼـه نه وی
دوئ په شان دبے عقله کند و خراب

"بے غلے کندو" څه ښکلے ترکیب او تشبیه ده -

دعقل اهمیت خو هر چا ته معلوم دے خو خان مرحوم په خپل کلام کښے دکم عقلو احمقانو ذکر ډیر کړے دے - زه د خپل ځوانی وخت د چړو نه قیاس کوم چه "خان مرحوم" به هم په خپله جرګه کښے ناست وو - دکلی محلت خلق به ورته راغونډ وو - په دیو کښے به هر قسم خلق وو - پوهه او هوښیار هم، کم عقل او ساده هم، طامع او حرصیان هم او قانع او صبر ناک هم - "خان مرحوم" ددا سے خلقو ښه ژوره مطالعه کړے ده - او ځائے په ځائے ئے ددوئ ذکر کړے دے او یو بیل نظم ئے هم په دغه مضمون لیکلے دے چه ما ورله د احمقانو په حقله عنوان غوره کړے دے - ددے نظم یو څو شعرونه ے

لمه احمقه سره مه کوه خبره — داخبره به ورو ورو بوځی ترشره

هر احمق چه په پره اوښنی پټینګ شی — خپله پره په جنګ دعوی کا په بل بره

له احمق سره احمق سرے جوړیږی — چه ئے صلحه دښمنی ده برابره

هر احمق به په پرده جنګ خپله تیکه کره — ځان به کا په وینو سور، ماته کپره

د هوښیار دښمنه ډیره ډیره مه کره — دکم عقل له دوستئ، دښمنی غوره

دکم عقل آشنائی دخره سورلی ده
عاقبت ترے پریواته دی برادره

(او دخره نه پریواته خو مشهوره خبره ده چه که تازی اس نه پریوتے نو به نه ئے، خو که دخره نه پریوتے نو هډ به ډ مات شی)

دکم عقلو دیاری یوه بله تشبیه ے

دکم عقلو یاری اوکنړه بل اور
داور کار بغیر دسولو نشته نور

بره د طامع او د حرص ذکر راغلے دے "خان مرحوم" د طامع سړی نقشه په یو ښکلی نظم کښے داسے راښکلے ده چه دمنظر نګاری یو غوره نمونه ده 'دده

د لچسپ نظم یو څو شعرونه ملاحظه کړئ ۔

د طامع سړی نه سپی کړنم بهتر
سپی د یو وی طامع ګرځی در په در

اوس ډراماتی انداز ئے اوګورئ ـ

طامع سړے حاضر شی په مجلس کښے
هر سړی سره هوس شی برابر

هر یو وائی چه به څه لمانه غواړی
تمامی سره د ځان وی په خطر

غلی غلی یو تر بله سره ګوری
ګنګ زبان شی تمامی مجلس اکثر

طمع داس لکه ښکاری چه نظر اوکړی ‍ ‍ ‍ ‍ په ښکار ګاه د ځنګل میدان کښے لړو بر
هر یو کس ئے په زړه کښے غوږونه تاؤ که ‍ ‍ ‍ ‍ د فائدے په طمع او موی لوټے شر

او په آخره کښے ځان ته وائی ـ

شاد محمده بے د خدایه طمع مه کړه
چه دیده ، نادیده نشے لکه خر

او بیا وائی ـ

بے د خدایه طمع هسے رنګه کار دے
لکه غواړی محرّم په کورځ اختر

طمع راسه حرف است دہر سہ تہی !

په هره معاشره کښے څۀ خلق شته من وی څۀ نیستمند څۀ مالدار وی
څۀ خوار خو لکه چه ما د ړاندے وئیلی دی ۔ د خانِ مرحوم په دغو نیستګار و غریبانانو
ډیر نظر وو ۔ او ځائے په ځائے ئے د دوی ذکر کړے دے ۔ "د خان مرحوم" په دیوان
کښے یو څو "غزلے" یا په صحیح لفظ ، نظمونه داسے دی لکه چه د ني وخت د نوے

شاعرۍ دخاص خاص عنوان ترلاندے وېشلی شوی دی - ما دا سے نظمونو
دځېله ځانه عنوانونه غوره کړی دی په دے نظمونو کښے یو نظم دا سے دے
چه دغریب او امیرشته‌من او دنیستمن ترمنځه تفاوت څرګندوی - ددے نظم
یو څو شعرونه دی

که غریب سړے هر څو دچا دوستی کړی
ټول عالم ئے له دوستئ وی توبه ګار

دنیادار که خلق شړی دټی له ځانه هم عالم ئے ددوستئ وی امیدوار
دنادار و له دوستئ خلق نفرت کړی که په عقل دلقمانه وی هوښیار
کل عالم بنیا بقال کوړی فروش شو همت صدق سخاوت شو پښنه د مار
دے دنیا قارون ژوندے په زمکه ښخ کړ
شاد محمد ه بنه چه نهٔ ئے دنیادار

بل ځائے وائی

که یو وی اصیل دویم جولا وی
یو ذره نهٔ کا عزت دپښتون خوار

دنیادار هندو نه خلق کرکه نهٔ کا
ترے کا کرکه، که غریب وی نومځ ګذار

زما یو عادت پاتے شوے دے چه دکوم ذوق دیا نوی شاعر کلام لولم نو
دریو خبرو له خاص توجه ورکوم - یوژبه "چه دده په استعمال کړے "ژبه"
کښے څهٔ خصوصیات دی - دویم "رسم الخط "چه ددے قلمی نسخے یا دشاعر دیک
رسم خط ریک دود څرنګ دے - او دریمه دا چه "پښتو" دپښتون دلائحه عمل
(code of life) په حقله ئے څهٔ قسم خیالات څرګند کړی دی -

دخان مرحوم ددیوان په مطالعه کښے هم ما دغو دریو خبرو له خاص توجه
ورکړے ده او ډیر په غور مے لوستلے دے - خو په دے کښے هیڅ سودمنه خبره ے

ګوتوله رانغلله ۔ دژبے اودرسم خط په حقله به یو څو خبرے په آخره کښے کوم ۔ خو دپښتو او پښتون په حقله یوڅو تکی وئیل غواړم ! — چه ډیر دلچسپ هم دی او عبرت آموزه هم ۔

دخان مرحوم په درست دیوان کښے (که تیر ووځم نه نو —) د"پښتو" لفظ یو ځلے نۀ دے استعمال شوے ۔ دمعاشرے دخرابو په حقله ئے یوڅو شعرونه وئیلی دی چه څۀ پکښے به ذکرشول ۔ بل دپښتو هغه معنیٰ یا مفهوم چه دپښتون نام سره دلازم ملزوم حیثیت لری ۔ لکه ننګ غیرت، توره، میړانه، بدل، کینه، میلمه دوستی دځیلکور دجرے عزت وغیره وغیره (که ددے خو یوڅۀ ذکرشتے هم، هغه دپښتو دعنوان تر لاندے نۀ دے راغلے ۔ هسے عمومی ذکردے) پاتے شۀ "پښتون" نو دا لفظ هم (که تیر ووځم نه نو) په درست دیوان کښے فقط یوځل راغلے دے هغه هم دپښتون قوم دغوره خصوصیاتو په لړکښے نۀ دے راغلے، بلکه دیو شته من جولا په مقابله کښے ئے دخوار پښتون ذکر کړے دے ۔ "خان مرحوم" یو پښتون وو اویو ددون پښتون وو ۔ دپښتو خان، دپښتنو مشر او رئیس وو ۔ خو هغه دپښتو او د پښتون ذکر په هغه انداز کښے نۀ دے کړے دکوم اندا ز توقع خوزۀ څۀ چه هرپښتون لوستونکے لری ۔

ددے وجه زما په ذهن کښے داراځی چه "خان مرحوم" دنیاوی معاملاتو جنګ جګړو وغیره په مقابله کښے تولو دلچسپی، ځیل مونځ اودس، زهدوعبادت وغیره قسم کار ونو سره وه ۔ ځکه ئے ددغو خبرو ذکر نۀ دے کړے دکومو توقع چه مونږ دیوسفزو ددومره لوئے خان دکلام نه لرله یا لرل پکاردی ۔

دخان مرحوم په نظمونو کښے یو نظم چه عنوان نۀ لری اوځکه نو په غزلیاتو کښے شمیر دے ۔ خو دا هم ځان له یو ډیر دلچسپ نظم دے ماورله د"په مېږ کښے نۀ خبریږم" عنوان ټاکلے دے، په دے نظم کښے ئے داحقیقت ښکاره کړے دے چه بنی آدم دخلقو دخولے نه په مېږ حال کښے نۀ خلاصیږی ۔ ددے نظم یوڅو

شعرونه به ددے نظم مقصد اهمیت او زړهٔ دابشکنه څرګنـده کړی .

نهٔ ے څوک پرېږدی دننـه نـهٔ بهـر
نهٔ ے څوک پرېږدی په سوری نهٔ په نمر
نهٔ ے څوک پرېږدی نهٔ په ښهٔ نهٔ په بده
نهٔ ے څوک پرېږدی په عجز، نهٔ پـه شـر
نهٔ ے څوک پرېږدی په کورکښے نهٔ په کوټ کښے
نهٔ ے څوک پرېږدی پـه سـمه نهٔ په غر

دغه شان دېر مثالونه ئے د تقابل ورکړی دی او آخری شعرئے دے .

نهٔ ے څوک پرېږدی بل نوم نهٔ شاد محمد
نهٔ ے څوک پرېږدی زړهٔ ډک نهٔ بے خـبر

دغے په نظمونو کښے ئے یو نظم دے چه عنوان نهٔ لری - خو ملاّ دا یوه مرثیه ده چه خان مرحوم د خپل کوم نژدے رشته دار (زوئ وی ور وغیره) په مرګ ئے ویلے ده - په مقطع کښے ورته خانِ مرحوم خپله د افسوس غزل" ویلی دی - ددے مرثیے یو څو شعرونه وړاندے کوم ہے

چه د مخ په پلوښت دګور راجل کـړ
اوس د دب په تابخشش اوکـړی
چه دپور ته سانګ ددے دارالفنا کړ
(.....) زهٔ یم مرضیٔ مرګ ته قریب یـم
په تقدیر کښے دِخدٔ ووهغه درېښی شو
شفاعت دِ درسول الله نصیب کـړه
اور دغم د په مه خپلوانو بـل کـړ
رب دِ مل شه چه د ځان دموره مل کړ
په طرف دِ دعقبیٰ په لاره مـنزل کړ
دوغ وجود دِ اجل ستا له ما اول کـړ
صاف وجود دِ دارذالو په لاره غـل کړ
چه د ګل د ښے ځوانئ خاورے ازل کړ

چاد یاران اصحاب ګل بزرګـان دِ مـز شـه
خدائے چه ستا په بیابان باندے بو رجل کړ

آخری شعرئے دے ہے

یوساعت چه یې د زړهٔ نه نهٔ هېرېږې
شاد محمد دافسوس څُکه جوړ غــزل کړ

دې مختصرې شان مرثیې نه موږ دومره درې خبرې معلومې شو ـ یوه
خو داچه ددغې رشته دار نه آګاهو، ددغې رشته دار مور هم حق رسیده شوې وه ـ او
دغه داغ یې هم لا په زړهٔ وو، چه ددهٔ دمرګ بل زخم پرې اولګېده ـ بله دا چه
خان مرحوم په دغه وخت کښې پخپله هم سخت ناجوړه دے او غالبًا چه په عمر هم
ضعیف شوے دے ـ درېمه دا چه خان مرحوم ددغې خوږ رشته دار په مرګ
څهٔ ډېره هائې واویلا نهٔ ده جوړه کړې بلکه دمتوفي دپاره یې دبخښنې دعاګانې
کړې دي ـ دخدائے فضل ، درسول الله صلی الله علیه وسلم شفاعت او بیا دڅلورو
یارانو (رضی الله عنهم) او دګُل بزرګانو مدد یې غوښتې دے ـ دا خبرې هم دخان مرحوم
په ژوند کښې د ژور مذهبي اثر عکاسي کوي ـ

په دغه مرثیه کښې یې دخپلې ناجوړتیا ذکر کړے دے ـ خان مرحوم دخپلې
ناجوړتیا ذکر بل ځائې په یو بې عنوانه نظم کښې هم کړے دے ـ په دے نظم
کښې وائي ؎

سخت مرض مې دبدن تازګی دوره کړه
لکه تېر شي په چمن دګل بهار

زهٔ بې تبې یم د تبې له تاؤ کرم　　بې انګاره یې زړهٔ سوزي بې انګار
ناعلاجه یم له دغه طبیبان شول　　هسې زهٔ په سخت مرض یم ګرفتار
یو طبیب مې دمرض تشخیص اونهٔ کړ　　خدائے په هسې رنګ مرض کړمه بیمار
څوک مرض ته مې جوله او یرقان وائي　　بعضې وائي چه پرې نهٔ یو خبر دار
او چې شوې علیمه تر،ګوته مې زېړه　　خوب خوراک مې نشته هم د زړهٔ قرار

ما څرانګ دګل په لاس نیولے نهٔ وو
له اول مې تن سورے کړو خار

شاعران اکثره دعشق دمرض ذکرکوی په دے نظم کښے آخری شعرونه

څه داسے دی چه د شاعرانه عشق مرض ښکاری خو نور استاد او برم د

مرثیے اشعار که سره یوځائے کړے شی نو ددے نه څهٔ بل څهٔ حقیقی بیماری

ثابتیږی خو نهٔ شو وئیلے چه دا څهٔ بیماری وه ؟ چه هیڅ طبیب ئے تشخیص اونهٔ کړے

شهٔ -

په پښتنی معاشره کښے د پښتون او دغیر پښتون فرق نن هم ساتلے شی خو څوا

څود افرق ډیر زیات ساتلے شهٔ - اصلاً په پښتنی معاشره کښے ددے قسمه خلق

او سید ل اصل پښتانهٔ، کسبګر او خدمتګار قسم خلق او پیرخانه میاګان سیدان.

اسلام خو ددے فرق او دبیلتون اجازت نهٔ ورکوی - خو سره ددے علمه

دغه بیلتون بخواهم موجود وو ، او اوس هم موجود دے - د اصیل او دغه اصیل چه

کم اصل یا کمین وغیره هم بللے شی - تفاوت د نورو ژبو په شان د پښتو پــه

شاعرئ کښے هم لیدے شی او ډیر متلونه پرے جوړ شوی دی - "خان مرحوم" دکلام نه

ښکاری چه هغهٔ هم دغه عقیده لرله او ځکه ئے ددے ذکر ډیر ځایه کړے دے

دمثال په څیر یو څو شعرونه وړاندے کولے شی -

راته وایه بنــدہ وک دے سـرتر پـایـه
د اصیله خطا خــیژی خو کـــم تر
بد اصــلانو تـه خطا ، خطا نـهٔ وی
خطا مرګ دے اصیلانو تـه اکـــثر

که یو اصیل، دویم جولا وی یوذره نهٔ کا عزت دپښتون خوا

"خان مرحوم" داولاد دتربیت ذمه داری په پلار اچوی او رښتیا خبره

داده چه پلار قابل وی نو داولاد دښهٔ تربیت او دتعلیم انتظام کوی او که پلار

پخپله نالائقه او نااهله وی نو داولاد په څهٔ تعلیم او تربیت اوکړی -

خان مرحوم وائی ؎

دکم اصلو نه ادب ، نهٔ پرے پوهیږی

دا تعلیم د خورد سالئ دے د پـــدر

چه ئے پلار وی ناخـــبره د ادبـه

فرق کم دے په مابین دَدهٔ اَوْ خــر؟

ځنې وخت پلار رانی او اُو ... وی - خوخدائے پاک ورله پوهه ورکړے وی او د خپل اولاد د تعلیم او تربیت بنهٔ خیال او ساتی - نو اولاد ئے مؤدب او مهذب شی او لوئیو درجو ته اوخیژی - او اکثره داسے وی چه پلار که تعلیم یافته وی خو چه شته من وی نو د اولاد ادب او اخلاقو له توجه نهٔ ورکوی - نتیجه ئے داوی چه اولاد ئے بنګی چرسی ، خوشے بیکار عیاشی او جوارګر وغیره اوخیژی خان مرحوم هم دے ته اشاره کړے ده وائی سه

په بدئ کښے د خپل ځان خراب کړه

هم د واړه شــرمنــده کړکل نسب

او د دے شعر نه ئے څرګنــدیږی چه هغهٔ بد اصل او بدنسبه ته څومره سپک کتل - سه

که ذکهٔ ستا له حکمه غــیر په بــله لاړم

راته وایـه بیا بد اصـــل بــد نسـب

د اصل او د نسب بدلول شرعًا هم لویه ګناه ده - په حدیث کښے دد ے ډیره غندنه شوے ده ، خو نن صبا د نسب بدلول یو عام څیز ګرځیدلے دے - او د همدغے بد عمل نتیجه ده چه مونږ نن صبا بے شماره ډیر سیدان ، افغانیان قریشیان ، صدیقیان ، فاروقیان وغیره وغیره وینو که چرے اصل شجرے ئے اولټوے شی نو په نسلو کښے ایشانوئی کسان به هم دغه جولاهان ، ننداپان دوبیان کلالان وغیره اوخیژی - دد ے حرکت اصل وجه داده چه د تیرو زمانو داسے پښتنو او نورو د اوچت خاندانونو خلقو به داسے قسم پیشه ورو او استکارانو تـــه

په درنه سترګه نهٔ کتل - نو دے خلقو د خپلو پلرونو نیکونو اصل شجرے پریښودے او د ځان نه ئے سیدان، قریشیان وغیره جوړ کړل - دا یو اوږد بحث دے او د بیان ئے دا موقع نهٔ ده - مقصد ئے د دے ذکر نه دا وو چه دا قباحت د ښ نه شپیتهٔ اتیا کاله پخوا - خان مرحوم هم محسوس کړے وو او د دے عند نه ئے کړے ده وائی سه

د دنیا د پاره اصل به بدل کړه

امی ځان به کړے مـلا په سرئے تاس

بل ځائے وائی سه

په حاصل د دے دنیا اصل بدل کړے

کهاره شے میاں، کله ملا، کله امام

او عجیبه خبره دا ده چه ن ورځ هم زمونږ په جماعتونو کښے سیدان ستانه دار یا پښتانهٔ امامان ډیر کم دی، اکثره پکښے هم دا سے خلق دے او دا حقیقت هم دے چه اصل یا په مال پټیږی یا په علم -

د وټیلو خبرے ډیرے دی خو خبره اوږده شوه ځکه زهٔ دیو نظم په ذکر دا بیان ختموم - هغه دا چه خان مرحوم په خپل کلام کښے د ځنو مخالفینو د مخالفت ذکر کړے دے - مخالفین او دښمنان خو ښ ثوک لری - پیغمبران هم د دے نه نهٔ دی خلاص شوی، خو خانِ مرحوم د دے وجه څهٔ نهٔ ده ښودلے بلکه وائی چه زهٔ پخپله هم په خپله خطا قصور خبر دار نهٔ یم - لکه چه وائی سه

زمانه شوله له مانـه روکـښ دانه

چه خبر نهٔ شومه هیڅ د خپله ځانه

هر سړے د دوستئ نه امان غواړی   هر آشنا ئے خپلولئ کښے شوستوما ته

زهٔ که ډیر مدار صفت د خپل آشنا کـړم   مګر تینتی توبه ګار به یار له ما نه

که زهٔ ښهٔ خبره کړم ځان به خفه کړی   د کنځلو نه به ځان به کاندے ګرا نه

دوست دښمن ے همه وارہ سره یو شو

په غصّه شو راته وارہ یک همانه

او په آخره کښے عجیبه شان توجیهه کوی، چه معماشان ښکاری ~

هیڅ ګناه په ځان کښے نۀ وینم دسره

بے له دے په پیسه یم ناتوانه

ځکه چه دمردان خان دیوسفزو پښتنو رئیس او پیسه نۀ لرل، څه ناشونے

غوندے خبره ده، خوځوک څۀ ویلے شی - خان مرحوم پخپله وائی چه ~

داکارونه دتقدیر دی شاد محمده

عبث خوشے ګیلے کرے د هر چا نه

هان! یوه اهمه دذکر وړخبره داده چه دخان مرحوم په دے دیوان کښے

یو څو نعتونه هم شته چه عنوان نۀ لری - ما پرے "نعتیه" عنوان ورکړے دے

ددے نه علاوه دخان مرحوم کتاب معراج نامه کښے هم ځائے په ځائے نعتونه لیکلی

شوی دی - داهم دخان مرحوم کلام دے، غوره به داوی چه ددے دیوان په آخر

کښے دضمیمے په طور دغه نعتونه هم ورزیات کړے شی -

په تلوتلو کښے یو څو شعر ونه -

دمکے په تلو به هیڅ خرحاجی نشی جاهل کله شی عالم په تش کتاب

رحمان بابا وائی ~

دمکے په بزرګئ کښے هیڅ شک نشته

وے خر به حاجی نۀ شی په طواف

او شیخ سعدی وائی ~

*خر عیسیٰ اگر به مکه رود چون بیاید هنوز خر باشد*

مقصد ددریو وارو تقریباً یو دے خو -

خرچا دکعبے په طواف نۀ دے لیدلے - هو مکے ته تلونکی خرونه ډیر دی -

سعدیُ لږه مبالغه کړے ده - عام خرۓ نۀ دے اخستے د عیسیٰ علیه السلام خرۓ ذکر کړے دے چه دغه خربه هم چه پرته راشی نو بیا به هم خر وی! ددهٔ د حاجی ذکر نۀ دے کړے دا دشعر کمال دے) خان مرحوم د طواف ذکر نۀ دے کړے خو علاوه ددے نه چه خر که مکے ته لاړ هم شی "حاجی" کیدے نشی - یو بله نتیجه ئے ترے هم را ایستے ده چه په "تش کتاب" څوک "عالم" کیدے نشی - یو بل شعر دے ؎

شاد محمده که دِ حٔی حیا په کیـــږه
مرګ له دا سے کیږے اوګـنړه بهتر

مقابله کړئ د اقبال شعر ســره ؎

اے طائرِ لاهوتی اس رزق سے موت اچھی
جس رزق سے آتی هو پرواز میں کوتاهی

د خان مرحوم یو شعر دے ؎

که ئے لاندے تر قـدم څلور اقـلیم شی
بیا به وی د درے نوره امیـدوار

سعدیؒ وائی ؎

هفت اقلیم ار بگیرد بادشاه همچنان در بندِ اقلیمے دگر

د سعدی په بیان کښے ډیره مبالغه ده ځکه چه درسته دُنیا اووهٔ اقلیمه ده بل اقلیم کوم دے چه بادشاه به ئے په فکر کښے اوسی - بله دا چه اووهٔ واړه اقلیمه تر قبضے لاندے راوستل نا ممکنه خبره ده ـــ ..ـے په مقابله کښے د خانِ مرحـــوم شعر په حقایقو مبنی دے - څلور اقلیمه نیون څهٔ داسے نا ممکنه نۀ ده - سکنـدر تیمور چنګیز ډیره دنیا لاندے کړے وه - بله دا چه څلور اقلیمه که څوک واهم خلی نو هم درے نور پاتے کیږی -

دا سے نور شعرونه هم شــته خو -

شاد محمد دریاب ډک دے د کهومرو
چه په لاس راتلهٔ هغه ے کړه بهر

# د دے دیوان رسم الخط (ییک دود)

دپښتو د رسم الخط د تاکلو دپاره بحث د روانے پیړئ د اولنئ څلوریزے نه شروع شوے دے۔ ډیر ییکونه، بحثونه او فیصلے پرے شوے دی۔ خو خبره لا سرته نهٔ ده رسیدلے۔ او د پښتو دا انتهائی بدقسمتی ده، چه د دومره لوے او پخوانئ ژبے، صحیح او معیاری ییک دود تر اوسه نهٔ دے تاکلا شوے۔

زهٔ د شلو پنځویشتو کالو راسے د پخوانئ قلمی نسخو په اساس په دے کوشش کښے لګیا یم او د لسانیاتو د یو طالب علم په حیث خپل فرض هم ګڼړم چه څهٔ صیح معقول او قابل عمل حل ئے را اووېستے شم۔ په دے غرض چه ے د څومره دیو بو مقد ے ییکلا دی۔ په ضروره یوه کښے ے د دغ دیوان یا کتاب د رسم حم په حقه یو څو کر ښے ضرور ییکلا دی۔ او اوس خو دغه عمل ځنے نورو محققینو هم خیته کړے دے۔

د دے دیوان اصل نسخه زما د وړاندے نهٔ ده بلکه لکه چه ما اول کښے ذکر کړے دے، دا د اصل نسخے نقل دے، اصل نسخه هم ( زما په خیال ) یو ښهٔ عالم په لاس ییکلے شوے ده۔ او دا نقل ئے هم دیو ډیر ښهٔ او خوشنویس عالم لاس دے۔ خو د خط معامله هم هاغه شان ګډه وډه لکه چه د دے وخت ( د دے پیړئ اوله څلوریزه ) نور قلمی او چاپی کتابونو کښے لیدے شی لکه۔

(۱) د غونډئ (ی) او د اوږدے (ے) هیڅ فرق نهٔ دے ساتلے شوے۔ چه کاتب له کومه "ے" مخے له ورغلے ده هغه ئے ییکلے ده۔ یعنے اکثره ئے د غونډئ "ے" په ځائے اوږده او د اوږدے په ځائے ئے غونډئ "ی" ییکلے ده۔

(۲) کاتب عالم سړے دے ځکه عربي خط پرے غالب دے - د دغے اثر تر لاندے ئے کاف او ګاف کش سره (یعنے ک ګ) نهٔ دی لیکلی بلکه ك او ګ ئے لیکلی دے -

(۳) په دغه وخت کښې "ځ" لا نهٔ وو اختراع شوے (یا عام شوے نهٔ وو) ځکه د دغے وخت دیک د دود مطابق ئے د ځ او څ تمیز نهٔ دے کړے - د دواړو ئے په څ لیکلی دی -

(۴) "ښ" او "ږ" ئے هم استعمال کړی دی خو د پښتو د دے مخصوص توروپه استعمال کښے ئے هیڅ احتیاط نهٔ دے کړے - لکه د څ په ځائے س او د س په ځائے څ دغه شان، چرته چه ښ پکار دے هلته خ او چرته چه خ پکار دهٔ هلته ئے ښ لیکلے دے -

داسے واړهٔ نړی نور خصوصیات هم شته چه دومره اهم نهٔ دی.

خان مرحوم یوسفزو خان وو او د مردان او سیدونکے او بنکاره ده چه مردان د یوسفزو د مرکزونو نه یو لوئے مرکز وو - د یوسفزو ژبه یا لهجه (　　　) په دغه وخت کښے پسرنګیانو د ځنو محققینو مستشرقینو په رائے د یوسفزو لهجه (　　　) معیاری ګرځولے وه - یعنے سرکاری ملازمتونو وغیره د پاره به د یوسفزو د ژبے (لهجے) شرط کیښودے شو - هسے خو زهٔ د خټکو وغیره وَ او د یوسفزو د دواړو ژبو نه ښهٔ واقف یم - د دوئ د تلفظ اختلاف د پښتو ژبے د یک د پاره یو معیاری رسم خط په تړاکلو کښے لوئے خنډ دے! او اوس چه کوم رسم خط عام طور سره رائج دے چه زهٔ ئے هم سره د دے چه زړهٔ مے نهٔ غواړی، پابندی کوم خو په دے کښے ځنے حروف د یوسفزئ لهجے (　　　) چه په قطعی پښتونخوا کښے ویلے کیږی، سره هیڅ مطابقت نهٔ لری - بلکه بیخی مخالف دی - او دا ډیره اهمه او غټه خبره ده ځکه چه دا تورې د راتلونکو کروړونو بچو د تعلیم په لاره کښے به یوه لویه ګرانه پیښوی - ځکه زهٔ ضروری ګڼم چه د ښلو راتلونکو نسلونو

د تعلیم د لارے نه لوئے خنډ اوګرانه د اولس نه لرے کړے شی ـ که دا اهم کار اوس اونهٔ کړے شی نو بیا به یو وخت راشی چه اوبهٔ به د سره اوړیدلے وی مونږ خو به نهٔ یو خو زمونږ راتلونکے نسل ، بچی به مو معاف نهٔ کړی۔

مرحوم شاد محمد خان په دیوان کښے ماشهٔ د پرخهٔ خو بیا نهٔ موندل وے بیا هم ځنے نکتے مے مخے ته راغلے چه د پښتو د نوی قابل عمل رسم خط په حقله پکاریدے شی ؛ که چرے د دے دیوان اصل نسخه چه غالبًا د محمد رفیق استاد د لاس لیک دهٔ په لاس راشی نو کیدے شی چه څهٔ نورے نکتے هم تر ے په لاس راشی ـ

وَمَا توفیقی اِلّا بِاللّٰه

خاکسار
سیّد خیال بخاری



کوره هسے پاک سبحان دے رب زما[1]
چه صاحب دَ کُل جهان دے رب زما
نهٔ ئے زیان نهٔ ئے نقصان[2] نهٔ ئے زوال شته
بے زوال بے نقصان دے رب زما
شریک نهٔ لری پخپله بادشاهی کا
بے شریکه بے مکان دے رب زما
څوک به ماشے په مره کیلاه موږنهٔ کا
دهر چا روزی رسان دے رب زما
نهٔ ئے څوک په سترګو وینی نهٔ لیدے شی
دهر چا نه پټ پنهان دے رب زما
معرفت ته ئے څوک نهٔ دی رسیدلی
هسے بحر بے پایان دے رب زما

---

[1] تقابل ئے د رحمن بابا د دیوان اولنی شعر سره اوکړئ -
کوره هسے کردګار دے رب زما
چه صاحب د کُل اختیار دے رب زما

[2] کمے

په نبی آخر زمان صلی الله علیه وسلم زمونږ د پاره
رالیږلے بنهٔ قرآن دے رب زما

په بدئ باندے خفه د بدکردار دے
په نیکئ باندے شادمان دے رب زما

د بدئ نه ئے د[1] نهی په مونږ کړی
د نیکئ کړے فرمان دے رب زما

مسلمان دِ په زبان نوم د رب اوښکی[2]
چه ورکړے بنهٔ ایمان دے رب زما

مومنان به سرفراز په بنهٔ بخشش کا
د کافرو په خفګان دے رب زما

(په[3] جنت کښے) به ئے تل ترتل مقام کا
حکم کړے په دا شان دے رب زما

شاد محمد له کل ګناه به دِ معاف کا
چه په هر چا مهربان دے رب زما

---

[1] امر بالمعروف او نهی عن المنکر ته اشاره ده۔ [2] اخلی یا اوباسی
[3] (په جنت کښے) به ئے تل ترتل ..... الخ (؟) . یا . (په دوزخ کښے) ..... الخ) په اولنی صورت کښے مومنانو سره تعلق او په دویم صورت کښے کافرانو سره! په قرآن پاک کښے د دواړو د پاره "خالدین فیها" او د دے هم معنیٰ الفاظ راغلی دی .

# درنعت سرور کائنات صلی اللہ علیہ وآلہ وسلم علیه افضل التحیات

محمّد آخر زمان ے دے پیشوا
اُمید شته چه ما به نهٔ کا بے نوا

دهغهٔ نه به کم بخت و بدبخت نهٔ وی
چه څوک ستا دلاره تلهٔ کاندی سوا

که نوری صورت دِ شوے آخرین دے
مگر مشر د آدمٔ ے دَ جوا

اسم ستا محمّد صلی اللہ علیہ وسلم احمد محمود باله شی
خوند د اسم ته دِ زهر شی حلوا

د درمند و زړونو درد شی په تا لرے
تهٔ رحمت خدائے پیدا کړے هم دوا

هغه کس به په دوزخ باندے وربخ کا
چه لری ځان ستا له حکمه ناشنوا

چه څوک ستا په لارے سم ځی له یقینه
خدائے به دهٔ لره جنت کاندی روا

که څوک ستا په رسالت کښے شک شبه کا
د هغهٔ په کُفر دے کلام گوا

---

ل پیغمبری

هیڅ شک د کفر نشته دے بے شکه
چه دِ نهٔ لری د حکم څوک پروا
شاد محمد وائی چه ستا د کوڅے سپے یم
په امید یم د رحمت غنچه کړه وا

دکه سرے ) شی په وصف د چار یار ځان زما
سرته به ورنهٔ شی چه هیڅ نهٔ شی توان زما
مشر یار صدیق دے په تحقیق د دین ونه
دویم عمر فاروق دریم عثمان سلطان زما
څلورم ئے شیر علی دے کافران تر په خطر دی
لقب د شیر ور کړے دے غنی رحمان زما
نور اصحاب هم دی په مثال د آسمان ستوری
کرم فضل رحمت پرے کړے ذیر سبحان زما
دین د پاک نبی به وی روښانه تر قیامته
باعث کړهٔ پیدا دا عالمان نیکان زما
دا هم معجزه د پاک سوور خیر البشر ده
کا یو مسلمان وی وران به وی جهان زما
د به دشمنان یم دوه جوړه قتل ته کړی
ته مے کړه روزی په فضل خپل امان زما

ئه رکه ستړے ) شی .... الخ

راکړه ته بړے په خپل کرم ربه کریمه
لاندے مے تر پښو کړی دواړه نفس شیطان زما

ما هم د حبیبؐ په برکت هم دیدار انو
غوړ مے کړه وجود د خپل رحمت باران زما

هم د اصحابو د دولیانو له حُرمته
وائی شاد محمد چه کړه نصیب ایمان زما

غلط مهٔ شه په سنګار دے دُنیا
په دام نهٔ شے ګرفتار دے دُنیا
لکه ناوے د دولئ په پرده پټه
ښهٔ او بد نهٔ دی اظهار دے دُنیا
د دُنیا طالب نقصان به په سود اخلی
د یارو مرګ دے په مار دے دُنیا
نا دانان لکه ځان پرے راغوړینی
تر نه ښتی هر هوښیار دے دُنیا
بے وقوف به شړئ اخلی شال به ور کا
هم بدل کا ګل په خار دے دنیا
فرض واجب سُنت به نهٔ پیژنی ګوره
مُبتلا وی تل په کار دے دُنیا
حرصناک ته که یو غر د زرو جوړ کا
موړ به نشی طمعه دار دے دُنیا

بے طاعته لکه بُت هسے حساب کا
حیف ئے مهٔ گنڑه گفتار ددے دُنیا

دبنده معنیٰ بندگی ده په طاعت کښے
بے طاعته دے حمار ددے دُنیا

گُناوړو ته حلال حرام یو شان دی
بنهٔ او بد گنڑی یوشمار ددے دُنیا

چه نازیږی څوک ددے دنیا په عمر
دگولۍ دے تیز رفتار ددے دُنیا

ددُنیا په دام دِ ولے ځان اسیر کړه
سم مثال دے بل انګار ددے دُنیا

عاقبت به خزان راشی شاد محمده
تل به نهٔ وی نو بهار ددے دُنیا

---

په څو قسمه مقرره دا دُنیا
څهٔ ده بده څهٔ بهتره دا دُنیا

یو هغه چه تر زکوٰة خلق بیل نهٔ کا
دهغو ده د ضرره دا دُنیا

چه خیرات کوی زکوٰة پکښے اوباسے
هغه بنهٔ ده سراسره دا دُنیا

چه خیرات د رب په نام پکښې ورنهٔ کا
سر تر سره ده د شره دادُنیا
چه چا خاص د رب په نوم چالره ورکړه
د مغهٔ مخکښې د هبره دادنیا
بې دیا چه څهٔ د خدائے په نامه ورکړے
ډیر د حده کښنرم غوړه دادُنیا
ځنې خلق ئے په منت ځان لره غواړی
څوک شړی له ځله دړه دادُنیا
بعضې خلق ئے پتېبرې د دوستئ نه
څوک ئے غواړی بې خبره دادُنیا
بعضې خلقو نه په سوړه نښوُځی
د چالانده د منتره دادُنیا
چا ته ډیره ده خوږه تر قند نبات ته
چا ته تیزه تر خنجره دادنیا

شاد محمد ره امان غواړه له دنیا نه
همه دکه د خطره دادُنیا

---

په هنر سره د سپینې زنې سر را
سرهٔ عذار دِ ناغُدار لب ثمر را

زړهٔ مې ستا په وصالت لېسې وتلے
رحم اوکړه هغه تلے خوږ ځیګر را
دا مې عرض دے په تا بانده محبوبے
چه جاګیر درا تخت دسپین صدر را
د زړهٔ رخت رم دبیلتون فوځونو لوټ کړ
په مدت دوصالت فوځ ولښکر را
دبیلتون دجنګه ځځ به په بل نهٔ کړم
خو په لاس کښے وایم توره دباور را
که مې ستا وصال روزی شو نازپروره
مبارک ماله په هغه لوئے اختر دا
د زړهٔ سرے دبیلتون په تیغ پرهرد ے
دوصال پټه مرهم مې دپرهر را
غل بیلتون مې تښے لرے دځیګر کړے
تور زلفان دِ ضامنان دځیل صَدر را
زهٔ پتنګ دځ په شمعې دستی شوم
دوباره دپتنګ بیا سوے وزر را
عنایت او مرحمت په ما غریب کړه
ځان سره مکان په عطرو معطر را

---

له سینه - شاعر په هر ځائے کښے دد ے تلفظ (صَ -دَ-ر) کړے دے -

زهٔ سائل ستا د وصلت په طلب کړځم
د امید غنچه په وقت د نماز یګر را
نالیدلی لار کښې پل اخښتے نهٔ شم
رهبری باندے تهٔ خپل فضل رهبر را

شاد محمدؐ په نوکرئ د سپو حساب کړه
طلب وائی چه په ورځ د محشر را

---

(همیشه) په انتظار یُمه داستا
لکه خس د په دربار یُمه داستا
سر تر پایه مے همه وجود ستی شو
شپ و روز نسکور په نار یمه داستا
همه حکم دِ په سر زما قبول دے
زهٔ غلام حکم بردار یمه داستا
د عشق پیتې مے دے ایښے په سر باندے
ستا په عشق عاشق نامدار یمه داستا
که دِ تورے زلفے دام وی ښکار ته ایښے
بند په زلفو دِ زهٔ ښکار یُمه داستا
که په عشق کښے دِ حال نهٔ وائم وُچاته
لکه بوئ هسے اظهار یمه داستا

که دِلبِ راته په خوله کړه نازپروره
عمر ټول به منت بار یمه داستا
یو خوا بل خوا تماشا کړم تماشبین یم
ګډ د حسن په بازار یمه داستا
دیعقوب[1] په شان په سترګو باندے ړوند شوم
زړه د وصل امیدوار یمه داستا
که هر څو علاج کوُمه نهٔ جوړیږم
غوځ د عشق په ذوالفقار یمه داستا
سپین صدر دِ دګوهر و خزانه دهٔ
پروت په ګنج لکه بنامار یمه داستا
خوب خوراک خندا ے نهٔ شی سرګردان یم
اوچے شونړے زیړ رخسار یمه داستا
که داستا یاری دسر په پریکیدو وی
شاد محمد واوئ زهٔ یار یمه داستا

---

څه په حکم باندے سم دخپل آشنا
غیر غیر مه څه یو قدم دخپل آشنا

---

[1] دیعقوب علیه السّلام نهٔچه زوئے (حضرت یوسف علیه السلام) جدا شهٔ - نو واوئ چه هغه د رپسے په ژړا او غم کښے ړوند شوے وو اوچه دهغهٔ د بیا موندلو خبر ورله راغے نو روغ شهٔ -

هغه نهٔ ګڼړم صادق په عاشقۍ کښې
چه شريک نهٔ شي په غم دخپل آشنا

په همه جهان مې هيڅ قدر ے سود نهٔ شي
زهٔ به ځار کړم کل عالم دخپل آشنا

که هر څو د بيلتانهٔ په تيغ پرهر شوم
د وصلت غوارم مرهم دخپل آشنا

سر نګون يوا ځې ناست يمه ځان ژاړم
تل دستړګو مې ځئ نم دخپل آشنا

په هر ځائے وصف کوم دخپل دلبر زهٔ
خيال په زړهٔ لرم هر دم دخپل آشنا

چه د ِنهٔ وينم په روغو سترګو ړوند يم
هم په تيغ بمه قلم دخپل آشنا

د ديدن ګډ کوټ ګښوں په لاس کښې
کور په کور اوچم په چم دخپل آشنا

هسې غم دخپل دلبر راباندے زور شهٔ
لکه لام[1] کړمه خم خم دخپل آشنا

د هجران په اورستی زړهٔ په مے سوړی شي
که همدم شوم فم په فم[2] دخپل آشنا

---

[1] دلام حرف (ل) کوږ او خم دار دے

[2] خولهٔ په خولهٔ

عاشقئ کښے دګُنهٔ ے په حساب اوسُه
چه ځان نهٔ کړے زیات وکم دخپل آشنا
شاد محمد ګه دیار دیدن دِ خوښ ئ
سوال د رب کړه صحدم دخپل آشنا

---

کرم فضل ے رهبر کړه زما ربَ
قناعت راته په سر کړه زما ربَ
نفس شیطان په ما ناپسندے چارے کاندي
ما امان له هر ضرر کړه زما ربَ
لوئے واړهٔ زارهٔ امان ے له خزان کا
لکه ګل ئے تازه تر کړه زما ربَ
هر چه زهٔ یمه میوه دهغے وُنے
ترِ نه دفع بد نظر کړه زما ربَ
هم زما میوه تازه لره تر تله
یبوسٹ ترِنه بدر کړه زما ربَ
غم اندوه زمونږ دهّو لونه کړے لرے
همیشه په مونږ اختر کړه زما ربَ
حاجتمند موچا ته نهٔ کړے غنی خدایه
کل حاجات مو برابر کړه زما ربَ

---

[1] مراد ترے خاندان دے۔ [2] اولاد ترے مراد دے۔ [3] خشکی۔ خرابے

که صورت زمونږ دخاوړو دایره دے
په نظر همه سَرهٔ زرکړه زمارب
په خپل وصف مے گویا لکه بلبل کړه
په طاعت مے خوږ ځیگرکړه زمارب
دبدئ نامه له ما ځینےکړه لرے
په نیکئ مے نامورکړه زمارب
هم بَرے په دشمنانو باندے راکړه
هر دشمن مے زیر زبر کړه زمارب
شاد محمد د دکرم فضل امید کا
په سختئ کښے ئے اوس برکړه زمارب

---

سَراسَر شوے طالب دخپل مطلب
قدم غیرله لاړے مهٔ د ده دخپل رب
تهٔ دخدائے رسول په حکم عمل نهٔ کړے
سرهواله حُکم کړے بے ادب
خلقے[1] ازاره وے په خپله ژبه
په مدار به چاته نهٔ خوزوے لب
هسے تهٔ په بداعت کښے کړندے ئے
لکه اس زغلے بے واگو بے جلب

---

[1] ددے لفظ اصلی معنے داده چه دخپلو همځولو وغیره نه به شجاعت اوشرافت کښے زیاتوالے خوښکاری چه دلته بدعت دے یعنے دین کښے نوے خبره پیدا کول .

دنیکانو له مجلس کناره ناست ے
د بدانو سره ناست ئے مُـرکب[۱]
دالله رسول د ویرے ژړا نهٔ کړے
دُنیـا په غم کښے ژاړے گویوان جب[۲]
نیکی نهٔ کړے په بدئ کښے خوشحالیږے
دا بدی چه تهٔ کوے په کوم سبب
هیڅ دِ فرق د بدئ نیکئ اونهٔ کړ
لکه فرق دا وبو نهٔ کوی کب
په دا هسے عقل ستا ارمان ارمان کړم
چه په مِسُو بدله وے کړه ذهب[۳]
دنیکئ په کار کښے پل به بدل نهٔ کړے
د بدئ پکار کښے گرځے روز و شب
دنیکئ په کار کښے سعی کوشش نهٔ کړے
د بدئ په کار کښے ډیر کوے طلب
په بدئ کښے دِ خپل ځان خراب تراب کړ
هم دِ واړه شـرمنـده کړ کُل نسب
تهٔ چه ډیر په بدئ کښے خوشحالیږے
دا خوښی دِ ما ته ښکاری ډیر عجب

---

۱ کړووړ - یعنے کړ - یوځائے ۲ لوند - خوشت
۳ سرهٔ ذر

د حلالو خوړ طعام درته ترخ ښکاري
د حرامو ترخ طعام ګڼړے عنب
توبه ګار تر هغه کار شه شاد محمده
چه سوا وی د ښے لارے له مذهب

---

د بدۍ نه په هيڅ رنګ نهٔ شوے تائب
بدی تاله په خهٔ ښکاری مناسب
د نيکۍ په کار کښے پل اخستے نهٔ شے
په بدۍ کښے له تيزباده ئے غالب
د نيکۍ دِ په زړهٔ نهٔ تيريږی خيال
د بدۍ په هر يو کار کښے ئے طالب
په بدۍ کښے ځان د نورهسے څرګند کړے
د نيکۍ د هره کاره شے غائب
که کوے نيکی بدی پټه به نهٔ کړے
په اوږو دِ مقرر دی دوه کاتب
د شيطان د پاره هر قسم بدکار کړے
د ربِ د پاره نهٔ کړے فرض سُنت واجب
حق وئيل دِ چرے نهٔ راځی په ژبه
په جهان کښے مشهور شوے په کاذب

---

له اسګود - کوږ

سم په عکس باندے کار کړے له هر چانه
دغه کار راته ډیر ښکاری عجائب
دنیکو نو له مجلس کناره ناست ئے
خیال د زړهٔ لرے د بدو په جانب
په بدئ کښے له تمام مخلوقه زیات ئے
د بدانو تهٔ افسر ئے نهٔ نائب
د نیکئ له هره کاره خبر نهٔ ئے
د بدئ دِ له هر چا لوئے مراتب
شاد محمد دخپل رب په لاره سم شه
هم په حکم کړه عمل د خپل صاحب

---

چه دِ مخ له ما نه پټ کړهٔ په حجاب
هغه درنګ مے زړهٔ په تن کښے شهٔ کباب
نهٔ پو هیږمه په خپل تقصیر کناه زهٔ
چه په څهٔ سبب په ما کوے عتاب
یو ساعت مے بے لتانه هسے حال شهٔ
لکه خشکئ و ته ماهی کړے د دریاب
ستا دیدن زما ژوندون دے نازېروږه
بیلتانهٔ کښے خپل ژوندون وینم خراب
په ژړا ژړا مے دوا ړه سترګے سرے شوے
په بدل د اوښکو د ړومی تږ خوناب

یا مے وصل کړه له ځان سره محبوبے
یا پا ئسی مے کړه دَ زلفو په طناب
چه دِ نهٔ وینم له ځانه خبر نهٔ یم
لکه څَنګلی چه چا بنګ وی یا شراب
هره ورځ دبیلتانهٔ په ماچپاؤ دے
وصل نهٔ وینم په ویښه هم په خواب
دبیلتون ترس به هیڅ په ما او نهٔ شی
نهٔ شی ترس په ګروری د قصاب
شاد محمد ستا د دیدن په اسره ګرځی
که ئے رب کاندی له تانه وصل یاب[۱]

---

د وصلت دِ همیشه کوم طلب
سرګردان دی پسے ګرځم روز و شب
په مرض دبیلتانهٔ دِ مرضی یم
دوا ئی راته په خوله کړه دوا رهٔ لب
سپین رخسار دِ لکه نور هسے شعلے کا
د سرو تیک دِ بدرِ تام[۲] خال دِ کوکب[۳]

---

[۱] وصل موندونکے ، یو ځائے شوے

[۲] پوره سپوږمئی یعنے د څوارلسمے سپوږمئی

[۳] ستوری ۔

هر زمان مے رود د اوښکو په مخ کرځی
جا مه تره کرخووم په اوښکو جب
(واړه خورے) دِله حُسن شرمنده دی
هسے حُسن رب در کړے دے عجب
چه کتاب مے ستا د عشق دے شروع کړے
سبق وائم ستا د عشق په مکتب
څنے څنے مبتدیان څوک عالمان شو
څنے څنے ته حاصل شه ګل مطلب
هسے ستا عاشقی بحر بے پایان دے
خبردار دے ترینه پاک غنی لوئے رب
دواړه ورورزے دِ کمان بانړهٔ دِ غشی
ما پرِ ولی چه پرِ پورته کړے غضب
تل تر تله به دِ لاندِ تر احسان یم
که دِ موږ کړمه د ذنے په غبغبؔ
که زهٔ ستا له حکمه غیر په بله لاړم
راته وایه بیا بد اصل و بد نسب
حُان غلام د خیل دلبر کړه شاد محمد
لاس په نام ورته تل اوسه په ادب

---

لہ واړه خوړے) .... الخ
ؔ د ذنے قتے .

سرتر پایه شوم د عشق په دریاب ډوب
که مې پوره ته له دریاب کړې ځیل محبوب

که هر څو مرهم پرې ږدي زولن به نهٔ شي
چه پرهر مې دے دعشق په تیغ قلوب[۱]

ستا دیدن لپاره په غمو ستر کو ړوند شوم
لکه ړوند چه وو یوسف[۳] لپاره یعقوب[۴]

تل مې اوښکے په مخ درومي نهٔ اودرېږي
چهره زیړه یم په دا چشمه غروب

هیڅ له ځانه خبر نهٔ یم لیونے شوم
هم مې هیر شو نمر خواته قطب جنوب

که عیب جن مې خلق بولي ستا په عشق
په همه وارو عیبونو یم معیوب

امیدوار یمه د ځیل دلبر خبر ته
چه به ئې کله سرفراز شم په مکتوب

که څو ږدِ د عشق غم رابانده زوروي
هم د غم له بے غمئ دے راته خوب

شاد محمد که خلاصوي ځان به خلاص نهٔ کړي
ستا د عشق کهربا چه کړهٔ مجذوب[۲]

---

[۱] قلوب د قلب جمع ده په معنیٰ د زړهٔ - دلته د واحد په طور استعمال شوے دے.
[۲] کربا - مقناطیس چه وابنهٔ ځان ته راکاږي، مجذوب، جذب شوے - مطلب دا چه ستا د عشق کشش چه ځان ته رانښکلے دے.

بیلتانهٔ دکرمه هسے خوار غریب
چه به نهٔ وی بل له مانه بد نصیب
شب وروژ دبیلتانهٔ دلاسه ژارم
چه به کله شم دیار سره قریب
بیلتانهٔ دزرهٔ په سر باندے زخمی کړم
چه به کله شی وصال په ما طبیب
ستا دوصل په طلب لیسے طالب یم
بے له تا ے مطلب نهٔ دے بل حبیب
هغه ډم ے رُود داُوبنکو په مخ سم شی
چه خندا اوکړے پخوا کښے د رقیب
کل خوارهٔ راته دزهرونه تراښنهٔ شو
چه ے اوزبیښل ستا سرهٔ لبان زبیب
عاشقیٔ دِ لیونے لکه مجنون کړم
څهٔ به ما نصیحت کوی ادیب
شاد محمد دِ امیدوار دوصالت دے
لاس په ناف درته تل اوسی په ترتیب

---

چه دِ مخ راته بشکاره کړی بے حجاب
هغه درنګ ے دزرهٔ خونه شوه خراب

---

۱ سنقه، کنمش ۲ وصل

ستا دحسن ثانی نشته په جهان کښې
هسې حُسن دِ موسندلې له ثوابَ

نرئ شونډې دِ په مثل چوارې دی
سرهٔ عذار دِ ناعذار دی ترګلابَ

تور باڼهٔ دِ مقتدیان خال دِ امام دې
نهٔ به دی سربغیر دوړ وځو دمحرابَ

ستا دوصل ارزومند له حده ډیر یم
بیلتانهٔ کړمه په اوړ سینه کبابَ

زړهٔ په[1] شان یمه) دګړ بیلتون قصاب دې
خلاصې نهٔ مومی کړ وړ سے له قصابَ

غنی رب مے دِ دا ستا وصل روزی کړی
امان غواړم د بیلتون له سخت عذابَ

په ژړا باندې مے سترې دزړهٔ سرشو
همیشه مے سترګې سرې شوې دخونابَ

هغه خلق به په ما ملامت وائ
چه خبر نهٔ وی ذره دعشق له بابَ

که هرڅو لکه غواص[2] مے غوپې اوکړې
دُر رانغې ستا دعشق له دریابَ

---

[1] په شان یمه دګړ ... الخ

[2] موجوڼا ۔ غوړلے وهونکے ۔

هیڅ حاجت زما په نوړو نشو نشته
نشه راکړه دسرو لبو له شرابه
د وصال طبیب ے تښتی له علاجه
د بیلتون مرض له حده کړم بے تابه
توره زلفه دِ د مخ ځنے هاله کړے
گل رخسار دِ شعلے کاندِ له آفتابه
هیڅ نظر مے یار په او ښکو باندے نه کړی
که مے موج د سترګو زیات شه له سیلابه
هغه چا چه ستا مجلس دے اوریدلے
هغه کله نغمه موی د ربابه
که چا ځان دی ستا په عشق کښے محو کړه
خبر نه وی له ثوابه له عذابه
عاشقیٔ کښے د کنړے په تول کښے سم شه
یوه ذره قدر له نشے بے حسابه
عاشقیٔ کښے سم صادق لکه سره زر شه
نه چلیږی کوټ کوټه ډبه کذابه
مجدم زاری کوٌمه په سر توره
که قبوله شی د رب دلوئے جنابه
شاد محمد که ته وائے چه زه ورشوے
معشوقے ته اوسه پرے او بے جوابه

---

له شپول ۲ اصل کښے کل دے گوند ے کل وی -

دادُنیا ده داوبو په سر حُبابؒ
هسې عمر په رفتن دے په شتابؒ
هرچه لاړ دوباره نهٔ راځی بیرته
نهٔ رادرومی اُویهٔ تیرے دسیلاب
راشه ځان له په جنت کښې کوربنا کړه
داجهان دے عاقبت خانه خراب
په طاعت په عبادت باندے زړهؒ یخ کړه
چه ځان نهٔ کړے ددُنیا په اور کباب
دشیطان دنفس له شره ځان خبر کړه
چه دِ ډُوب نهٔ کاندی دوئ په لوئے دریاب
هریوکس چه دشیطان په پند عمل کړی
خود آخر به کړی پخپله ځان خراب
څوک چه اورته نیز دے کینی هغه سوزی
مناسب دی چه په اورکښې توئے کړے آب
دشیطان مثل داور دے باور اوکړه
نیک عمل درلره اوبهٔ کړی پاک توّاب

---

ل بربوقئی
ل تیزئ سره تلونکے دے۔
ل نیک عمل ورله اوبهٔ کړی پاک تواب

دی شیطان زمونږ نیکهٔ سره بد کړی[۱]
دغه بد به هیره وی چه وی دواب[۲]
دا د ننګ چه دی هم تښتی له قصابه
تا په زور کړهٔ حوالے ځان د قصاب[۳]
دوارہ سترګے د دنیا کړه ځان بیدار کړه
ولے تهٔ شوے د غفلت اوده په خواب
د ګناه که دِ په ګیډه کښے مواد وی
د طاعت ور پسے زر اوکړه جُلاب
بنا شوے د خاورو ځان کړه خاوره
خو[۴] د آخر به دوباره بیا شے تُراب
څهٔ انسان سره پکار کبر زهوا ده
چه ځان سور د باد په اس کړی بے رکاب
چه صادق وی په هر کار کښے مسلمان دے
مختورن دے خدائے رسول ته هر کذاب

---

[۱] اشاره ده د شیطان هغه ملے ته چه بابا آدم او حوائے دهغه ونے دمیوے خوړلو ته آماده کړی وو چه د دغے میوے دخوړلو نه پس هغوی دے زمکے ته رانوز کړے شول ۔

[۲] دواب جمع ده ۔ خاروی ځناور ۔

[۳] تا په زور خوله ځان کهٔ د قصاب ۔

[۴] خو د آخر به دوباره شے بیا تراب ۔

بد عمل که پټه وی کله پټیږی
څوک په پټ کاندی پهٔ کوته دا آفتاب
(فکر[1] اوکړه) لکه عود چه په اور کیږدی
بوئ دعود به شی څهٔ رنګ پټ په حجاب
راشه اوباسه توبه له همه غیرو
چه اونهٔ کړے نسوار بنګ وچرس شراب
پنځ بنا په ستر ګو سر کړه تهٔ قبوله
عبادت کړه هر ساعت دخپل ثواب
شاد محمد غوږ کانږهٔ کړه هم سهٔ ګوره
رقص وناچ اوسارنګی دوکړی رباب

---

سپین زنخ[2] دے د دلبر په مثال سیب
په امان دِ غنی رب کړو له آسیب
د وصال په دلاسه مے دلاسه کړه
تل په تا پسے ژړا کړم زهٔ غریب
هسے حُسن دِ موند لے له پاک رب دے
چه له تا نه نمر سپوږمئ موند لے زیب
ستا دحُسن په هر ځائے کښے شور شر دے
په عرب په خراسان په هند په کیب

---

[1] (فکر اوکړه) لکه ... یا (په مثال کښے) لکه ..... [2] زنه .

هر عاشق وصال له خدایه دیار غواړي
هم ویرېږي د بېلتون له بده فریب
د بېلتون دور راځي په عاشقانو
بېلتون وینمه د هر عاشق په حبیب
شاد محمد که ځان او باسی کله اوځي
غورزه وے دے بېلتون په لوے نشیب

---

ستا د مینې په کیف مست یم بے حسابٌ
لکه چاوی نشه موندے له شرابٌ
د جمال ثانی دِ نشته په ملکونو
چه ښکاره شي لري نور شي له آفتابٌ
کل عالم به لیونے شی په کتلو
که دے یار مخ را ښکاره کړله حجاب
زهٔ چه یار پسے ملنګ او لیونے یم
هم وتلے یم له خورده هم له خوابٌ
په لیدو په اوریدو کښې فرق ډیر دے
څو به زهٔ صفت کوم د یار له بابٌ
د دیدن موندهٔ دی ستا لَیلَةُ الْقَدر
د بېلتون په اورے شوه سینه کبابٌ

---

لے لکه شو قدر (شب قدر)

د بیلتون رابا ندے هیڅ ترس او نهٔ شهٔ
که ے موج دسترګو زیات شهٔ له دریابُ
**شاد محمده** هوښیار جواب آسان دے
بلکه ګران دے وجاهل ته سل جوابَ
**شاد محمد** وائی چه یا ے کړه ځیل وصل
یا ے بیعه دسروکړه له قصابُ

چه صدف کښے یګانه دُر دی حجاب
هله ښهٔ دی چه درون وی په دریاب
د خبرے مثال دُرِّ یګانهٔ دے
چه بے ځایه چرے دُر نهٔ کړے خراب
زړهٔ په مثل ددریاب او خوله صَدف
چرته پیژنی بے قدره دُ دُرِ آب
د بے قدرو زمانه شوه قدروک شو
قدردان واړه خوړاک شو د تراب
که ظاهر دسری زړهٔ په سری ښهٔ شی
تشنه لب داب ګمان کړی په سراب
که جُثه قدرو قامت دچاښهٔ ښکاری
باطن مس ظاهر ګلټ وی په حساب

---

لے مرغلره چه ثانی نهٔ لری    ٹے خاور ے

هر سړے په رنګ جُثه پرِ غلطیږی
لکه پیغله زوړ خطا کړی په خضاب
قناعت صبر عمل له خلقو دوړ شو
هر سړے شهٔ حرصناک له ذبابٔ
بے خبره نادانو ته دی خوشے
خرهٔ په بوئی کله پوهیږی دګلاب
د حرص په طمعه عقل شی بے ځایه
حرص بند کړی د صیاد په دام غرابٔ
نصیحت کول نادان ته دا مثال دے
ړوند ته رقص غږول ګونګ ته رباب
د هوښیار دسوال جواب کول آسان دی
شاد محمدٔه د جاهل کړان دے جواب

---

هر بے عقل وی بے رحمه په غریب
لکه ترس په بیمار نهٔ شی د طبیب
ظالم کم په مرتبه دے د بے رحم
په مدار کړی لاغصه لکه قضیبٔ
رحم بنهٔ دے رحیم ځکه درب نوم دے
هر بے رحم نهٔ وی عقل ته قریب

---

ٔ چچ ٔ کارغهٔ ۔ ٔ دونے بناخ، بمازا دسړی آلهٔ تناسل ۔ ذکر

چه د عقله مرور وی انسان نهٔ وی
هر بے عقل ته پند هیڅ وی د ادیب
بے وفا رحم مدام تابع د عقل
جفا ظلم د بے عقل وی ترتیب
بے رحمی ظلم جفا د احمق کار وی
چه همیش عمل په خوئے کړی د رقیب
عاقلانو ته یار یار آشنا آشنا وی
څهٔ بے عقلو ته دشمن یا یار حبیب
د بے رحم و ترحم په هیڅ نهٔ شی
خدائے بے رحم د څا مهٔ کړه په نصیب
کله زړه دا کسیر په مرتبه شی
شاد محمد کله زړه شی زیب[۱]

---

کړم[۲] شور د غم په اور شوم کباب
او ښئے تار تار مے په رخسار ځی سیلاب
زهٔ دِ صنم کړمه قلم په ضمیر
را کړه اکسیر لبان جانان په شتاب

---

[۱] منقه کشمش

[۲] په دے غزل کښے ئے کوشش کړے دے چه د مصرعو د ننه الفاظ هم هم قافیه او مسجع راولی -

یوخُل مے مل کړه محبوبه په پالنگ
چه زنگ دَدل مے شی زائل دعذاب
شین عنبرین دِ په جبین ایښے خال
ابرو هلال تړِ دُوړ ضرور کړه نقاب
لبان ثمر دندان گوهر دنګار
عذارئے تل شړ موی گل دګلاب
نهٔ شی غماز عاشق دراز دخپل زړهٔ
کله دمرۍ دخوے لیلیٰ شی جواب
زهٔ شاد محمد په پاک احد کومه سوال
وصال قبول مے د رسول کړی ثوابٔ

---

بے وفا بے عقل یو وی په حساب
نشته فرق د ذرے د دویٔ په باب
منّت بار به دِ په ډیرو خوارو نهٔ شی
کهٔ خپل زړهٔ په غم ددویٔ کښے کړےکباب
بښهٔ اوبد سره په عقل پیژند ے شی
څه بیلتون کوی د ښو بدو دَوابٔ
وفا عقل په ښهٔ بُت او په رنگ نهٔ وی
کله تندہ د تشنه مری په سراب

---

عقل سر دے همگی د ښو خویونو
دا جوهر چه چاله ورکړي پاک تواب
د عاقل چه سري کار شي د بے عقلو
تل به خوري غوټې په غم کښے د درياب
سرهٔ زر پېښن تا مبه او جس احمق ته يو ده[1]
دوست دشمن کړي هم يو کته غراب[2]
چه دعقل خزانه چا تخته[3] نهٔ وي
وي په شان د بے غلے کند و خراب
دګونګټ مطلوب کندګی وي په طلب کښے
ورته ښکاري مرګ دڅان بوئي دګلاب
دمکے په تلل به هيڅ خر حاجي نهٔ شي
جاهل کله شي عالم په تش کتاب
چه څوک طمعه د بے عقلو د وفا کړي
ګويا څان کړي بادشاه په خيال دخواب
هر احمق ته که څان مره سوزګداز کړي
څه عمل کوي په خره چنګ و رباب
شاد محمد د جاهل په سوال ساکت شه[4]
دجاهل سره جاهل کوي جواب

---

[1] کهه باز، لوٹے باز [2] کارغهٔ [3] تخه. یوسفزو او څنونورو علاقو کښے تخه او سکه هم واي [4] چپ شه جواب جاهلان باشد خموشي.

راشه مهٔ ګرځه له کبره پـه پـلار[۱] چپ
د هوا پـه اس ځان مهٔ کړه سوار چپ
چاچه کړے نفس هوا ده هغه ډوب شـو
اوبه نهٔ خیژی په عُمر د وبـــار چپ
بـلبان به ارمان اوکـړی له خزانه
چه دباغ خراب تراب کړی بهار چپ
هر پارو ئے په دوستئ شـهادت مومی
چه یاری دوستی کوی تـل دمار چپ
که خرید ته ئے زړهٔ کیږی څهٔ به واخلی
چه روان وی خالی لاس په بازار چپ
مناسب دی چه توښه دسـفر واخلے
بے توښے به په سفر کښے شے خوار چپ
نادانان به تړی زړهٔ په دُنیـا پورے
ددُنیا نه لرے ګرځی هوښـیار چپ
نیک عمل به هیڅ د یاره دخدائے نهٔ کړی
روز وشب به ددنیا کوی کار چپ
سترګے پورته کړه دخوبه دغفلت
په غفلت کښے دِ ځان وینم بسیار چپ
که هر څو درته ویُښ ی غوږ پرے مهٔ ږده
عمل مهٔ کړه د شیطان په ګفتار چپ

---

[۱] لـه تهٔ په لار چپ

لکه باد هسې تیرېږی نهٔ اودریږی
لا د عمو ترینه تیز دے رفتار چپ
ترقی به د مرض شی پرے غالبه
د هر څیزه چه فال نهٔ کړی بیمار چپ
شاد محمدؐ ره سوال کوه د رب کریمه
چه له تانه چرے نهٔ کاندی یار چپ

---

هر ساعت دے دبیلتون راباندے تپ
د وصال طبیب مے ځی د علاج چپ
بے وصلت زما هسے حال خراب دے
لکه بے اوبو ماهے وی په ترپ ترپ
دبیلتون له دیره ظلم سرګردان یم
هره ورځ ترے زما زړهٔ دے په رپ رپ
ستا په عشق کښے زما زړهٔ ټوټے ټوټے شو
هم ارمان مے دوصال شهٔ په زړهٔ کپ
که هر څو دیار د وصل کدا ئی کړم
سپے بیلتون راپسے دیر کوی غپ غپ
دبیلتون توره په هسے شان پرهر کړم
چه آګاه نهٔ شومه هیڅ قدرے په خرپ

---

چه زهٔ اوګورم دخپل دلبر طرف ته
بیلتون راکاندی سپیره په مخ شرپ
د زړهٔ وینے مے په سترګو ځی بے وارہ
څوک به واچوی سیلاب په مخ کښے دپ
د وصال عصا په لاس کښے ماله راکړه
د بیلتون مرض بے حده کړمه تپ
د بیلتون سره کومه جواری زهٔ
چرے اووهمه ستا دوصال شپ
که مے حکم یار د زهرو په څښکو اوکړی
شاد محمد وائی چه به اوڅښکم په غړپ

---

راشه اونیسه د بدو زبان چُپ
چه د بدو همیشه وی نیکان چُپ
بد کردار به د بدئ په کار مشغول وی
د نیکئ په کار کښے ناست وی حیران چُپ
خیر کوه د عبادت طاعت همسا کړه
په سائل پسے تل نهٔ وی سکان چُپ
نفس شیطان دواړه سکان ناست دی داړل ته
چه د فکره د ایمان نهٔ کړے ځان چُپ

---

له بند له مراد ترے د اوګدے

کړه قلا آیات کُرسی تمجِّید کړه تړوره
حیله مهٔ کړه پرِ وهه شیطانان چُپ
څوکیدار د وظیفې ځانته بیدار کړه
چه لوټ نهٔ کاندی له تانه ایمان چُپ
نصیحت به مے صله تاله خونه دړ کړی
چه دِ کوز کاندِی په ګور کښے خپلوان چُپ
دا خزان به آخر باغ دخوښے وران کړی
دغوغا په شور به کړی بلبلان چُپ
بد عمل به او سیزی ځان په انکار کښے
نیک عمله ځان ساتی د نیران چُپ
توښه جمع دخپل ځان دلوے سفر کړه
بے توښے نه چرے نهٔ شے دوان چُپ
ځان بیدار کړه په طاعت دغفلت خوب نه
هیش درومی له دِ دے سرایه کاروان چُپ
بے وئیلو تسلی دخلقو او شی
حق باطل کاندی معلومه میزان چُپ
ظلم زور پکښے اونهٔ شی حق څرګند شی
ځان په عدل دمیزان کړه پښان چُپ
**شاد محمده** خپل پردی به دِ شی پاتے
سر سرتور به شے روان له مردان چُپ

له لوئی وئیل ۲ اور

که دِ راکړهٔ خواږهٔ قند لب نابات
قند لا څهٔ دی یو په سل دی ترېنه زیات

د وصال په بارانه ے فصل اوکړه
د بېلتون سوکړے ئے اوښکو ذرّیات

که اثر د بد نظر درباندے اوشو
ما قربان کړه لکه ګل د سر خیرات

رقیبان دِ هسے جور په ما کاندی
چه تر زهرو په ما تریخ شو خپل حیات

که لمن دِ راخوره کړه په ما باندے
د بلا خوله کښے به بیا مومم نجات

بیبن رخسار دِ اومو شو د وپیس وسے
په سرو شونډو به دِ شی ژوندی ممات[۲]

د سرو تیک دِ دے بادشاه خال دِ وزیر دے
خپل عاشق له ورکوی خط د برات[۳]

چه څوک ستا په بنو خبر و مئین نهٔ وی
د هغه په ځان ګرزم هزار هیهات[۴]

د وصال طبیب دِ پهه په ما کیږی
د بېلتون غشے ے دبے په ځیګر مات

---

[۱] نسل آل اولاد دلته مراد تری نوغ جړے دی - [۲] مراد ترے مړدے۔
[۳] ملاصون، رهائی، بری کیدل [۴] افسوس۔

**شاد محمد** څان ملنګ دیار د درګه
چې حاصل به درجات کړې په نجات

(راشهٔ) اوکړه دخپل ځان نه مصلحت
د بدیٔ له هر یو کار شه په نفرت
د دنیا عمر د باد په شان تیریږی
په دا عمر کوه خدائے له عبادت
د بدیٔ نه په توبه په استغفار شه
په خپل عمر بدی مه راوړه په نیت
په نیکیٔ دِ خدائے راضی په بد ناراضه
هم ناراض د ے پرے زمونږه پاک حضرتؐ
که دِ اوس اوکړه بدی صبا به څهٔ کړے
خدائے رسول ته به ولاړ ے سلامت
په آخر به شے خبر دخپله حاله
په ارمان به ژړا اوکړے عاقبت
که خپل ځان دِ په ژړا ذرے کړ
بیا په بیرته به را نشی تیر ساعت
او بهٔ تیرے به په بیرته ګردان نهٔ کړے
که دِ اوکړه هزارها د دویٔ منت

---

ﻟﻪ (راشه) اوکړه .... الخ

د دنیا په غم کښې هسې سرګردان ئې
ولې غم دِ د زړهٔ هیر دے د قیامت
امانت که څوک په لاس کښې تاله در کا
هغه درنګ شي ورته جوړ په خیانت
په راستئ د خدائے رسول په خدمت اوسه
چه دِ اوکړی بیا صاله شــفاعت
چه امید کړے د بخښش له خپله ربه
ثباتول پڅے مهٔ کړه ته د خپل خدمت
امرنهی پنځ بنا په ځان قبـول کړه
هم پنځه وقته کړه نمونځ په جماعت
**شاد محمد** له بدئ نه توبه کار شه
که څهٔ غم دِ په زړهٔ وی د آخرت

---

د کباب پشان دِ وه نیوم و نارت
د رحمت په نظر نه ګور ے ماخوارت
بے دارو دِ په دربار کښې رنځور پروت یم
سوهٔ لبان دِ دواګ اوکړه بیمارت
تورے زلفے دِ رسئ کړه راپه غاړه
په خپل لاس سره مے اوخیژوه دارت

---

ل ذباتول

د رقیب په لاس مې مهٔ وژنه دلبره
دا طمه ورکړه د زلفو چمچمار ستا
د رقیب مدار احسان راته کنځل دی
ګردن بړ دمه ستا د توړو ګـنـدار ستا
ماچه ستا جور و ستم په ځان منلے
نهٔ ټینګیږم د رقیب موزی صدارت
د رقیب په خوشامنـده غلط مهٔ شه
آخر تا به پرے نسکور کړی دغم بارت
دشمنان د چا دوستان په مدار نشی
ولے ګوری دوئ دخپلے وارے وارت
که زهٔ دیر ژړا فریـاد کوم له درده
ستا لا زیات شی اشتیاق زما ازارت
ستا بیلتون مے زړهٔ په اور باندے کباب کړه
د وصلت منت دِ دیر کـوم ربـارت
ستا د وصل ارزومند وحاجتمند یم
آرزومند نهٔ یم زمکے یا دینارت
سره لبان دِ را په خولهٔ لکه ثمر کړه
هم مے ګرمه کړه د صدرٔ عجب ګلزارت
دګلاب په خیر ناغی دِ سره عُذار دی
بل د و سومه د سرو سترګو خمارت

---

[۱] سینه .

تاچه وینی په وریځ کښے نښووځی
نمر سپوږمۍ د هیڅ کتے نهٔ شی رخسارتَ
شاد محمد له کل عالمه بے نیاز شو
شب و روز به دِ حاضر ناست وی دربارتَ

---

چه ے اولیدهٔ چشمان د نګار مست
هغه درنګ ے کرم له حده بسیار مست
هیڅ حاجت ئے په شرابو بانده نشته
هغه چشم بے شرابو خمار مست
چه دلبر زما قدم په ګلزار کیږدی
ټول ګلونه ورته ګوری ګلزار مست
د نرګس سترګے را اوخته په بیرته
بوخت په وینو کښے لاله شو داغدار مست
نمر پرست شو سرګون له دیرجنونه
چه ګمان کوی په نمر ے دیار مست
د صد برګ ژبے په وصف شوے توړے
ګلاب ټول شو نکیځ هر یو خار مست

---

له نشه ـ خصوصًا هغه حالت ته وائی چه د شرابو د نشے په آخر کښے پیدا کیږی
د حالت تکلیف ده وی او شرابیان په دغه وخت کښے لږ شان شراب نور هم
وڅښکی ـ پښتو کښے محض د نشے په معنیٰ استعمالیږی ـ

دچنبې کملونه نغارې (مخ) په پانړو
راویل تول پړم پړم شو بیمار مست

پېچوتاب شولو سُنبل د غم تور شو
چه ښکارینږي پرے شین رنګے بهار مست

ځ مارغهٔ په ګښے ژړا اوواویلا کړي
شنهٔ طوطیان او بلبلان ګړ په چغار مست

لکه زهٔ چه دخپل یار په عشق کښے مست یم
بل به نهٔ وي هسے رنګ خریدار مست

دجمال بازار مے ګرم دَ دِلبر ذ ے
بل دے چرے هسے ګرم بازار مست

په پوکل دعهده دا ړو نه دغین م
چه خوړلے یم د زلفو ښهمار مست

شاد محمد که دِیار کافرو اولیه
زر به اوشلوي له غاړے زنّار مست

---

چه مے بیامُونده له یاره خبر سخت
هغه د رنګ مے شو تیر خو په ځیګر سخت

په مرهمو په داړو به ځُولن نهٔ شي
دیر له حده زما زړهٔ دے پرهر سخت

---

ځ هغه کس چه د مارانو د نیولو یا د مار خوړلي د دم کولو اجازه لري۔ اُوده لړونکے پارو۔

په دارو د طبیبانو به روغ نهٔ شم
د جنون د عشق په ما دے اثر سخت
چه خوړلے یمه ستا زلفو مارانو
نهٔ رغیږم په پوکل د منتر سخت
گل ژوندون به د هغه سړي خراب شے
چه بیلتون پرے باندے اوکړ نظر سخت
د ناصح د پند دارو به کله تیر کړي
چه وی ویشتے د عشق تند ربه سر سخت
که ے آړه وی ناصح د یار له لوري
آړه وُل نهٔ شي په کوته داغر سخت
د وصال قلعه کړه یار له ما چاپیره
پروا نهٔ کړم د بیلتون د لښکر سخت
بادشاهان به خوشحالي په تخت و تاج کړي
زهٔ خوشحال یمه په عشق د دلبر سخت
هر بادشاه به بادشاهي ورپسے پریږدي
که ئے اولیدهٔ د عشق کشور سخت
د خیل یار د کوڅے خاورے به راجمع کړم
چه کړم پورے د ر نجو برابر سخت
د ختن نافے همه واړه خشنږه شي
چه باد راشي د آشنا ے د دَر سخت

د مصرئ تورے گذار نه خلق جوړشی
نهٔ جوړیږی غوځ د عشق په خنجر سخت
دوائ د سرو لبانو ړ الله را کړه
زهٔ وهلی یم د عشق کوشر سخت
که په یار د **شاد محمد** ئے نظر وکړی
مسلمان به هغه دم شی کافر سخت

---

ستا د عشق له غمه نهٔ شوم فراغت
نوے نوے غم په ما وی هر ساعت
خوشحالی شوله په ما باندے حرامه
په ژوندون مے بیتون اولیدهٔ قیامت
ستا له عشق به وانه وړمه دلبره
که مے بولی خلق په عشق کښے ملامت
کوز به نهٔ کړمه که ملا کړی زما ماته
چه مے ایښے په سر پیټے د تهمت
د وصل په دنړائ پسے ارمان کړم
چه بیلتون یم بندی کړے په ظلمت[۱]
(د بیلتون) لښکر به واړه تار په تار کړی[۲]
چرے اوکاندی وصال په ما غیرت

---

[۱] تیارهٔ [۲] (د بیلتون) لښکر به واړه تار په تار کړی -

زۀ یو اځې بیلتون نۀ یم مظلوم کړے
لړی ظلم دے په هر عاشق عادت
عاشقان ددۀ دظلم نه خلاص نۀ دی
ټول په ظلم باندے دی ددۀ لټ پت
دبیلتون د عاشق جوړه سره نۀ شی
دیر لړی دحد په هورته عداوت
دبیلتون مثال مزرے عاشق پیشو ده
څوک به اوکړی ددے دواړو صلحیت[ل]
دبیلتون دحوالات به زۀ خلاص شم
که وصال ےغنی دب کړی په مدت
دبیلتون تیارۀ تورتم به رانه لاړ شی
که رنړا راباندے راغله دوصلت
قندګین لجورے ماته شمکی شوی
چه بنکل کړه دیار لب په اجازت
کل غمونه به ے لاړ شی له بدنه
که زما دیار شوهر ځائے رفاقت[۲]
نمرسپوږمئ زما دیار ځنے پټیږی
هسے دب ورله ورکړے شرافت

---

ل شاعر دالفظ دصلحے یا روغے دپاره استعمال کړے دے ۔
[۲] ملګرتیا ۔

خدائے دِ ماد یار د حکمه سر ییح نهٔ کړی
چه کومه کاړ د یار په اشارت
شاد محمد ه معشوقے ته هغه وړ شی
چه وړ ځان ورته پرشماری ملامت

---

هر یو کس چه وی خوړلے د عشق لتَ
همیشه به ناست وی غلے سر په بنکت
کناره به د عالمه جدا ناست وی
سری کارے وی له غمه له فکرتَ
خوب خدائے چرے نهٔ شی رنگ زیړ وی
او چے شونډے کریوان لوند وی د حیرتَ
که مخلوق ورته په عشق کینے بدرد وائی
ویره نهٔ کوی په عشق کینے له تهمتَ
و دنیا وته حاجت د عاشق نهٔ وی
فکر ذکرئے وی تل له وصالتَ[۱]
په دیدن لکه د گل د یار تازه وی
بے دیدنه د عاشق نهٔ شی صحت
ناروا گنړی نظر د بل په لوری
په کتو د بل گنړی ځان ملامت

---

[۱] شاعر دالفظ د وصل په ځائے استعمال کړے دے۔

زهٔ کالبوت آشنا ے روح بیلتون اجل دے
بے دیاره تش کالبوت شم بے همت
که هر څو دبیلتانهٔ مدار منت کړم
مګر ناوړی دے دظلم دعادت
دعاشقو دشمن نشته بے بیلتونه
هر عاشق ترے په لرزان وی له دهشت
عاشق به په شاهئ نهٔ کړی بدله
که خبر وی څوک دعشق له شرافت
دا همه مرتبے دی ورته دلاندے
مرتبه دعاشقئ ده پرے اوچت
که مرض دعاشقئ وی چا لیدلے
هغه کله خوښی مومی بے زحمت
هر عاشق چه مختورن وی عاشقئ کښے
مختورن به وی تر ورځے دقیامت
**شاد محمد** رب له تانه بخښش غواړی
هم امید کړی ستا دوست له شفاعت

---

زهٔ هرګز کتلے نهٔ شم چیل دلبر ته
لکه نهٔ شی شپرک کتلے نمر ته
زهٔ به څو دخال وخط دیار صفت کړم
دعیان به څهٔ بیان کړم هر بشر ته

دآشنا دکوڅے خاورے راته مشک دی
هيڅ مے نشته دے حاجت مُشک وعنبرت
کند په غاړه مے د صبر کچکول لاس کښے
خیر له ځمه د وصال دآشنا ورتَ
هره ورځ وصال دیار راته اختر دے
کله زهٔ په انتظار یم بل اختر تَ
بیلتانهٔ مے بدن یو ے دوهاله کړ
نبهٔ سنبال ئے کړهٔ دغم دتخم کرتَ
بیلتانهٔ په توره هسے یم غوڅ کړے
چه کتے مے طبیبان نهٔ شی پرهرتَ
بیلتانهٔ مے په غمونو تن غوبل کړه
خوشحالی مے له وجوده کړه بهرتَ
چه مے ځان دے ستا په عشق کښے معروف کړے
له هغے ورځے نه سر نه وایم سرتَ
بادشاهان په امید وار دمال و ملک وی
زهٔ امید کوم دخپل آشنا نظرتَ
دطوطیانو باغ په ملک کښے نهٔ خوښیږی
چه کتلے ئے دی زما دیار صدرتَ
صنوبر سرو ولاړ په یوه پښه دی
چه مے اوکتل دیار قدو کمرتَ

لہ مقابلہ کړیَ عہ سرو در باغ ستاده است بیک پائے فکر
به رکاب تو دود گر بودش پائے دگر؛

دوارہ ستر گے مے څلور دیار پہ نور دی
ډیر امید کړم د وصال د یار خبرتَ

بے وصال مے ژوندون ھسے زبون دے
لکه څوک کړی دابو نه ماھے بیرتَ

شاد محمد په صحدم کښے سرسرتور کړی
سوال دَ وصل دِکوی غنی اکبرتَ

---

بیلتانهَ لکه کباب اونیوم اورتَ
هر طرف نظر کوم دیارو لورتَ

که مے سوے ذرهٔ دیار په لبو مور کړی
هم مے تن کړی د بیلتون د اوره پورتَ

سرتر پایه لوغړن دغم په اور شوم
ھسے رنگ مے شهٔ بد رنګ اوګورهٔ سکورتَ

د بیلتون ظلم به څو درته بیان کړم
بے عاشقه ئے څوک ځان نه نیسی زورتَ

د مریض خوراک مرض وی نورځهٔ وئ[1]
بے مرضه پښے چاپس کړی کښینی شکورتَ

(بے له یاره) به روغ نهٔ شم خود به مړ شم[2]
یا مے روح دے بے ارواح مړی ګورتَ

---

[1] نورځه نهٔ وی [2] دبے له یاره) .... الخ

په باطن يُو يو وجود که ظاهر بيل يُو
دا څه حيف دے که جدا يُو عالم نورتَ

زهٔ دعشق په نشه مسے رنګ له مست يم
کله دا مستی معلومَ دهٔ مے خورتَ

که مے بولی ديوانه خلق په عشق کښے
مانيو لے دے ځان ستا دعشق پيغورتَ

يو رګ مے ستا په عشق کښے مبتلا دے
د مجنون پشانِ جوړے کړمه شورتَ

دعشق نوم مے بنګلا شوے دے په ژبه
بے له عشق نظر نهٔ کړم پيين اوتورتَ

شاه محمد به حساب هله په ژوند وشی
که دِ ګهې کړهٔ شاه د صدر باغ سمسورتَ

---

ما نه دٔ بيلتون په عشق کښے اوښود قيامت
نوے نوے غم راله راوړی په هر ساعت

ستا بيلتون ستی دغم په اور کړم سوتر پايه
کله به مے اوباسی دا وره ٔ وصالت[۱]

زهٔ د يار دوصل ارزومند په شپو روز يم
نهٔ لرم بے ياره په بل چا بانه ے حاجت

---

۱ وصل ۔

هیڅ مې پکار نهٔ دی بې وصاله د خپل یاره
دا دنیا چه واړه سره زر شي امانت

زهٔ د بېلتانه یم غوږ زرو لوټے کوهي ته
را کړه دواړه زلفے له کوهي مې کړه اوچت

هر عاشق خوشحال وي په مرض د عاشقۍ کښې
خوش وي په مرض د عشق نهٔ غواړي صحت

هغه دے عاشق چه د عشق غم کښې خوشحال وي
هم د عشق زحمت به ورته ښکاري په رحمت

څوک چه صبر نهٔ لري عاشق نه وي د سره
هغه دے عاشق چه په غم کاندي قناعت[1]

هر چه وي عاشق غم به دوا گڼي له یاره
نهٔ دے هغه کس عاشق چه گوري به راحت

هر چه شکایت د بېلتانه دے هر ځائے کړے
هر عاشق ئے ډوب وي په دریاب کښې د فکرت

ظلم د بېلتون دے مشهور په ټول وطن کښې
واړه عاشقان ترینه کوي تل شکایت

بېلتون[2] دے په مثال لکه لړم ورته نظر کړه
گذاره ئے د لښې دے په ضرور د بل عادت

---

[1] صبر [2] مقابله کړئ . نیش عقرب نه از پئے کین است
مقتضائے طبیعتش این است

نهٔ مې ده قبوله جدائي مرګ مې قبول دے

بې له یاره ژوند کله ګڼړم مناسبت

یو وی په باطن عاشق معشوق جدا مهٔ وایه

څهٔ شو که ظاهر خلقو ته ښکاري بېل صورت

زهٔ **شاد محمد** ډېر یم ملامت دیار په مخ کښې

خوار شه[1] عزازیل چه ځان ئې نهٔ کړ ملامت

---

د ځګره مې بهیږی وینه څڅ

چه بېلتون مې دِ ملا ماته کړه چورلټ

بېلتانهٔ دِ کوکوي دغم په اوړ کړم

لکه اودانګی چینړه د تاؤ له بټ

ستا دغم په اور کباب مې دزړهٔ سر شو

هم دغمه دې لیې اووت له پټ

پیا سیدے نهٔ شمه زهٔ دخپله ځایه

درنه شوی ده په ما دِ دغم سټ

خوب خوراک خندا مې نهٔ شي رنګ مې زیړ شو

له ډېر غریب مې مړی شوه لکه کټ

---

[1] ابلیس - دابلیس سجدے نه انکار کولو ته اشاره ده - چه هغه خپله ګناه اونهٔ منله بلکه وئې وے چه آدم دخاورو جوړ دے او زهٔ داوره پیدا یم او ربه خاورو ته څنګه سجده اوکړی !

داوربشو په شان پروت یم په بغرئے کښے
دبیلتون مولو پشان کړم سکه بتئ
غل بیلتون مے دبدن کوټه سورے کړه
رخت دصبر مے ئے یوړ د زړهٔ له هټئ
ستا په عشق کښے دبیلتون مرض ناتوا کړم
چه بانکل پاسیدے نه شمه له کټئ
که وصال چرے زما دځان طبیب شو
د مرض دبیلتون به شم بے وټئ
عشق ئے هسے ظاهر شی روهتول عالم ته
لکه کیږ دی چه څوک عود په سره سکروټئ
بیلتانهٔ کړم دوصال دیاره تږے
کله وُهٔ به څښلکم اوبهٔ دبخت له مټئ
زهٔ شرشم بیلتون وروا چولم کانړی ته
په یوځل شولمه تیل دغم له لټئ
د زړهٔ وینے مے په سترګو باندے دړ وی
کله داسے واله دړ وی له ارهټئ!
نور عالم به خزانه له خدایه غواړی
شاد محمد مرتبه غواړی دعشق غټئ

---

داشه برکړه دنیکئ په کار کښے مټ
دبدئ د هر کاره کړه ځان پټ

عبادت کوه د رب د زړه په مینه
خوښي مه کړه په نجس لکه ګونګټ
هر عالم چه عمل نهٔ کړه بل ته پند کا
د ده بوے د نړا وی بند ه په د یوټ
قناعت صبر عمل ژبه خوږه کړه
هر یو کس سَره وئیل مهٔ کوه بټ
اوس چه کړے ناخبره دخپل ځانه
خو د خبر به شے چه شے د خاورو ختټ
په حرامو چه دِ ځان له سندِ ا غټ کړه
په آخر به دِ اوبهٔ شی صورت څټ
که وهی دِ ځوک د پند په ترینګلئ ستا
نهٔ پرسیږی په مثال د پیشو ځټ
په آزار د مسلمان به ملا بسته کړ
هم به واے شا په شا پرِ بناوټ
په ارمان ارمان به ژاړے وخت به تیر وی
داے غوځ پرے کړی اووے ررت غټ
که د مرګ په یخنئ پریوځے شادمحمد
دوغ به نهٔ شے په کاږو و په مُنټ

---

له ځنو ژاړو بوتو کښے اسفنجی شان ځیز .
ته دروغ - د ځانه جوړه کړے خبره .

سپین رخسار ته دِ کتے نهٔ شمه غټ
بیلتانهٔ دِ وریت سینه کرمه په بټ
بے صبری مے په بدن باندے خوره شوه
چه بیلتون مے کړهٔ تالا د صبر مټ
د شرشم پشان دِ تیل کرم په کاریٔن کښے
مجرستا په ما راځی سکه د لټ
دوصال طبیب زما د علاج وُه کا
د بیلتون له مرض پروت یمه په کټ
سرهٔ لبان لکه جرئ دِ را په خوله کړه
د بیلتون بنهار دِ تیر کرمه چورلټ
ستا د عشق په اوُر نسکور لکه کباب یم
د وصلت په اوبو لرے مے کړه وټ
زهٔ په پند دعشق ستا به ستومان نهٔ شم
که په سر راته دغرهٔ همره کړے کټ
په رخسار مے هسے موج دسترګو دری و می
لکه دری و می واله دکه د ارهټ
شاد محمود ه فکر کړه چه پلیت نهٔ شے
دا دنیا ده په مثال کښے پلیت چټ

---

چه په مخ د راخورکړے دسپی پوټ
وار خطا شوے دمیلمه په تش رپوټ ؎

---

؎ خبر

یا به پت شے یا به ځان ورته بیمار کړے
که حصار شوے ورته کین دے کلول موټه

که دِ یو دمړی تاوان په میلمه اوشی
شکایت کوے بے شمار چه راغے چوټ

له دشمنَ به لا زیات ورته بدګور ے
هغه یو میلمه به وی دربانده تروټ

چه پرلاؤ چرګ رضا نهٔ شے دبل نه
ترے به غواړے هم چارنُقُل[۲] ئُم اخروټ

که یو د رنګ مُعَطّلی راغله په دا کښے
هغه وخت به کړے له تهره ځان لوټ پوټ

کینه تهر، به له ځانه سره مل کړے
لا به وائے چه دِ غیمه حجره کوټ

شادمحمد ته امان غواړه له فریبَ
چرے پیښ نهٔ شے په دارنګے ملوټ

---

ستا په عشق کښے ے رنګ تورشهٔ لکه بوټ
بیلتانه ے دِ نیړو نه کړه کل پټوټ

---

۱ دګیاه یو قسم چه د ځارو و خوراک دے. ۲ چارنُقُل هغه څیزونه وائی چه
د شرابو نه پس خوړے شی لکه واخلے کباب. څلور قسمه میوې. ۳ دیل. تاخیر
۴ مثل دے چه حجره دِ غیمه شپه پکښے تیرومه. کوټه. کوټه یا قلاشه توربوتان ته مات

ستا د عشق په دریاب کښې گرځېږم
دېلتون نهنگ مې مات کړه اگنبوټ[۱]
په غیبانو کښې به هله ځان حساب کړم
که مې اوکړه چرې ستا د وصل لوټ
چه یار نه وینم وطن راباندې وران وے
بې له یاره جدا ناست یم اوربوټ
یا ره اواړوه پیاله د زهرو ډکه
یا مې یخ کړه ذړه د سړو وبوپه کوټ
عاشقان وی صادقان په عاشقئ کښې
هغه کله وی عاشق چه وائی جوټ[۲]
شاد محمد ره ے پښه کښې ځان سره ذر کړه
نه ځائیږی عاشقی کښے مِسر او کوټ

---

کړه مه مُنه خبره د خبیث[۳]
چه پرے نه ووزے تر کمره د خبیث
په هنر باندے هر کار کړه که پوهېږے
ځان ساته له هره شره د خبیث

---

۱ دخانی کشتی . اگن بوټ - Steam Boat
۲ جهوټ . دروغ . (هندی)
۳ شیطان ترے مراد دے -

هر سړے دخپل دشمنه ډېر وېر یږی
مونږه نهٔ کوؤ هیڅ ویره د خبیث

هر ساعت کښے وظیفه ایات کرسی کړه
چه ذیر نهٔ شے تر منتره دخبیث

عبادت توبه تمجیدٔ دځان سنګر کړه
چه لوټ نهٔ شے له سنګره دخبیث

ځان د مزکے په شان نهٔ کړے فکر اوکړه
د بدیٔ تخم د کره د خبیث

نیک عمل کړه زغره ډال دځان چاپېره
چه غوخ نهٔ شے له خنجره د خبیث

نفس شیطان زمونږه دواړه دشمنان دی
دوستی ډکه له خطره د خبیث

د بخلا دشمنه ځان ساته هوښیار ده
ډېر وېرېږه د ضرره د خبیث

د دشمن سره پکاره څه دوستی ده
دشمنی کړه برابره د خبیث

دا جهاز به ډِ په ډب دګناه ګیر شی
که دګلی کړو ګوډره د خبیث

---

ئے لوئی ویئل دخدائے پاک

شادمحمد ئه غوږ کا ږړۀ کړه هم مهٔ کوده
چه وانهٔ وړے پند له سره د خبیث

---

بیلتانهٔ ے خوږ ځیګر کړ الغیاث[1]
ځان دِ مانه بےخبر کړ الغیاث
ستا له دره به وانهٔ وړمه محبوبے
که دِ لرے رانه سر کړ الغیاث
تاچه جوړ ډول سنګار د بنا پیر و کړ
هم وجود معطر کړ الغیاث
بے له تانه ے صحت د بدن نهٔ شی
په ژړا ے ګریوان تر کړ الغیاث
د سپند[2] پشان بدن ے لوګے کړ
ږړۀ لړمون ے د مجمرؔ[3] کړ الغیاث
بے دید نه زما هسے حال خراب دے
چه بیلتون ے مات ګمر کړ الغیاث
د وصال په وصالت باندے ے موږ کړ
ځان ے بے وصل نهر کړ الغیاث
ماکوله تانه طمعه د مـــــرهمو
لا دِ ږړۀ زما پرصـــرکړ الغیاث

---

[1] افسوس - فریاد دے [2] سپیلنے . [3] انګیټهٔ

هغه دم مے رود د اوبنکو په مخ سم شۀ
چه د سپے رقیب نوکر کړې الغیاث
وظیفه د وصالت[1] شاه محمد غواړي
ځان ملنګ ئے ستا د در کړې الغیاث

---

راشه مۀ کرځه غافله په لار کج
په سر مۀ بن ده له دیر کبره دستار کج
هر قدم په هنر بده درب نوم اخله
بے هنره باندے مۀ کړه رفتار کج
د نیکئ په هر یو کار باندے مټ برکړه
خیال رانۀ وے په زره د بدکار کج
د بدئ په مصلحت باندے غوږ مۀ ږده
عمل مۀ کړه د شیطان په گفتار کج
عاقبت ئے تار په تار وراندده دی
چه تړی به وران ویجاړ نرم بار کج
هوښیاران په مخکښے ځی په ورستو ګوری
ځی په ځنګ چه وینی دوی خندرخار کج
چه په عمر د دنیا به څوک نازیږی
همیشه به کرم نۀ وی بازار کج

---

[1] وصل ـ وصال ـ

نادانان به لړ په ډېر وباندے اخلی
تمام عمر کړی بدل په یو یار کښې
چا په جنګ کښې ځان پخپله دے وهلے
په تیغ ګیره سولوی بدکردار کښې
ځوک به ځان سیزی په عقل په بل اورکښے
بدعمل به ځان سیزی په انکار کښې
بے عقلان به مار لړم بے هودے نیسے
په هوده به هوښیار نه نیسی مار کښې
چه به بے وسلے روان وی ځی به جنګ له
عاقبت به په سر اوخوری ګذار کښې
درنګ تر درنګه به مرض پړبانږے خېژی
چه پال نه کړی له هر ځیره بیمار کښې
تنزل په له پائے امیر وزیر شی
چه ګستاخ وی د بادشاه بدربار کښې
آخر پریوځی له اَس سر دلاندے
چه سوریږی په فرش شهسوار کښې
**شاد محمد** ه خالق تاله برے درکړه
چه د نه شی په آخر چوے وار کښې

---

[1] د قرآن یو فرمان ته اشاره ده - چه د دنیا متاع که ډیره هنکاری خود آخرت
د نعمت نو په مقابله بزه ده - [2] اس

عشق ستا مے پہ سر کیسنود لکہ تاج
ذرہ مے ورک کا کل غمونہ احتیاج
پہ مرض مے د بیلتون ځیګر زخمی شو
د وصال طبیب دِ اوکاندی علاج
هر ساعت مے دیار خیال لکہ سرود دے
پرغلومہ زخمی زرۂ علیل[1] مزاج
بند پہ بند د بیلتانۂ لښکر بستہ کړم
رخت د صبرۓ کړۂ تول رانہ تاراج
هغہ کس بہ مے مجنون دیو نہ بولی
چہ خبر نۂ وی د عشق پہ رواج
چہ پہ زړۂ مے چرتہ ګرد د خوشحالی وہ
پہ جارو د بیلتانۂ شو تِرِ اخراج
نۂ بہ څوک حد معلوم نۂ معلوم کړے
هسے رنګ د عشق دریاب دے پہ امواج
زړۂ دِ ما تہ پہ منګو باندے یو ړو
لکہ یوسی پہ منګل بانړو دُرّاج[2]
پہ فریاد مے خبردار تمام عالم کړو
چہ بہ داسے شوراو نۂ کاندی دُ حَّاج[3]

---

[1] ناجوړہ - نادوغہ [2] تنزرے
[3] چرګ

که په تخت د دوصلت ذۀ په اجلاس کړم
بیا به غوارم سرۀ عذار درنه خواج
شاه محمد که ستا وصال مې وخت اومونډ
لکه بیا مومي په ورځ شب معراج[1]

---

نشته نشته دے د عقل میزان سنج
چارپایان څۀ پېژني قدر د ګنج[2]
بے دیلو ته څونډ وی بـکیا نړه
په ډنډر کوی دبنګ ګمان دبنج[3]
ملامت به ځان ته اونۀ واښ کوده
که د لاندے کړۀ د عقل په شطرنج
بنه یاران شو دشمنان دګر به موش
پرانګ کړ وری جوړ کړو خپل دیارۍ ونج[4]
که ئے کام وی که ناکام ورله ور دروی
بے ضروره ورکوی جرم دجنج
تل په غم چه وو اخته هغه شادمان شو
چه خوشحال وو هغه شو د زړۀ په رنج

---

[1] د معراج شپه اصلاً هغه شپه چه دوست دخدائے لپاره د اسمانونو نه پورته تلے وو
[2] په تله کووئے [3] شاه بلوط [4] شکست ۔
[5] دیارۍ تړون ۔ معامله ۔

## شاه محمد پند د ناوړي شه خاموشه
## که د مل شي درد په کيدوه کښي قولنج

ستا په عشق شوم گرفتار مدام په رنځ
عمر تول مې دې صبا ماښام په رنځ
ناسته ملاسته مې همه واړه له غمه
په رفتن مې دې هم هر يو گام په رنځ
يو ساعت مې خوښي نشته بې خفگانه
هم چه خيژي مې د خولې کلام په رنځ
شغه دم مې اوس دتن دپاسه بل شي
چه ته واخلې دا زما سلام په رنځ
تور باڼه د مقتديان وړ پسې صف دي
خال دوړ وخو د محراب امام په رنځ
هر جاندار مې په صفت دياد گويان دي
هر درخت بوټي ولاړ په قيام رنځ
سم الف ؤمه په قد سلتون پيچ پيچ کړم
ول په ول شوم په مثال دلام په رنځ
قرار صبر مې نشته دې په زړه کښې
په بل اور کښې مې دکړه مقام په رنځ

ته دکمو سخت درد - د ياد کولي درد

که یو درنگ مے عشق ستا د خیاله وو ځی
سخت دا وره ګنړم دا آرام په رنځ
ستا د عشق په مرض کښے ډیر خوشحال یم
بے له عشق په ما هر ایام² په رنځ
(یامے) ذړهٔ صنم په سرو بڼانو سوړ کړه
یارا وا ړوه د زهرو جام په رنځ
د مارغهٔ پښتان پرکیږم نهٔ خلا صیږم
زهٔ په زلفو د شوم بند مدام په رنځ
هر یو ظلم دے بیلتون را باندے کړے
چه افسوس کړي په ما خاص و عام په رنځ
په پایاب به نهٔ کړي څوک د ریاب د عشق
چه دا عقل د دے عشق ته خام په رنځ
شاد محمد د یار غلام او خدمتګار دے
هر ساعت ولاړ دے لاس په نام په رنځ

---

چه اونهٔ یاسے هرګز ته له قدم³ پوچ
چه کښینړ دے غیں دلارے قدم پوچ

---

¹ ایوم جمع ده - خو په پښتو کښے څنے وخت د واحد په طور هم استعمالیږی۔
² (یامے) ذړهٔ صنمه..... ³ له خولے

غم دځان دآخرت دپاره اوکـړه
چه اخته ددنیـا نهٔ شے په غم پوچ
ځان کره کړه چه عالم دځان محتاج کړے
ته اونهٔ کړے احتیاج دعالم پوچ
دالله دویرے اوژاړه په وینو
ددنیـا دپاره توۓ نهٔ کړے نم پوچ
هرسړے چه دحرص ځیځه مار او خوری
هیڅ له پنده نه چلیږی پر دم پوچ
شب وروز په غم ددین او دایمان شـه
بے ایمانه بل اونهٔ کړے ماتـم پوچ
که بدن دچا په تیغ دګناه غوڅ شی
بے توبے دۓ ورته واړه مرهـم پوچ
که څهٔ کار دے خو ددین دے بل څهٔ نهٔ دے
بے له دینَ نور ګڼړه زیاتـوکـم پوچ
دآخر دپاره جمع خـزانه کړه
مهٔ نازیږه اوس په لعل ونیلم پوچ
هر یوکس چه دخپل خدائے نهٔ نهٔ ویریږی
برنا حقه به په دب خوری قسم پوچ
(ځان نهٔ سم) دشریعت په سمه لار کړه
چه په ورانهٔ شاړه ځان نهٔ کړے سم پوچ

په نمانځه باندے به ملا چړے خم نهٔ کړے
د ستهٔ ورځے ځان په لولړے خم پوچ
د مردانو به روان شے شاد محمده
درنه پاتے به شی دا کوروچم پوچ

---

ناگهان به شے له دے جهان په کوچ
بے له خدایه ذی همه روان په کوچ
د عدم په باد به هر یو ځیز فنا شی
هم به غر شجر زمین آسمان په کوچ
بے له ذاته د بنه ځدائے به نور هلاک شی
ادم زاد طیور وحوش پیریان په کوچ
د دے عمر د رفتن هسے مثال دے
لکه دره و می ابا سینه جنبان په کوچ
تللے وخت په بیرته چرته راجاروځی
هر چه تیر شی هغه شی نسیان په کوچ
بعضے بعضے د خپل عمر په تلل خوښ وی
نو کړ خوښ وی په دنیا د ځان په کوچ
ځنے ځنے د خپل ځان توبنه کړی جمع
ځنے ځنے خالی لاس پویان په کوچ
اصل کمته خو ددین ده که چا او کړه
که چا او نهٔ کړه شو تول د زیان په کوچ

مرد هغه دے چه له نفس شیطانه جنګ کړی
چه هم رب کړی دۀ سره ایمان په کوچ
نامردان د نفس شیطان په رضا کار کړی
چه په هر طرف ئے کړی شیطان په کوچ
د اچمن به تار په تار نکه میره شی
د عدم په لار به شی بوستان په کوچ
نۀ به پاتے خوار غریب فقیر امیر شی
هم به کل شی خان نواب سلطان په کوچ
یو به پاتے غنی رب شی نور به لاړ شی
د هرچا له بُت شی به جانئے په کوچ
شاد محمده تل کرم د کریم غواړه
چه دمل شی غنی رب سبحان په کوچ

---

هسے تا پسے بیمار دے زما روح
چه له هجره ناقرار دے زما روح
هر ساعت مے له قالبه رخصت غواړی
درنګ ساعت له په رفتار دے زما روح
د وصال په اوبو یخو باندے سوړ کړه
بیلتون سوے په انګار دے زما روح
د وصال مرهم مے کیږ دۀ په پرهر ستۀ
ستا د عشق په تیغ افګار دے زما روح

له روح - ساه

خوشحالی په وینه خوب ده پر حرامَ
هسے غم کینے گرفتار دے زما روح
سرگردان دِ په طلب د دید ن گرځی
د وصلت د امید وار دے زما روح
د بیلتون په بند بندی دے خلاص به نشی
تمامی عمر په دار دے زما روح
پتنگان په ډیوه راشی ځان ستی کا
ستائے ستا په سپین رخسار دے زماروح
شپه و روز دِ دغمونو په سینه ډوب وی
هسے رنګ له خوار و زار دے زماروح
هیڅ حاجت د شراب په نشه نشی
ستا د عشق په کیف سرشار دے زماروح
بیلتانهٔ ترے رخت د صبر دے لوټولے
ناست بے حده خطا وار دے زماروح
شاد محمد وائی بے تانه نهٔ رغیږم
ستا د وصل طلب گار دے زماروح

---

هسے تا پسے دلگیر دے زما روح
چه له تن هوا گیر دے زما روح

---

له دا لفظ صحیح نهٔ لوستے کیږی گوندے ستا ئے وی یعنے ستی (؟)

بنهٔ مرهم د وصالت راته پیشکش کړه
چه زخمی د عشق په لا تیر دے زما روح

خوشحالی ے له بدن د ه تښتید لے
همیشه د ځان په ویرے زما روح

ستا د زلفو په دام بند یم خلاص به نهٔ شم
بند په زلفو د اسیر دے زما روح

هر عاشق لکه مُرید معشوقه پیر دے
په طلب کښے د چل پیر دے زما روح

یو ساعت ے ارام نهٔ شی بے لتانه
تل په تا پسے شبگیر دے زما روح

د بدن رخصت اخلی نهٔ تېنگیږی
هر ساعت وتوته خیر دے زما روح

د وصال بادشاه که عدل انصاف وه کا
له بیلتونه دیر زهیر دے زما روح

**شاد محمد** واق دیدن د حاصل نهٔ شو
که هر څوکړے تدبیر دے زما روح

---

په گناه کړے شیطان پر هر جرّاح
د طاعت ے درنه اوویسته ارواح

قطعی حرام به نهٔ گنړے حرام تهٔ
بلکه بولے به ے نور و ته مباح[۲]

[۲] جائز ـ روا ـ

خپل پردی درته همه واړه یو شکاری
نهٔ حصارے په نکاح نه بے نکاح
د نیکانو د مجلس نه دِ نفرت دے
د بدانو سره ناست ئے په صلاح
تمامی عمر دِ تیر کړهٔ په غفلت کښے
ښے ستړکے کړے شیطان په جام د راح[۱]
ځان په فسق په فجوړ[۲] کښے درته خوښ دے
په هر وخت لری په خوله دی اقداح[۳]
ستا د لاسه نیک عمل د اینځر گل دے
بدی کړے به له بیگاه ان تر صباح
نیک عملو پورے ټوقے مسخرے کړے
د فاسقو کړے صفت لکه مداح[۴]
تهٔ د نفس د شیطان ځان کتاړ کړه
نفس شیطان دِ بنهٔ ایمان ته دے بناح[۵]
(د ایمان[۶]) جرندہ شیطان دِ لړے نهٔ کړی
چرے ستا د گناهونو سِپه مفتاح[۷]
د چار یا یو خوئ کوے د آدم نهٔ کړے
لوٹے واړهٔ کوی په تا پورے نزاح[۸]

---

۱ شراب - خوشحالی ۲ نافرمانی او گناه ۳ جامونه - پیالے ۴ مدح کوونکے خوشامندگرے ۵ غپل دیپی ۶ (د ایمان) جرندہ شیطان ۷ کنجی - چابی - کلی - ۸ د الفظ همداسے لیکلے دے بنا دُ چه "مزاح" وی -

نیک عمر کړه توره دال تمجید[۱] کړه زغره
ملا تړے شه ابلیس ته په سلاح
دابلیس له تندره بادهٔ په امان کړه
نیک عمل دے لکه تیل ایمان مصباح[۲]
دایمان مثال دیوه نیک عمل تیل دے
دشیطان دنفس مثال لکه ریاح[۳]
دادوه ورځے سختی په ځپل ځان کړه
چه بیا ناست ئے تمام عمر مستراح[۴]
دګناه دریاب د هسے بے پایان دے
چه ئے بے له خدایه نهٔ کړی څوک ساح[۵]
شاد محمده واړه عمر دِ له غم دے
که همراه دِ په نصیب لاخدائے سیاح
شاد محمده څهٔ دِغم دهغه موج دے
چه ئے نوح علیه السلام غونډے ملاح[۶]

---

۱ لوئے والے وئیل ـ لوئے ګنړل ۲ ډیوه ۳ بادونه ۴ خوشحاله ـ په آرم کینے ـ ۵ پکے کوونکے ـ ۶ د نوح علیه السلام هغې کشتی ته اشاره ده چه په کومه کینے حضرت نوح علیه السلام او دهغهٔ ملګری او ځنے ځناروی او مارغان د لوئے طوفان نه بچ شوی وو ـ

ستا په غم کښے یم دحد په هور ته خوخ
که ژوندے کړم چا په ز مکه باندے نخ
په بدن مے ستا دعشق اور بسیږی
په اوبو دو صالت مے کړه تن یخ
که هر څو بے یاره ګرځم سر وهلے
دبیلتون را باندے نهٔ کیږی کخ
ستا په عشق کښے بیلتانهٔ یمه زور ے
دخولے وینے غورزوم چه اوکړم اخ
دعشق تبے یم نیولے بد مے حال دے
همیشه فریاد ترے کړمه په وخ وخ
ټول بدن سوے سکورستی په اور شو
دکباب په څیر په اور کوی سخسخ
که هر څو شاد محمد ژاړے سوځے نشی
چه بیلتون د سورے کړے دے په ترخ

---

زما تخته ځان به کله کړی لاویخ
چه بیلتون مے د زړهٔ اوویستو تود سیخ
زهٔ راضی شومه په مرګ دخپل ژوندونه
ستا بیلتون کښے خپل ژوندون شهٔ ماته تریخ
ستا په عشق کښے همیشه تبجلے ګرځم
لکه تبه چه مدام راځی په سریخ

که وصال چرے په ما باندے ډیره شو

دبیلتون نه به پورے اوکاږمه رنځ[1]

معشوقو ته به هغه عاشق نږدے شی

چه خپل ځان ورته هر وخت کنړی توبنځ[2]

که دِګلو کړمه په باغ دسپین صدر کینے

ترے به توے په منګلو کړم بطیخ[3]

خوشحالی مے له بدنه په رفتن ده

همیشه یمه په تا پسے ستد بیخ[4]

بیلتانهٔ یم په ډیرظلم مظلوم کړے

که وصال کړه ځان زما په حال مریخ[5]

مالمن ده په منګلو ستانیولی

ته له هرچانه رب کړے ئے بدیخ[6]

امید وار درته په طمع دبخشش یم

که ته راکړی سره لبان لکه فضیخ[7]

شاه محمد ه همیشه به دِغم مل وی

چه په سر دا نسرئی لرے مریخ[8]

---

[1] نرم بول - دست [2] ملامته - زورلے [3] خربوزه [4] سوکردان [5] په چغه - [6] بنائی چه دبدیع بدل شکل وی - عجیبه [7] فضیح معنے نهٔ شوه را معلومه دفضیح معنے رسوا هم دلته نهٔ لګی نصیح کیدے شی خو دا لفظ قافیے سره سمون نهٔ خوری - [8] دیوے سیارے نوم دے -

چه مے اوبیدهٔ سحر داغیار مخ
درسته ورځے وه نهٔ لیدهٔ دیار مخ
په لرمون کښے مے د سرے اوښ بلیږی
چه نن شه دا ینځر ګل دنګار مخ
(زهٔ له) غریبٙ ناخبره دخپل ځان یم
هسے ماته لیونتوب کړ اظهار مخ
داجذ به جنون همه واړه دعشق ده
عقل هوش مے کړ په لوری دفتار مخ
په جیلو جیلو رمے ستادیدن اونهٔ کړه
ځکه ما نه برطرفه کړ قرار مخ
دیواځے ستا د مخ له برکته
زما خوبن دی په نکونومزار مخ
په ګنهٔ و دعشق ذرهٔ دِ زما یوړو
زیړ ذرغون مے شهٔ پښان دبیمار مخ
ذرهٔ زما چه حواله دبیلتون نهٔ کړے
ځان ځخه کړه اومته ددونګدار مخ
که مے ذرهٔ دبیلتانهٔ په لاس کښے کښیوت
خوښ مے نهٔ دے دژوندون په دِدار مخ
که مے ستا په لاس کښے ذرهٔ ذرے ذرے شو
هله ماته به خوښی کړے یسیار مخ

---

له (زهٔ له) غریبٙ . . .

بے دلبرہ مے پہ سترگو تیارۀ راشی
دنړا ورځ شی پہ ما تیل د نهار مخ

پہ ازل کښے غم زما پہ نصیبہ شو
غم دِ ما وتہ ښکارہ کړو دوبار مخ

ستا پہ عشق کښے غم زما د زړۀ خوراک دے
شبو روز مے دے پہ خیال ستا د گلزار مخ

گیر پیشان د سمندر یمہ پہ اور کښے
بے لہ تا نہ راتہ اوښودۀ انکار مخ

شاد محمدہ زر دیدن د صنم اوکړہ
چہ ښکارہ نہ کړی بیلتون پہ تلوار مخ

---

تۀ چہ ما وتہ کوے عتاب پہ هیڅ
چہ پہ اور مے د کړتن کباب پہ هیڅ

چہ د لرے کړے غصّہ نیز دے پناہ شے
رالیږے د زړو ډک جواب پہ هیڅ

ډیر پہ خوښ شم کہ دِ سر تما نہ غوځ کړی
نوے نوے راکوے عذاب پہ هیڅ

تمامی عالم تہ مخ کړے ما تہ شا کړے
تل لما مخہ کوے حجاب پہ هیڅ

تۀ چہ اوو زے د چمن د سیل دپارہ
د ښیل حسن رژوے گلاب پہ هیڅ

راشه مخ ورته ښکاره کړه دیر دے نه
چه په حُسن سیزی خلق افتاب په هیڅ
مناسب د بلبلا نو شنه طوطیان دی
ناست په خواکښے د بلبل غرابؔ په هیڅ
جُدا خیال دړله دیار لکه سرود دے
غږ وی څه لره بل رباب په هیڅ
سپین رخسار د دے کتاب وړوکی حاشیے دی
نهٔ کړم بل مطالعه کتاب په هیڅ
ستا په عشق بنهٔ که خون ے حی دسترګو
په نور کار به تویوم خوناب په هیڅ
زهٔ چه ستا د عشق مرض کښے ډیر خوشحال یم
بیا د صبر به زهٔ څښکم جلاب په هیڅ
عاشقیٔ په صادقیٔ بائدے سر کیږی
عاشقی به رکاړ څرنګ کذاب په هیڅ
چه د عشق د نام نشانه خبر نے
لمّوے څهٔ له د عشق باب په هیڅ
کم سړے چه په نشه د عشق مست وی
هغه کس به څهٔ له څښکی شراب په هیڅ
شاد محمد لا چه دعوه د عاشقیٔ کړی
کار غرض لری په خورد و په خوب هیڅ

دلے تا کړله غلطه لاړ په هیڅ
چه روان شولے په خندو خار په هیڅ
ته[۱] آدم ئے د آدم خویونه زده کړه
په ضرر شولے موذر تږ مار په هیڅ
هر قدم چه اخلے موم د الله اخله
بے طاعته کوے ته رفتار په هیڅ
(ته[۲] چه تل) په خوب اوده ئے د نیکئ نه
و بدئ ته دِ کړ ځان بیدار په هیڅ
په توبه توپ د ګناه کړه د ځان لرے
څو به هر ځائے ګرځوے دا بار په هیڅ
دشمنی د نفس شیطان سره اوکړه
نفس شیطان سره دِ ځان کړو یار په هیڅ
ګکیدلے اوړ عالم په اوبو وژنی
ته ئے نوے لګوے دوبار په هیڅ
دے شیطان پښان داور نفس لګوونکے
څوک به ځان سیزی په دا انګار په هیڅ
که بنده ئے سر د ننه په ګریوان کړه
ته د باد و په اس شوے سوار په هیڅ

---

[۱] د "مضر" بدل شکل دے۔ ضرر سوونکے - موذی۔
[۲] (ته چه تل) په خوب ۔۔۔۔ الخ

ځان محکم په شریعت کړه که سړے ئے
غیر د شرع کوے ته ګفتار په هیڅ
د بدئ په کار کښے جوړ صحیح سالم ئے
و نیکئ ته دِ کړځان بیمار په هیڅ
د نیکئ د کار ه پټ په تږ خانه شے
لکه نور شے په بدئ اظهار په هیڅ
په طاعت په عبادت پابند د دب شه
ځان دِ دوغ کړلیونے میخوار په هیڅ
کس هغه دے چه په خلقو خفه کیږی
و ے اخلے د عالم آزار په هیڅ
شاد محمد ه د نیکانو سره کښینه
د نیکانو و ے ئے کنار په هیڅ

---

و ے نه ګورے و ما ته سم په هیڅ
لا د بیکے راته کوے صنم په هیڅ
چه د عشق په جذبه بے خود ګرځم
د ا همه عالم ے بولی ګرم په هیڅ
چه د زړه زما پرهر په تیغ د عشق کړ
بیا پرِ مالګه دوړه وے هر دم په هیڅ
نه چه ا ه فریاد کوم د عشق له درده
مسخرے را پورے کړی عالم په هیڅ

چه بخیله ے د زړهٔ پرهر پرهـر کړ
خهٔ دیاره پرے بیا دے مرهم پـه هیڅ
زهٔ چه ستا زلفو مار انو یم خوړلے
پا نړو ګان را بانده پوکړی دم په هیڅ
چه مے اوښکے اثړی په دلبر نهٔ شوے
ګو یا دروی مے دسترګو نم پـه هیڅ
چه د زړهٔ مے شی جدا په سترګو را شی
څوک به بند کاندی دا صیےزیم په هیڅ
که زهٔ ډیره دلاسه خپل زړهٔ له وړ کړم
غریب د زړهٔ نه به کړم څنګه کم په هیڅ
زما زړهٔ ټوټے ټوټے شو د دیر غوښ
لا په زړهٔ مے ټکومی لـړم پـه هیڅ
ستا بیلتون دمار لړمه لا بد ډیر دے
رادِ نهٔ کړله جړئ دقمهٔ پـه هیڅ
را شه ما پـه وصالت بانده خوشحال کړه
نورے مه سیزه پـه اور دغم په هیڅ
ستاله هجره اور زما په تن بلیږی
دښرا ورځ دِ کره په ما تورتم په هیڅ
ستا کوڅه باغ ارم دے ناز پرورے
لټوم بـه بل طرف ارم پـه هیڅ

ئے خوله

شاد محمد غریب ملنگ ستا د کوڅے دے
چه هیر نۀ کړے دے له خپل کرم په هیڅ

---

ستا له قد ه شولو بید سرو ته شمشاد
په تمام جهان دِ دب کړ سر آزاد
بناپیرۍ پیریان له حُسنه دِ شرمیږی
هم دِ لاندے دے دحُسن آدم زاد
کور زما دزړۀ په تا پسے ویجاړ شو
په نظرۓ درحمت کړه تۀ آباد
د سرو لبو جلاب راکړه ناز پروړے
چه مے اوځی د بیلتون مرض مواد
بیلتانۀ کړمه مظلوم په ډیر ډیر ظلم
که تۀ واورے مے په سر ددۀ فریاد
لکه مچ چه د تالی نه ځوک بیرون کړی
هسے اوویست دِ زما په ځان بنیاد
کله کله مے زړۀ چوی له ډیره غربه
کله کله په دیدن دِ شمه ښاد
بیلتانۀ کړمه د خپل نظر د لاندے
وصالت نۀ کړم په خپل عمر کښے یاد
بیلتون توره ځنړوی را ته دبکے کړی
سم ولاړ م وی په سر لکه جلاد

لکه اونیسی کباب داوړ دپاسه
هسې زه یم ستا دعشق په اوړ افتاد
دهجران لنبو وهلے بد ے حال دے
درست وجود مے شه تک تور لکه مداد
شپو ورز لکه اسیا یم سرګران زه
قرارے صبر شو ورک له ما نا مراد
دبیلتون سر به په زمکه کښے ورخخ کړم
که وصال چرے له ما اوکړی امداد
عطر مشک عنبر نافه وارړه خشنږه شی
چه دِ راشی د طرف را باندے باد
په اسره اسره دِ سترګے کړلے سپینے
شادمحمد ته درښتیا کښیږ ده میعاد

---

ستا په عشق کښے زما شوله ګونه زرده
چه مدام بیخوده پروت یمه له درده
که موږ عشق پتوو کله پټیږی
خلقه واره په عشق زموږ خبر ده
نامردان مدام په عشق کښے دروغ وائی
دا په عشق کښے دیر بعید ګنړه له مرده

---

۱ سیاهی ۲ نیمه

تمامی زمکه آسمان ے شین کی کی
د دیر تاوه ستا دعشق له آهٔ سرده
تورے زلفے دِ فانوس مخ دِ چراغ دے
بلوری دِ ده مرئ سینه مرمر ده
عشق ستا زما زرغون د زړهٔ په سرشو
نهٔ مستیږی بوټی بے دخاک له گرده
دوصال په سَره مست شی دعشق بوټے
دبیلتون خوارئ خشکئ لره دا تر ده
نادانان به عاشقی گنړی آسانه
مګر ما ته داله اوره برابر ده
معشوقه عاشق ته گرانه وی له ځانه
هر عاشق ته معشوقه دجگر سرده
افریدی به دبیلتون دشوک په شوک کا
عاشقی لاره په مثل دخیبر ده
دبیلتون نه به موزر بل پید انشی
ملا بسته ئے دعاشقو په ضرر ده
په سرو لبو دِ بسته کرله دغیرو
تنگه خولهٔ په مثال اب دکوثر ده

---

اهٔ "مضر" بدل شکل دے ۔ ضرر رسوونکے ۔ موذی

شاد محمد ته بل طرف خاورے ایرے دی
ستا کوڅه ورته نافه مشک عنبر ده

---

راشه واوره دا زما نصیحت پند
بے حسابه به ډیر درکه تا له خوند

د بدئ له همه کاره په دو تېښته
په نیکئ کړه ځان د نمر هسے ځوکند

له بد ونه په توبه په استغفار شه
نیت د بدو چرے اونۀ کړے په ژوند

امرنهی پنځ بنا په ځان قبول کړه
دا شیطان به دِ اخته کانړی په کند

ځه په لار د خدائے رسول د شیطان مۀ ځه
ځان د رب په عبادت کړه پائے بند

د شیطان له هره مکره بے غم مۀ شه
په وسُل د دۀ عمل مۀ کړه هرچند

د دنیا عمر جاب د آب په سر دے
دا سے تیز رفتار به او نۀ کړی سمند[۱]

هر عمل په ځنکدن هرچا ته ښکاری
بدکردار هاله خبر شی پخپل بند

---

۱ اس

د غفلت په تللی عمر به بیا ژاړې
شکسته ښیښه به بیا نهٔ شی پیوند

بدکردار په خپله توره ګیږه مړی
هم په خپله غوښوی دځان مړوند

هرسړے چه په دنیا کښے کړی سرښکته
په عقبیٰ کښے به ئے رب کاندی بلند

که اوس ګرځی کوږ پټکے دډیره خیاله
عاقبت به ارمان اوکړی په سوګند

شادمحمد دخوږ وسره تراښهٔ شته
د ترخو سره به درکاندی خدائے قند

---

ستا په عشق کښے همیشه کوم فریاد
یو ساعت زِ په وصلت نهٔ کړمه ښاد

لیونے لکه مجنونؔ په ورانو کړم
هم په ژوند شومه خفه لکه فرهادؔ

چه وصال مے زِ دحال نهٔ کړی پوښتنه
د بیلتون زِ ډیره ورځ یمه په یاد

---

۱؎ مجنون یعنے قیس په لیلےٰ مئین وو ورپسے لیونے شه او په صحرا او بیدیو سرشهٔ

۲؎ فرهاد په شیرین (شیرینئ) مئین وو۔ په شرط ئے غرا وکنود نهرئے ترے را اوویستهٔ نو چه دمکارے بوډئ نه ئے دشیرین مرګ (دروغ) واوریدو۔ په خپله تیشه ئے ځان اووجلو۔

چه نازله شوه بلا د عشق دُنیا ته
توینه غیږ کړله چاپیره ما نا مراد

سرسر تور خیرے کړیوان یواځے ناست یم
که ږړا شی د طرف زما بانده بے باد

خال دانه زلفے دِ دام زهٔ دِ پرے بند کړم
زهٔ په زلفو دِ کړم صید ته مے صیاد

چه په هجر کښے دِ پایمه مړ نه یم
په امید د دے چه اوبه کړے ته داد[1]

(د رحمت) په نظر ما بانده نظر کړه
چه غمونه را نه لاړ شی په هوا د[2]

په دُ غله ول غله ول دِ عمر په ما تیر کړ
په ربنتینی راته کیږ ده یو میعاد[3]

بیلتانهٔ دِ زهٔ دغل پټانِ بند کړم
چه په ژوند به چرے نهٔ شمه آزاد

چه هر څو بیلتانهٔ دلاسه ژاړم
دا په دا چه دے زما دد ه عناد[4]

ستا په عشق کښے زما دے رسیدلی
بیلتانهٔ مے د خوښئ او ویست بنیاد

---

[1] (د رحمت) په نظر ... الخ [2] ډیر لرے
[3] نیته [4] دشمنی

شاد محمدہ توبہ کارشہ دکل غیرو
ځان پہ شمار دخپل معبود کړہ پہ عباد[۱]

---

پہ بدئ کښے دہیچا نشتہ دے سود
بے لہ زیانہ بہ ھیڅ اونہ کړی بہبود
بد کردار کہ پہتوی بدئ لہ خلقو
نہ پہ ښیږی بوئ چہ کیږ دے[۲] پہ اور عود
دنیکان پہ کار کښے مرے لہ ډیر خفگانہ
دبدئ پہ ھر یو کار کښے دے خوشنود
دنیکئ پہ کار کښے مات ملا ولاړ ے
دبدئ کار ونہ ډیر کوے پہ زود
ھر یو کار کړے ددنیا دزړہ پہ مینہ
خپل اللہ تہ بہ سر نہ کړے پہ سجود
راشہ زړہ کړہ خپل خالی لہ ھمہ غیرو
کہ څہ خیال دِ پہ زړہ وی باطن موجود
ھوښیاران بہ ځان ساتی لہ واړو بدو
تہ بخپلہ ورتہ اچوے وجود
داللہ رسول پہ حکم عمل او کړہ
نافرمان لہ حکمہ مہ کرځہ مردود[۳]

---

۱ بندگان ۔ بندیان ۲ دنیکئ پہ کار کښے ......
۳ ردشوے ۔ شړدے ۔

په خلیل[1] باندې بل اورغنی رب[2] گل کړه
چه سور کړې وو په تهال باندې نمرود

خاوند دوست ساقي په ګیډه د ماهي کښې[2]
هم فریاد که د قارون ورته شنود

چه اوس کړې نافرمانه له خپله ربه
څه به غواړې په دعا ترې خپل مقصود

په غفلت د عمر واره تیر کړه
راشه اوکړه عبادت د خپل معبود

هر سړی بدیږي چه غفلت کوي په دین کښې
په خدا ور پورې خاندي کل هنود

کافران هم سعي کړي باطله لار کښې
نصارا دي که هندوان دي که جهود[3]

مسلمان د نوم ددب په ژبه اخلي
هر ساعت د کړي ثنا دعا درود

هر مومن ته رب ورکړې بنه ایمان دې
د احسان پرې الله کړې نا معدود[4]

مسلمان لره پکار ده بدي نه ده
مناسب دې چه کوي عمل محمود[5]

---

[1] حضرت ابراهیم علیه السلام چه نمرود په اور کښې اچولے وو - خو دغه اور پرې گلزار شۀ - [2] حضرت یونس علیه السلام ته اشاره ده [3] یهودیان [4] بے شمیره دشمار نه بهر [5] د صفت وړ -

د دنیا د عمر هسې رنګ رفتن دے
لکه د څې د څپک دخولے نه دود
واوره ځان په عبادت درب پابند کړه
نور توے مهٔ ګرځه له حکمه نافرموده
شاد محمد ته چه نور و وته پند کړے
ستا پیشان به بل چرته وی نابود

---

چه مے مینه د دلبر په جګر بار ده
په هر ځائے به ئے ګرځوم چه مے دیار ده
د بل ځائے ګوهر الماس راته کونجکے
د جانان د کوڅے خاوره مے پکار ده
نور ګلزار راته د خاورو هسے بنکاری
ستا د در خاوره ایره راته ګلزار ده
په باطن مے دلاسه ظاهر کړی قهر
دا په داچه و ئی زړه ته د زړه لار ده
عاشقی ګنزم اسانه کرانه نهٔ ده
جدائی هم په مثال کښے بل انګار ده
وصالت لکه جنت بیلتون دوزخ دے
ما ته ګرانه جدائی توے په سل وار ده

---

له نافرمانه

رتن مے یار پہ سترگو اونہ لیدہ تر یمہ
له بېلتون برخه زما د غریب خوار ده
له ژوندونه دیر په مرگ باندے خوشحال یم
په زړه ځله مے ارواح تر صنم ځار ده
ستا د عشق په مرض بیخوده پروت یم
مناسب تاله پوښتنه د بیمار ده
تنوسه ئے په زړه یار د وصالت دے
محتاجی د عاشقانو د دیدار ده
دیدار په منت ځان چا ته به ښکاری
د هغه عاشق په سر خاورہ ابتر ده
عاشقان په وسیله د دیدار رسی
بے دیداره معشوقه موندل دشوار ده
معشوقه موندل په سر باندی ویړیا دی
که مے بیا مونده ویړیا تر حد بسیار ده
ستا په عشق کښے سرگردان یمه بے شانه
چه له درده په ما یو لیل ونهار ده
ستا له هجره **شاد محمد** سوزوګداز کړی
صبحدم کښے ئے زاری په کردګار ده

---

ئے رتن مے یار پہ سترگو .... الخ

د بنائست دِ په وجود تمام دے حد
د ارنگ حُسن دے درکړے پاک احد[1]
نرئ ملا دِ دلاله دګل نازکه
صنوبر سروے خجل شو ستا ترقد
تورے سترګے دِ نرګس خوله دِ غنچه ده
سره عذار دِ ناغدار لکه ورد
خوله اولب دوی صدف غابښ دِ ګوهر دی
دقیمت ئے کوه نشی څوک عدد
سپین صدر دِ ده باغچه غاړه بلور
د زلفانو دِ چاپیرکړ ترینه سد[2]
ستا د عشق تاؤ وهلے بدے حال دے
په ژوندون شوم لکه مړے د لحد
(ځان له) ناست یمه دخلقو نه ځان ژارم[3]
دمجنون پیشان شوم د رو غوند
زه به ځان هله حساب کړمه په روغو
که دِ چرے وصالت شو برامد
ستا وصال ے د زړه خیال په ویښه خوب دے
چه بیلتون کړم ستا د وصل نا بلد

---

[1] ګل دګلابو [2] دیوال - قلا
[3] ځان له ناست ...... الخ

د بیلتون خوراک دے غوښے دعاشقو
ډیر له حده دے ددوئ تر میان حسد
هر عاشق وی بیلتانه یو ځل لوټ کړے
بل به نه وی د بیلتون هسے مرتد
که څه لاس ئے په ضرر د عاشق رسی
همره کاندی له عاشقو سره بد
شاد محمد ډ دبیلتون نه ویریږی
که وصال ډ ورسره اوکړی مدد

---

معشوقه د لکه پیر عاشق مرید
دے وصال د معشوقے عاشق ته عید
درد دوصل بند په قفل دبیلتون شو
دوصال ورپسے تارا کره کلید[1]
بیلتانه ئے برج په سر دذړه آباد کړو
چه دوصله د دلبر ئے کړم بعید[2]
په وصال دیار تازه لکه دګل یم
بے وصاله ے رنګ شین وی لکه خید
دعشق کار همه په صبر باندے کیږی
پکار نهٔ دے عاشقئ کښے څهٔ تاکید

---

[1] کنجی - چابی   [2] لرے - هورته -

سر و مال به کل په زیری بندے ورکړم
که دیبار دیار خبر راوړي و جسید
بے له یاره په لنبو د تنور ګډیږمه
بے دید نه مے ړانده شو دواړه دید[۱]
که زۀ شوم چرے دیاره سره وصل
هغه وخت به له اختره وی سعید[۲]
هیڅ به ستا له رحمه کم نۀ شي دلبره
که دِ اوکړی شا په ما مهر مزید
لاس په نام دِ همیشه ولاړ وی درسته
شاد محمد دِ سم غلام دے زرخرید

---

چه دِ زۀ کړمه د زلفو په دام قید
ته صیاد زۀ دِ مارغۀ غوندے کړم صید
ستا د عشق اورے بل دے په لړمون کښے
زۀ به مړوم مګر پایم په اُمید
مال و سر به ورپیشکش کړم یار ته دواړه
که چا راوړه د راتلو دیار نوید[۳]
هره ورځ مے زړۀ دِ یارئے هسے ږیږ دی
ډیر ویریږم د بیلتون ظالم له کید[۴]

---

۱ ستړے ۲ مبارک. بختور ۳ زیرے. خوشخبري
۴ مکر - فریب.

دبیلتون او د عاشقو جوره نهٔ شی
چرته جوړه وه د عمر او د زیید[1]
ستاد قد پشان قد نشته په ملک کښے
صنوبر سرو شمشاد شو درسته بید[2]
منافق عاشق به مَرِ ډ ئے رو سیاه وی
د عاشق صادق به مَر ځلئے وی سُفید
سره لبان زما د یار حوض کوثر دی
حاجت نه یمه جام ته د جمشید[3]
شاد محمد واوئ چه خلاص به شم که نهٔ شم
یا په غم کښے به کړین مه جاوید[4]

---

چرے زهٔ شوے د خوبانو په مکان کښ
لکه شی په زیړ وګلو بوره ګمان کښ
کناره یواځے ناست یمه ځان ژاړم
چه بیلتون کړمه د هجر په نیران کښ[5]
هر عاشق چه د تهمت په خُم رنګین شی
بیا دِ هله په عاشقو کړی ځان داکښ

---

[1] د فلانی او د فلانی [2] وَله - دو ے ونه - [3] جمشید د ایران یو باچا تیر شوے دے - واٸی چه سخهٔ تخته یو جام وو - چه د درستے دنیا حال به پکښے لیدهٔ شهٔ - [4] مدام - همیشه [5] اور - آتش -

اود ځ بخت به مله خوبه رابیدار شی
که دِ زړه کړمه د صدر په بُستان کښ
عاشقان چه همیشه (په)[1] شور ژړا وی
د بیلتون دلاسه تل وی په ارمان کښ
چه بیلتون د معشوقے عاشق ترمیاز شی
گویا باغ کښے دگلونو شی خزان کښ
په وصلت د معشوقے عاشق تازه شی
لکه شی د سوکړے کښت باندے باران کښ
ستا په عشق کښے ے خود لاړشه یم بے خوده
د مجنون پشانے شوم په بیابان کښ
د بیلتون را باندے ترس رحم رانغے
که څو شوم په فریاد او په سوران کښ
معشوقه عاشق ستی لکه کباب شی
چه نیران شی د بیلتون د دوئ ترمیان کښ
که وئیل د شاد محمد خطا غلط وی
خود بنده د ے هر بنده وی د نیاکښ

---

همیشه چه په سر ورے د بدئ پنه
عاقبت به ه درنه مات کاندی مرکنه
آخر ځان به کړی پلیت په څاځکو باندے
چه به کانړی غوڅوی په پلیت دنه

[1] (په) شور

چه دِ خیرے شی خادر دعمر کوره
په حیلو حیلو به بیا نهٔ شی په کنډ
ځان هوښیار کړه دبدئ نه توبه‌گار شه
نفس شیطان دواړه بسته کړه په کولنډ[1]
تمام عمر به ژوند ے په دنیا نه ئے
آخر او به وُځی له تا داجل خرنډ
دهغو نه به کم عقل نادان نهٔ وی
په اغزو چه بدلوی دگلو ونډ
ناصحان چه ورته پند کا غوږ پرنهٔ بدری
لا به ځان کړی ناصحانو وته پرنډ
(نیک) عمل دِ په دنیا باندے او نهٔ کړی[2]
کم یوکس به غواړی خپل فصلونه شنډ
دانسته نادانسته شولو بے عقل
چه کنړی خاوره ایرے په ځائے دکنډ
که بخشش له خدایه غواړے زما واوره
چه لاس نهٔ کړے دنیکئ په کار کیتے لنډ

---

[1] دغاړے پټه - قلابه - هغه لرگے چه دواړو ارخونو ته ئے سوری وی یوسورے ئے دغاړے په پټه پورے ترلے وی او دبل سره بازگول ترلے شوے وی. دالرگے سپے په میلمه یا ناآشنا لاروی دحملے نه منع کوی.

[2] (نیک) عمل د.... الخ

ګناه ګار کافر به واړه ارمان اوکړي
په دوزخ چه شاد محمد شي غوټمنډ

---

څوبه ځې دلاندې دبدئ دلوئ پنځ
آخر به ارمان اوکړې چه دِ ماته کا مرکنډ
ته چه مزې غړې دتدبیر له خپله څکره
تدبیر پوړې تقدیر کا همیشه خدا ملنګ
څوک به ایرانئ مصرئ بدله په کوتهئ کا
کم به په مولی دټیسې ورکاندی به زنګ
هر سړې چه کوري اخلی غوا میسنه باردار ه
کم به د ساتلو په نیت اخلی به غواشنډ
خلق د باغچې زینت دپاره کړی سرو
کم به دچنار سرو په ځائې کړي ارهنډ
هرسړې چه ناست وی په یوبناخ هغه اره کا
پریوځی ترپه بنکته عاقبت سَرَه دخرنډ
څاڅکی به ترې راشی آخر ځان به پرېلیت کړې
دبولو په وبوکښې غور ځوې چه کانړې غونډ
کله به سنبال شي هغه غونډې ساروی باندې
د یو[1] طرف نې من وی بل طرف ئې خالی سنډ

---

[1] ایرانئ او مصرئ تسوره ع۲ چه (یو) طرف

وینی له حرصه هر مارغۀ دانه په ستر ګو
نۀ وینی دامونه هم کوړکی که وی برېښنۍ
نفس شیطانان دی دشمنان تا به ګذار کا
ډوب به د کا خلاص به نۀ شې ته د دوئی له ړنګ
ته چه د نیکئ په طمع اوس د بدئ کار کړې
بې خبر ستا به اجل ما ته کا سندی لنډ
مرګ لکه د نمر هسې په سر دې شاد محمده
خلاصې به تر ې بیا نۀ مومی په پټه یا په ښکاره

---

په خپل ژوند به نۀ شم زۀ په ګلزار ګډ
بېلتون کړم سر تور لېنې ابله په خار ګډ
د دلبر کوڅه بوستان باغ ارم دے
په کښې زۀ لکه بلبل په چغار ګډ
د بستان قاتل خزان چه وله راشی
زۀ بېلتون کړمه د هجر په نار ګډ
بېلتانه یواځې نۀ یم په شور کړے
هر عاشق ترې دے د سر په ګذار ګډ
زړۀ او ځان مې هر ساعت د یار په درد دی
ډوب د فکر په دریاب یمه د یار ګډ

---

ل باغ - بوستان

غمازانو ے جرگه د قتل او کړه
په تدبیر د مرګ زما دی بسیار ګړه
د اتدبیر زما د مرګ نهٔ دے نورڅهٔ دے
چه دوئ قول په بندول شو دلار ګړه
که دوئ بنده لاړ زما دیار ترمیان کړه
زهٔ په یار پسے کرم ځان په انګار ګړه
هغه درنګ ے هوش له سره رخصت واخست
چه ے اولید ستا په درګینے اغیار ګړه
ملائک د سپی له بویه په دَو تښتی
له اغیاره هسے یم توبه ګهار ګړه
چه هر دم ے ځنګ کښے ناست وی اغیارغلے
ګویا زاغ وی د بلبل په قطار ګړه
دا خوستا دعشق تاوُ داوړ لمبے دی
چه ے تل کرم په منت د ربیار ګړه
هیڅ به ستا له رحمه کم نهٔ شی دلبره
که ے تهٔ کړے د صدر په بازار ګړه
چه دیار دغیږ ے زهٔ بیلتون جدا کړم
ځکه شومه ورته تل په آزار ګړه
شاد محمد واڼ خوشحال به شم بے حده
که دِ زهٔ کرم دمړیونو په شمار ګړه

خوند په بنو خبر و کوی ستا دهان لذیذ
خوله دِ دَه غنچه دګلاب برګ بیان لذیذ
ستا دحُسن سیال نشته[1] د شاه په ګل وطن کښے
نشته دے مرګز په مثل ستا خوبان لذید
(سرّ[2] ے شونډے خندان) تیک دِ بادشاه خال دِ وزیر دے
ورو حُ دِ لیند ے غشی شتیٰ مژګان لذیذ
دواړه سره عذار دِ ناغدار لکه ګلاب دی
صدّ ف دِ تنګه خوله دروِن ګوهر دندان لذیذ
زنه دِ ګبین لار دشهد ترے روان شو
ما ته را په خوله کړه دواړه لب زبان لذیذ
مخ ته چه دِ ګورم خود ے شی له تنه لرے
اوے وئے دِ ل چه کړے اوچت چشمان لذیذ
غاړه صراحی غندل په مثل دَ بلوّر
ګنج دِ سپین صدر ی[3] خاماران زلفان لذیذ
ملا دِ د لاله دګل نازکه دَه دلبره
چرته به پیدا شی خوبان ستا یشان لذیذ
وائی شاد محمد له زهٔ دِ ملنګ د درواز ے یم
هم تا نه ے قربان شه اوّیا خُله جان لذیذ

---

[1] خوان یهٔ خوند ناک [2] (دسرو) تیک ... الخ
[3] سیپیٔ .

د دنیا په غم ښځې کړځې کور و کور
د حرص په اس دی و ے کړو ځان سور
پښینه ډیره تېته ملا غابن دی و تلی
چینګه خوله دی په مثال لکه وران کور
چه دا هسې مړګ له راغلے مړګ دی هیر د ے
شیطان تاته همیش وائی مشر دور
هم واړه زابه ده په تا پوره خندا کا
هم دی ځان کړه د هندوانو د پیغور
د خوراک د پاره هسې مړنے سته
چه په یو ساعت جواب کوے د شکور
په نمړئ به دی خو ریوځی که چا وویست
دو باره به ترے دم او نه ږ وهی کور
یو زه زنه دی یو ځائے شوسره دواړه
ورو ځو یټ دی کړه دسترګو پسن او تور
په دا حال که تا ته ټول د نماز ه وائی
مغه کس به سم ګنړے د کنډر چور
(که دی لاس) چرے په مړګ د مغه پرشو
له غضبه به ئے ذبح کړے په لور
بے ترسی به واړه ته په ده بنکاره کړے
لکه څوک چه چا نیولے وی په خور

ئے که دلاس چرے ... الخ

دھغہ وخت) بہ دِخود راشی آخر سرلہ
چہ روان دِ بیابان تہ کڑی سرتور
تللے وخت بہ ستون نشی بیا پہ بیرتہ
هزارها ژڑا فریاد کوے کہ شور
یک تنها بہ دِ بندی کڑی پہ تنگ ځائے کښے
پہ مدت بہ دِ رانشی پلار و مور
پہ دنیا دِ معرفت دخدائے اونۂ کڑہ
د منکر پیشانِ گرځے حرام خور
د قیامت پہ ورځ بہ هر ځائے شرمندہ ئے
هم ولاڑ بہ خدائے رسول تہ ئے مخ تور
ملائک بہ دِ پہ طوق داوریستہ کا
پہ دوزخ بہ دِ ورځ کا سر نسکور
کہ دِ اوکڑہ زور زیاتے پہ غریب باندے
پہ آخر بہ دِ اوبۂ شی ظلم زور
شاد محمد ۵ دچل خدایہ بخشش غواړہ
هم د مارهم دلړم لہ یخنہ اور

---

هسے ذۂ کوم نظر دیار پہ لور
پہ کتو ے کرے دوہ ستر کے څلور

---

لے (صغہ وخت) بہ د ..... الخ. د؟)

که قدم دِ کړو رنجه زما طرف ته[1]
بل به نهٔ وی ستا شان عنایت نور
سر بالا به شم د ټول جهان د پاسه
که د لبرے شهٔ په غم باندے غمخور
د هغه عاشق نه غم د ر وی په ما تے
چه مدام وی دے په اس د وصال سور
د هغه عاشق به غم وی تل په برخه
چه آشنا ترے نا آشنا شی په ذرهٔ تور
د بیلتون به نوے نوے ظلم وینی
هم به بوخت وی سرته پایه په سور اُور
هر لرګی باندے چه تیره سره لمبه شی
پس له هغه نه خالی شی پاتے سکور
رهسے رنګ[2]) هم د هغه عاشق بد رنګ شی
لا د سکوره تاوُ د اور اووینی زور
یو ساعت چه یار اونهٔ وینم خراب یم
ورپسے شم په رنړا ورځے شبکور
ټول وجود مے بے له یاره په لرزان وی
د ګیرشوی اهو شان یم کړو کور
چه مے یار وو د چمن په سیل وتلے
ګل ګلانو ترینه حُسن واخست پور

---

[1] یعنی که د راتلو تکلیف دِ وکړ. [2] (رهسے رنګ) هم د .... الخ

د نرگس سرو شمشاد شوه ژبه بنده
بلبلان طوطیان نه کړه کړه لا په شور
لاله ټول شو دک په وینو داغ په زړه شو
زړله تاوه د بیلتون شو خور ما خور
که په عشق کښې راته خلق دیوانه وائی
زهٔ ګڼړمه بادشاهي د عشق پیغور
شاد محمد به دِ له عشق لاس وانهٔ خلي
که بیلتون دِ ژوندے کړو لائق دګور

---

ستا تهمت رابانده وائی کلے کور
پروانه کړم ستا په عشق کښې له پیغور
په ژړا ژړا مے ستړے د زړهٔ سر شو
چه مے سپین شو په ژړا دستر ګو تور
په دے اوښو مے هیڅ تاوٌ د عشق کم نهٔ شو
لا تازه شی د کباب په اوښو اور
چه یو غم له ما شی لرے بل تیار وی
دغه دوا ړه چه شی لرے راشی نور
لا یو غم زما دځانه تللی نهٔ وی
بیا د یاسه میلمانهٔ ے شی ځلور
خوشحالی زما په غم شوله بدله
چه بیلتون کړمه ستی نکه د سکور

که پیدا چرته سلطان د وصالت شو
د بیلتون په سر به اوکړم ورته شور
زهٔ چه ډیر د بیلتانهٔ نه شکایت کړم
دهٔ ظالم مے زړهٔ ډیلے دے په لور
څوک چه ما منع کوی د یار له دره
په هغه دِ خاوند بوره کاندی موږ
که مے ستا وصال روزی په څنګدن شی
دنړایٔ به شی په ما تیارهٔ د ګور
شاد محمد دِ خدائے له تانه جدانهٔ کا
که ئے سرلکه منصور شی په دار سور

---

نفس زهٔ دِ کړمه هسے کوړ وګړ
په بدیٔ پسے دِ ډیر کړم اوتر
زهٔ د نفس په پیرویٔ هسے روان یم
لکه بیائے د جلب نیوے خر
(زهٔ دوتریم) د مالک شیطان کاشتکار دے
د بدیٔ مے په بدن کینے کوی کر
(ماپه خپله) بیناځان نابینا کړے
که مے بیایٔ یا په سمه یا په غر

---

لہ زهٔ د دوتړ) یم د مالک .... الخ یا زهٔ (د زمین) یم د مالک .... الخ
ٔ۲ (ما پخپله) بینا ځان .... الخ

په غفلت مال و دولت د سړي لاړ شي
مات به نهٔ کاځوک د ویښن سړي کنډار
دښمنان مې دوه جوړه قتل ته کرځي
آخر زهٔ به شمه بند د دوئ په شر
یو لحظه زما په قتل حصار نهٔ دی
که یې لاس چرې په ما باندې شي بر
دوئ مزري دي په قوت کښې زهٔ ناتوان یم
مدد غواړمه له پاک غني اکبر
مدد دا کړه ماله ته اې مددګاره
که نه یې دښمنانو زیر و زبر
دوړوکو پښان سترګې مې کړې پټې
ځکه زهٔ خورم په دیوال باندې ټکر
پټې سترګې په لاړ ځم فکر مې نشته
د کوهي د غورزیدو نهٔ کړم خطر
د بدئ په کار کښې ډیر ترحد چالاک یم
د نیکئ په کار کښې یمه مات کمر
ما پخپله په ځان کړي دي په عقل
ځوک به اووهي پخپله توره سر
لکه ویښن چه سترګې پټې کا اوده شي
هسې ما شاد محمد ځان کړ ناخبر

زمانه زمونږ آخره شوه په شمار
دور په دور دے بدګمان یار په یار
زوئ پلار ته لومه اېښے دتګئ دہ
هم په زویو به ټګی کوی څل پلار
اخلاص صدق دین وتلے له هر چانه
مور په لور او لور په مور نهٔ که اعتبار
یو تهکره به بے طلبه حاصل نهٔ کړی
که ئے روح له دیرے ولړے شی ویزار
(که دلوړے) نه به مری بل پورے خاندی
وريه لاس به تهکره نهٔ کړی دجوار
که یو وی اصیل دویم جُهلا وی
یو ذره نهٔ کا عزت دپښتون خوار
هر سړے ورته له ورایه کړی ځان پورته
عزت مند وی که جهلا وی دنیادار
دنیادار منده نه خلق کرکه نهٔ کا
ترکه کرکه که غریب وی نمازګذار

---

له (که دلوړے) نه به ... الخ (؟)

ك ک جولا ۔ مراد ترے کمین دے ۔ عام طور سره "جولا" لیکلے په اصل کښے جُهلا دے یعنے جاهل خلق هم که دنیادار وی نو عزت

په طلب د انځر کل خلق پیـد۲ کړي
بے طلبَ حاصل نهٔ کا یو دینـــار
غرض دا چه همت وُرک شو یو تر بله
ورکول شو په مثال کښې پښبه د مار
د دنیـا په محبت کښې کافـــر تللی
که قارون دے که نمرود کهٔ نور کفار
چه دنیا دے عالم وارهٔ خراب کړے
شاد محمد شوله دنیا نه توبه ګار

---

چه په سترګو باندے اووینم چل یار
عقل وهوش مے شي له تنه په رفتار
هر هډوکے زما ګړ په زلزله شي
چه ناګاهه دِ ذرهٔ اووینـــم رخسار
په بیلتون دِ یم ناراض کله پرِخوښ یم
بے وصاله ستالیدهٔ ګنړم انــګار
ستا دوصل ارزو منده له حده ډیر یم
شپه اوورځ دِ دوصلت یم امید وار
ستا بیلتون مے د زړهٔ ولی، دی ریبلی
همیشه سرګرهٔ دځیګر ماله افګار
قد دِ سروِ نړئ ملا لکه ۱۱۱ ستا
په صدر دِ دوه ؟

سپین صدر دِ دگوهر دالماس گنج دے
تور زلفان دِ پرے پراتهٔ لکه بناما ر
(وړه) خولهٔ دِ گلاب دگل غنچه ده
تازه گل دِ دگلاب دواړه عذار
دسروتیک دِ دے بادشاه جبین دِتخت دے
خال دوروځو دِ په مثل دچوبدار
سُور پیزوان دِ دے جلاد توره په لاس کښے
سره نیتکئ دِ تیزندئ دگنهگار
دواړه وروځے دِ لیندے باڼه دِ غشی
هم گولو ستر گو دِ اوولیشتم یو وار
سره لبان دِ چواری لاړ دِ شهد
ستا د زنے په کوهی کښے شوم گرفتار
سرهٔ څونړی دبازوبند دِ په ملا لړی
سینے لیچے دِ پستلے ذوالفقار
سپین ورنونه دِ دواړه پښان سپین دی
دواړه پښے دِ کنړا وے بنهٔ دِ رفتار
ستا دحسن دجمال دِ څو صفت کړم
آخر ځان به کړمه ستړے هم بیمار

---

له (وړه) خوله دِ دگلاب .... الخ۔
له څوکیدار ۔ دروانجی۔

شاد محمد خان ملنګ دیار د دړ کړه
شپو روزے حاضر اوسه په دربار

---

د پر حرص کړے هسے رنګ کوره وکړ
چه دِ دوست دشمن کړو دواړه برابر
دوست دشمن ګڼړے دشمن به دځان دوست کړه
چه دِ ګیږه مړه وی سکه دخر
تا چه ګیده کړه پیشوا دځانه وړاندے
ځائے په ځائے دِ ګرزوی سکه بقر
په دوستئ دګیړے شرم دِ دشمن کړ
له حیا نه شوی بے هیڅه مروړ
ته چه اووینے تالے د غورو زیړو
لکه مچ هسے پرے اوسیزے وزر
څول، وزرد بدو ردو سنه مطلب دے
نه چه مات دِ شی په ګیږه بانسے سر
ردئیوے) ګیړے دپاره لیونے شوے
لکه سپے شی په نمړئ په سر اوتر
ننګ حیا غیرت دِ لرے کړ له ځانه
بد رسوا کړے خپلے ګیډے لکه نوَر

---

له (دیوے) ګیړے دپاره ... الخ

په حلالو په حرامو حساب نهٔ ے
ماته وے په یو پیسه زر دے کنهٔ
خپل پردے حلال حرام د رته هیڅ بشکاری
د حرامو پروا نهٔ کوی د نکر
په حیا پسے دِ دال تورۀ تر ملا کړهٔ
هر ساعت ئے له غیرت سرۀ په شر
چه دِ طمعه د نرئ د چانه کیږی
د هغه خدمت به کړے نکه نوکر
دم چا خالق دِ وے دا رنګ هیر کړه
چهٔ ترے ګوځے نافرمان په زرهٔ زرهٔ ور
په نرئ باندے حیا شرم ورک کړی
هم به ځان کړی له کینے نه ناخبر
شاد محمد که دِ حَیا په ګیدۀ
مرګ له دا سے کیدے اوګنړه بهتر

# داحمقانو په حقله

له احمقه سرۀ مهٔ کوۀ خبرۀ
داخبر به دُو دُو بوځی ترشَر
هر احمق چه په پرۀ اونخلی پرے تینګ شی
خپله پرۀ په جنګ دعوه کا په یل بَر

هر هوښيار به ځان ساکت کا له سکوته
خپله وره به له احمقه کاندی کَـرَ
له احمق سره احمق سړے جوړیږی
چه ئے صلح دشمنی ده بَـرابَـر
هر سړے چه د احمق سـره نخلی
دغه کس دے برابر له کاوُ خَـرَ
هر احمق به پرده جنگ خپله تیکه کا
ځان به کا په ویښو سُور ماتـه گـَیَرَ
دکم عقل نه په سوره ننووځه
لکه پټ شی شبپرک په ورځ له نمرَ
له هوښیار دشمنه ویره دیره مه کړه
دکم عقل له دوستئ دشمنی غورَ
ردکم[1] عقل له دوستئ نه توبه کا رښته
همنشین ورسره (مهٔ)[2] کیږه له سَرَ
دکم عقل آشنائ دخره سورلی ده
عاقبت تر پریوانه دی برادرَ
شاد محمد ره کناره یواځے کښینه
له احمقه جدائ کـنره بهـترَ

---

[1] ردکم عقل .... الخ [2] (مهٔ) کیږه = الخ

هسې رنګ زمانه شوله برسیرَ
چه بې دینه خلقه ئې کړله دینَ

لوئې وارهٔ د دنیا هسې طلبګار شو
چه حرص له وارو کړه کلیمه هیرَ

په نیکئ کښې به ملامات ځان رنځور کړي
په بدی کښې پهلوان کړي ځان تر شیرَ

د حرامو تریخ طعام د دوی ته خوږ ښکاري
د حلالو به حلوا ګنړې ګندیرَ

که ئې خپله ښځه ښکلې وي تر ګلو
پردئ خرې ښځې ته ګرځي به چاپیرَ

سترګې پټې ورځ په شپه کړي مقرر ه
ورځ په عکس باندې بولي به اندهیرَ

هر سړې به ځان په لویه پایه شماري
چه ئې ځان به سپوا ګنړي تر سیرَ

عاقبت به ارمان اوکړي ډیر به ژاړي
مګر دا موقع به وي ورباندې تیرَ

که دِ دا بدي بیان کړله د نورو
شاد محمد ه اول ځان پکښې خپل شمیرَ

---

۱ تیارهٔ

ستر گے کړے شو سے پہ کتو دیار پہ لور
د وصل پہ اُمید د انتظار سوزم پہ اور
نقش مے پہ زړهٔ باندے د استا بشکلے بشر دے
ځکه مے بے تا نه پکار نهٔ دی خلق نور
تهٔ مے پہ مثال روح روان ئے پہ وجود کښے
که تا نه یم جدا بے ساه مرده لائق د گور
رکله[1] بہ صبر واړ زما غمزده دل اوکړی
تل چہ غماز دل زما ږیبی د غم پہ لور
پہ تن کښے دکړی لکه مهی مے دل کباب شو
پہ سرو لبو مے سوړ کړهٔ زړهٔ چہ نور نه کوم شور
دلبرو لاندے مے بل دے اور د پاسه ان دسره
ظاهر که بنکارم پیین باطن د سکور یمه تور
رقیب غماز پښان لکه د مار یمه خوړلے
ډیر زهر ئے د غم زما پہ ګل وجود کړهٔ خور
صبر شاد محمد ه تهٔ غریب بخیل نیب کړه
نهٔ دی چا زیات کړی د نصیبه څه پہ زور

---

ډیر غمونه مے چوی زړهٔ د نګار
لکه اوچوی د دانو پہ زور انار

---

[1] دکله بہ صبر واړ زما غمزده ... الخ

له دے هسے بوره جُرمَه مرگ بهتر دے
نورستم زغملے نهٔ شم داغیار
هر ساعت په مرگ راضي په ژوند خفه یم
چه ټول عمر دم په دم سوزم په نار
دیو غمه ے سرنهٔ وی خالی شوے
چه نورسل مے سر دپاسه وی تیار
ناسته ملاسته خوردوخواب مے شو دغم
یو ساعت مے ترینه تن نهٔ وی قرار
عاشقیٔ کښے هم بیلتون وی هم وصال وی
ما وصال په ژوند اونهٔ لیدهٔ دیار
دهجران په اور رقیب غماز کباب کړم
هم ئے سر کړی دخپګر راله افکار
غمزده به څهٔ ښادی فراخی غواړی
چه یو دم ترینه یو غم نهٔ وی کنار
خوشحالی فراخی کیږی بے غمیٔ کښے
چا په غم کښے هوس کړے دے بسیار
غم ښادی دواړه رورخوردی یو تربله
کله راشی ښادی غم اوکړی رفتار
ماونهٔ[1] لیده ښادی غم ے همراه دے
ښادی نهٔ شوله یو ځل راته اظهار

---

[1] (ماونه) لیده .... الخ

شاد محمد لا چه غم تیر کړی بنادی موی
تهٔ هم اوسه دخپل رب اُمیدوار

---

هسے رنگ زمانه شوله د بَـر
چه پیسه خلقو خوړه کړ له دسَرَ
یو پیسه چه ورته ورکه شی خفه وی
د زوال دایمان هیڅ نهٔ لری وَیَـرَ
نمونځ روژے حج وزکواة نه خلق منکر شو
بے پروا به یاغی کړ ځی له اکبَرَ
لویه درسته ورځ اوکړی په ملا ماتے
نمونځ به سخت گنړی له دیره لویه شَرَ
که دِ پلار سره بد اوکړی څوک دنیا کښے
له هغه سره به نهٔ کوے خَبَرَ
چه شیطان زمونږ نیکهٔ سَره بد کړی
دا بدی په نیکئ تا کړه مقَرَرَ

---

ے دخدائے پاک نه

ے شیطان آدم علیه السلام تیر ایستے وو - او هغهٔ لا هغے ونے دمیوے خوړلو ته اماده کړے وو دکومے نه چه خدائے پاک هغه منع کړے وو - ددغے خطا نه پس ادم علیه السلام او بی بی حوا دجنت نه ذمکے ته راغله !

امر نهی په کلام کښې خدائے وئیلے
هم راغلے دے حدیث له پیغمبرَ
په قرآن او په حدیث به عمل نهٔ کړی
دشیطان حکم به وړی زیات له نوګرَ
چا پښیله توره ځان نهٔ دے وهلے
تهٔ پښیل شمشیر وهے خپله ګیرَ
هغه کس کم عقل خوله عقل پاک وی
چه غنم به غواړی دے دجوله ګرَ
عاقبت ئے دو بیدهٔ په عقل وینم
چه ګرېږے په دریاب کښې بے ګدرَ[1]
په باطله لار چه ځی په حقه نهٔ ځی
کله نوُر په ګوته وړےشی څوک له نمرَ
که او نهٔ کاندی کړے زمکه بامنډ
څهٔ به طمعه دغلے کړی دېنجرَ
ردشیطان) خوئ[2] کوے دآدم نهٔ کړی
چه بدی دِ دنیکئ نهٔ کړه بهترَ ه
دا کم عقل کم هنر او کم انصاف دے
چه دِ خره کړله له اسپ برابرَ

---

[1] ګودرچه اصلاً دګذر بدل شکل دے
[2] ردشیطان) خوی کوی .... الخ

اوس چه پته ستر کې کړې خبر نه يې
په آخر به شې خبر له زين و زور
شاد محمده شپه او ورځ په زارۍ سوال شه
چه دِ نه کا خدای جدا د يار له دَر

---

که دِ راکړه ماله سره لبان ثمر
پرې ژولن به شي زما د زړه برهر
لکه داغ چه دلاله د زړه په سر وي
هسې زه لړمه داغ په خپل ځيګر
ناسته ملاسته مې د شپې ورځې شوه ورکا
بې لتانه راته اوس وي سودبستر
ستا طرف ته مې دا دوه ستر کې څلور کړې
چه دِ هسې انتظار کړم دخبر
که دِ زېرې د راتلو يار په ما کړې
ورته کيږدم به په مخ کښې مالوسر
هسې رنګ نظر کوم د يار په لوري
لکه خلق چه مياشت ګوري د اختر
ستا له حسن نه همه خوبان پټېږي
ستوري پټ شي چه را او خيژي پر نمر
که مې مس وجود سره زر په نيک نظر کړې
تل رڼا مومي د نمره دا قمر

چه هر څوک سنګ پارس په اهن مږی
هغه د رنګ اوسپنه واړه شی سره زر
وصالت لکه جنت عاشق ته ښکاری
له بیلتونه ورته اور ښکاری کمتر
که عاشق په وصل بوخت وی رنګ زیړوی
تل په زړه کښے د هجران لری خطر
خوږ طعام شی د مغه په خوله کښے زهر
چه په سرے بل نیولے وی خنجر
سره لبان لکه مرجان خوله ئے صدف ده
سپین دندان ئے کوی بریخ لکه ګوهر
غونډه زنه ئے ده سیب غاړه بلور
دا رنګ حسن دے ورکړے پاک اکبر
بنامار ان د واړه زلفان د پرے پراته دی
ګنج د لعلو د ګوهرو د صدر
د ننګه غاړه سینه پلنه پیرے ښیے
د لاله د ګل نازک لری کمر
که خپل عمر واړه صرف کړم په صفت کښے
هیڅ به اونه کړم صفت د خپل دلبر
څه حاجت زما په مشکو باندے نشته
ما ته مشک خاورے ایرے دی ستا د در

شاد محمد غریب غلام ستا دکوڅے دے
په خدمت د تل ولاړ وی برابر

---

بےله ربه تکیه مهٔ کړه په دوست یار
بے وفا دے که دِ روڼ دے که دِ سپلار
چه په خواست اوبړ ده وی لاس مدام پل ته
څوک به شی له هغهٔ کس نه طلبګار
چه زوال ئے د نعمت او د مدت دے
د هغهٔ نه مدام نهٔ دے سوال پکار
سوال پکار له شهنشاه بے زوال دے
چه مدام ئے سلطنت دے برقرار
که بنده د حکم آبرا مسند نشین شی
هم به وی د وزیرانو منت بار
نه ئے لاندے تر قدم چهار اقلیم شی
بیا به وی د درے نوړو اُمیدوار
غرض دا چه بنده نشته بے حاجت
د چا کم د چا اوسط د چا بسیار
(هغه ذات) غنی رب دے چه د[1]
چه رحیم دے هم کریم دے هم غفار

---

[1] (هغه ذات) غنی رب ... الخ

مناسب دی چه بنده شکر ادا کړی
په عطا د نعمتونو د جبار
د بېل بېل نعمت به شکر ادا نهٔ شی
که کل عمر کړی ثنا د کردګار
هر بنده دِ فضل غواړی له کریمه
ګنړی ځان دِ ملامت او ګنهګار
ځان دې ښه کړه په قباد قناعت کښې
رحم ترس فقر حیا دِ کړه دستار
تکبر کړهٔ عزازیل تر هسے حَده
د لعنت طوق ئے په غاړه کړ زنّار
بے میوے شجر په پورته ځانګے بیا ئی
سرنګون ځی چه هر شاخ وی میوه دار
یا یه لویه تکبر کاندی په بنکته
تواضع وړه پایه کاندی اظهار
ښهٔ او بد واړه کول سره د ځان دی
چه به بد اوکړی له بله بد کردار
په خوښهٔ وائی ټول خلق بد و ته بد
عاقبت روانیدل دی له دے دار
مسافر دِ توښه جمع د سفر کړی
بے توښے نهٔ شی سفر په لویه لار[1]

[1] مراد ترے د آخرت سفر دے

که ئے ذرهٔ د بنو خیزونو د خرید شی
دے به ځونګ بے پیسے شی خریدار
ځئ داځئ به اوبدے تربے او چے شونډے
چه روان وی بے پیسے نه په بازار
بلبلان طوطیان چه اوس په باغ کښے خاندی
داخندا به شی بدله په چغار
چه ښیرازه ښیرازه تازه تازه چمن وی
داخزان به ئے تالاکاندی بهار
بورالکان به تل په ګلو شادمان نهٔ وی
آخر تیر به شی د ذیرو ګلو وار
(دعدم) په لار به کل مخلوق روان شی
یو به پاتے شی خوبه نوم د پاک ستار
نهٔ به پاتے غر شجر نهٔ به آدم شی
نهٔ پیریان نهٔ به چمن نهٔ به ګلزار
هر قدم په احتیاط سرې له بویه
سرهوا وله پکار نهٔ دے رفتار
هر سرے چه سرهوا په لار ځ دروی
سر دلاندے به کومی ته شی ګذار
د دنیا په طلب ولے خدائے موهیر دے
هله خدائے شی درته یاد چه شے بیمار

ئے (دعدم) په لار... الخ

پہ چپل ژوند بہ عبادت د رب اونۂ کړے
نۂ بہ شے پہ ھر نعمت شکر گذار
کہ اوس تۂ لہ سنړاغتے شوے پہ حرامو
بیا بہ تۂ شے پہ آخر کښے خوار وزار
دا دوه ورځے عمر تیر کړه پہ نیکئ کښے
لہ بدئ شہ پہ توبہ پہ استغفار
دلسوزی پہ عاجزانو باندے بویہ
رب ناراض دے د عاجزو پہ آزار
دھر چا مدار کوه پہ خوږه ژبہ
پہ ضرر مۂ شہ موذی[1] پہ بل تر مار
څۂ پکار ده دہ میوه د ھغہ ونے
چہ بدن شی پرے سوری سوری پہ خار
د غریب دنیا میوه لہ زړه دکه
لہ اوبو سره ئے اوکنړه انکار
چہ ماھے مینہ پہ غوښہ دکنړ ے کړی
ھغہ دم شی پرے لہ حلقہ گرفتار
شاد محمده داخوږه لہ زړه وتړخ دی
تړے اوکانده ھر قدم توبہ باربار
پہ خوږو کښے دشمن زړه بل لہ ورکړی
شاد محمده دیر پرے مړۂ دی صد ھزار

---

[1] لہ "مضر" وران شکل دے۔ موذی۔ آزاررسوونکے

(زهٔ پهٔ عشق) کښې په مرض شومه رنځور
ورځ او شپې په ما تیرېږي په ضرور
ستا دعشق له جوش خروشه شین لوګے شوم
چه بېلتون دِ سر نسکور کړم په تنور
خیال مے ستا لکه داېر په زړهٔ خورشهٔ
په هر ساه دحسن ستاکوم منذکور
څه رنګ زهٔ به سرتړ پایه ستی نهٔ یم
چه بېلتون کړمه دیار له وصله دور
بے وصاله نهٔ دغېږمه کسر یږم
د بېلتون خنجر په زړهٔ کړمه ناسور
کل نقصان به مے د زړهٔ له پرهر ورک شي
که دِ داکړهٔ ماله سرهٔ لبان انګور
د وصال طبیب زما د علاج اوکړي
چه مے اوځي د بېلتون مرض قصور
د بېلتون غرمو مے کل صورت خولے کړي
تهٔ په ما اوکړه سایه داوربل ګور
ما چه ستا لبان په خولے کړهٔ نا زېروره
سوي پیزوان دِ شوله قهره راته سور
ستا دحسن په لیدو شومه بے خوده
دانه لار شوکه مے هوش وو که شعور

له (زهٔ په عشق) کښے .... الخ

بیلتانهٔ ے برج د زړه دے نړولے
په مدد ئے د وصلت کړهٔ تهٔ معمورۀ
له وصلتَ به دِ زهٔ توبه کاړ نهٔ شم
که بیلتون مے غوښے پریکړي په انبور
په کشش دعشق زړهٔ دِ زما یَووړ
لکه زړکه په منګل یو سی باتور
نوَړ په ابر کښے پټیږی ستا له مخه
پرے غالب دے یو په تَل ستا دمخ نور
هر عاشق لره په کاره غریبی ده
دبیمار په ځان پکار نهٔ دے غرور
په بل ځائے کښے مبنک عنبر دی راته خاورے
ستا د درخاورے عنبر دی هم کافور
شاد محمد دِ ستا له غمِ ے جدا نهٔ شی
له وریشته دوړه ښهٔ دی پیسے حضورۀ

بل به نهٔ وی هسے رنګ خوار و حقیر
لکه زهٔ یَم په تا پسے زهیر
چه دِ غرقه کړه لیندہ دکږ و وروځو
په بدن مے دِ کړهٔ ښخ دبڼړو تیر

---

ۀ آباد ۀ حاضر - موجود

زۀ مجروح[1] یواځې پروت یمه بې خوده
دوصال پهله مې کینږده په ضمیر[2]

بې له تا نه هیڅ له ځانه خبر نۀ یم
هسې ستا د عشق تاؤ کړم هوا کیس

هیڅ اثر د شادمانئ مې تن کښې نشته
ګل له غمه مې اخښلې دې خمبیس

په وصل د مخ مې دوا ره لاس سوده کړه
هسې زۀ کړم د ږ پیښې د صورت ویس

په بل ځائې کښې ناست په تخت سلطان بنۀ نۀ یم
ستا په دږ کښې خوار ملنګ بنۀ یم فقیر

یو ساعت قراري کله د مرید شي
چه یو درنګ ترې نه په ځنګ کانږ ځان پیر

که دِ وژلم هاله مږ مې کړه دلبره
چه مې بند کړې په کمند زلفو دستګیر

ستا وصال زما د حاله خبر نۀ دے
چه بیلتون دِ بند په بند کړمه اسیر

په اثر د نور قمر موندے نور دے
نمر موندے روښنائي ستا په تاثیر

تورې زلفې دِ لښکر جبین د تخت دے
دسږ و ټیک دِ دے بادشاه خال دِ وزیر

[1] زخمی [2] زړۀ

عاشقي د مهرويانو شاه ګدائي کړي
که څوک خان وي که نواب وي که امير
نام و ننګ مې ستا په عشق کښې اوړه کړه
سوال د وصل د کوم په پاک قدير
د خلاصي تجويز مې نشته نۀ خلاصيږم
زړۀ مې بند شو ستا د زلفو په زنځير
(زړۀ که[1] تل) تدبيره ستا د وصل اوکړم
مګر خاندي په تدبير پورې تقدير
د زړۀ وينې مې په جوش سره اوبۀ شوې
څۀ له سترګو مې د سينه هسې بهير
د خپل مخ کاغذ ته ژبه مې قلم کړه
د اسند را کړه د صدر[2] د جاګير
هسې ستا عشق مې خور په کل وجود دې
لکه ګل غوړي په مينځ کښې وي د شير[3]
د زړۀ زخم به رفو د شاد محمد شي
که دِ وړ کړۀ سره لبان وله اکسير

---

ستاله حسن په دنيا پېښه شوه څوره
خوند دلبو ته دِ مړاوې شوه نخوره

---

[1] زړۀ که سل) تدبيره.. الخ [2] سينه [3] پټې شوه [4] اوګنډلې شي.

پہ ظاھر بنکاریږم روغ درون زخمی یم
ستا د عشق مے خوړلے پہ زړۂ ننوړ
د رحمت مرھم پرے کیږ دہ چہ ترے روغ شم
چہ نور نۂ کوم فریاد زړۂ نا سوړ
ستا د عشق پہ مرض بیخودہ پروت یم
ورځ اوشپہ پہ ما تیریږی لہ ضرور
دوائی د سرو لبانو راپہ خولے کړہ
چہ شی لرے مرض ما غونډے رنځور
سرتر پایہ ستا د عشق لہ تاوہ تود یم
چہ داسے گرمی نۂ ځی لہ تنور
ما چہ څوک منع کوی ستا دیارئ نہ
پہ ھغہ دِ رب کریم کاندی مور بور
ستا د حسن پہ لیدو مے دے خود ستے
تش کالبوب لکہ دبت یم بے شعور
سیاھی بہ دِ د زلفو څوبیان کړم
تورہ شپہ دہ ورتہ سپینہ ترکافور
(نمر) اوس اولیدۂ ستا حسن لہ شرمہ
نمر پہ غرب سرہ تیارۂ کړہ ځان کور
(غني تش) پہ نشہ مست دخواب نشہ شوہ
غني ویښ وصل دِ غواړی لہ غفور

---

۱ (نمر) اوس اولیدۂ ..... الخ ۲ (غني) پہ نشہ مست ..... الخ

زړاۀ د دې یوے نشته د نمر مخ کښے
هسے ستا په مخ کښے نمر کنړم بے نُوَرَ

که املوک بیرے ګرګر ے سره خیشیے
څهٔ سیالی به سرځ اوکړي له انګورَ

عاشقان دی صادقان صابر په صبر
عاشقان منافقان[1] دی نا صبوُرَ[2]

هر مُجرم سزا په جرم دخپل مومی
زهٔ مُجرم دیار په مخکښے بے قصُورَ

شاد محمد په صحدم کښے دا دعا کړی
چه مے نهٔ کړی رب جدا ستا له حضوُرَ

---

هسے ما په حُسن ته رنګ کړه دلبرَ
لکه بدر حُسن موندے دے له نمرَ

بیلتانهٔ دِ په ما غم د محرم کړی
په وصال مے کړه خوشحاله د اخترَ

سرنګون دِ په جنون لکه مجنون یم
یون دخون مے دی هر دم د زړهٔ له سرَ

اُوچے شونړے رنګ مے زیړ سترګے له نمه
ستا یارئ له خودو[3] خواب کړم ناخبرَ

---

[1] درغل [2] بے صبره [3] د بیدارئ او خوب

هیسے زۀ پہ خنجر ستا دعشق مجروح[1] یم
چہ ویرېږی طبیبان ے لہ پرهر
بے دارو یواځے پروت یمہ کړیږم
وینے زوے ے بهیږی لہ جګر
چہ ے خون پہ جوش دزرۀ دپرهر راغے
داوبو پشان ے تو ئے شولہ بصر
ستا دعشق پہ اور نسکور لکہ کباب یم
سرتر پایہ ے رنګ تورشو لہ مجمر[2]
تور زلفان دِ بناماران پہ صدر زانګی
څوک بہ لاس کہ ورتہ وراندے بے منتر
(ستا دغابنو) روشنائی[3] تیارۀ دنړا کړی
سپین ځلیږی آب ئے تیز دے لہ ګوهر
(یارۀ) اونیسہ[4] زلفان دباد پہ ځنځنے
چہ پہ بوئی خلقہ شی معطر
خولہ غنچہ لبان دِ پانړے دګلاب دی
پول پولک ورتہ پہ خوند کښے شوہ شکر
دعشق بوتے ے زړ غون دزرۀ پہ سردے
ورلہ ورکړہ دمستئ دوصال سر

---

[1] زخمی - پټی - پہ مرجلے [2] انګیټهئ [3] (ستاد غابنو) روشنائی..
[4] (یارہ) اونیسہ .... الخ

عشق کښے وصل بیلتون دواړه بادشاهان دي
کله یوشي ورته لانده بل پے برَ
دوه ۱۱ ... بس دي دبیلتون غم دے
چه ویریږي هر عاشق تر له سبکرَ
شاد محمد سوال کوه دربٔ کریمه
چه دِ نهٔ کاندي جدا دیار له دَرَ

---

ذړهٔ ے تاکړکباب د هجران په تیز اور
ماوے کړه ترینه مې بیلتون بلکړے نور
زړهٔ ے تاکړو پرهر لمتوي په نشتر
مالګه بددي پرے اکثر دیر ترے لاشوم په شور
دیر ترے شوم په چغار غم دِ کړ په ما بار
هیڅ ترِنهٔ موسم لاړ شومه زهٔ کروکور
شومه دیر په ضرور دل زما شو ناسور
مینه ستا ده تنور پکښے شوم سوے سکور
پکښے زهٔ شوم جلبل په زړهٔ بنج ے شوشل
راغے ن ے اجل چه دِ راکړهٔ پیغور
پیغور مرګ دعاشق چه کنړي ځان صادق
په تهمت شي لائق چه پرے ځان کړے تک تور
په تهمت دِ شوم رنګ ته چراغ زهٔ پتنګ
شاد محمد دے ملنګ پرے بیلتون کوي زور

ستا د عشق تیر مے وتلے پورے اورے له جګر
په نارو زارو فریاد کړم که مے او منے دلبر
(دسروشونډو) را مرهم چه تر جوړ شمه صنم
چه نور نهٔ دے وهی بیرون خون زما له زړهٔ پرهر
عشق ستا کړمه مجنون، سرے ایښے په زنګون
د فکر ونو په تال زانګم، سترګے نم جولئ مے تر
د لاسه د محبت را کوه په هر ساعت
کښی مرم حال مے خراب دے ستا د عشق له اثر
خوردو نوش مے خون د دل دے، تن مے توول په تیغ ګامل دے
نهٔ رغیږمه کړیږم ستا د عشق له خنجر
ابرو ستا بر کښے کمان دی، شتئ غشی د مژګان دی
وارهٔ ښخ نما په ځان دی پکښے کړیږم تر پښنو سر
سر تر پایه په غم ډوب یم، په فریاد لکه معذوب یم
اور بلیږی مے په تن کښے رنګ مے تور شو له مجمر
حسن ستا صے غالب دے، چه دِص سړے طالب دے
تهٔ مطلوب وصال د غواړی شپه او ورځ پر برابر
شپه او ورځ کوم فریاد، تهٔ مے ئے د زړهٔ په یاد
تهٔ مے یک د زړهٔ په سرئے د نور چا یم نا خبر
نا خبر رانه وصال دے، ځکه مرمه بد مے حال دے
ما خوشحال کړه رب د پاره په وصال زیات له اختر

---

[1] د سرو شونډو ) را مرهم .... الخ    [2] انګیټهئ -

شاد محمد واتی خیرغوارم همیشه چه درته ژاړم
مناسب نهٔ دی چه څمه جولئ تشه ستا له دَرَ

---

دلبر شوم پرص په جگړ کوم شور
مرهم راضم ځی مے دم حق پہ لور
تک شین عنبرین په جبین وهی خال
نمکین دِ مسکین په سنګین غوڅ شو نور
ژوندون مے زبون چه طاعون مے دے مل
په یون مے ځی خون تا نګون کړم په اور
خارو په نرو لبو سرو مے کړه سیں
مهرو په دور وکماره دِ کړم سُور
په تیر دِ تا ډُکیں کړ ضمیں مے سورے
زهیر زهٔ فقیر کوم ویر سر سر تور
دګریان کړم جانان ص زمان د فراق
امان زما ځان په نیران شو نسکور
بے ید شاد محمد په احد کوی سوال
دوه بُد دِ اشد بیعد دلری زور

---

له په دے غزل کښے ئے اکثر د مسجع په طور هم رنگ
الفاظ راوړی دی۔ ۲ دګریان کړم جانان ... الخ ۳ بے لاسونو
۴ دوه ید (؟) ۵ زمرے۔

په دنیا کښې په دنیا چه شي خوک خوار
ورور اشنا عزیز ترېور شي ترې ويزار

هر سړي به برخفقه ورته برند وي
لکه ده چه وي وژلے وله پلار

په مجلس کښې خلق خبره دده ناوري
که ګوهر لعل والماس ئے وي ګفتار

سپک به سپک نظر کوي که اګر درونده وي
په سپک سپک په درنو دروند به وي بسيار

تمامي عالم ئے کار کړي په وېلو
که په عقل دولتمند وي دخره يار

که غريب سړے هر خو دچا دوستي کړي
ټول عالم ئے له دوستئ وي توبه کار

دنيا دار که خلق شړي دئے دخانه
هم عالم ئے ددوستئ وي اميدوار

دنادار و ددوستئ خلق نفرت کړي
که په عقل دلقمانؑ وي هوشيار

ټول عالم بنيا بقال کوډي فروش شو
همت صدق سخاوت شو پښه د مار

دے دُنيا قارون ژوندے په زمکه ننخ کړ
شاد محمد بنه چه نه ئے دنيا دار

نۀ کوے شم دخپل مرض اظهار
نۀ مے توان شته د زغملو دَ دے بار
ظاهر تن زما عالمو ته روغ ښکاری
باطن حال نه مے خبر دے پاک ستار
سخت مرض مے دبدن تازګی دوړ کړه
لکه تیر شی دچمن دګل بُهار
زۀ بے تبے یم دتبے له تاؤ ګرم
بے انګاره مے زړۀ سوزی په انګار
ناعلاجه ے له دنځه طبیبان شو
هسے زۀ په سخت مرض یم ګرفتار
یو طبیب مے د مرض تشخیص اونۀ کړ
خدائے په هسے رنګ مرض کړمه بیمار
څوک مرض ته مے جوله او یرقان وائی
بعضے وائی چه پرې نۀ یو خبردار
او چے شونډے لیمه تورګونه مے زرد ه
خوب خوراک مے نشته هم زړه قرار
مائے څوانګ دګل په زنو نیولے نۀ وو
له اول مے تن سُورے سُورے کړو خار
معشوقه عاشق په فضل درب سوی
شادمحمد دے دفضل امیدوار

ا دیرے تندے مرض چه ستاؤ هم ورته وائی ۔ ۲ زیړے

ساقی پاسه جام دے وکړه تیار
چه په څکولے په نشه شمه سرشار
تول ډکونه مے اوده دی نۀ ویښیږم
چه څۀ قدرے شے دحال خبر دار
په ماهر ساعت خزان وی بے موسمه
په ګلونو وی خزان کله بهار
(کله[۱]) غم د زړهٔ بدل مے په هوس شی
چه له درده د غمونو شی قرار
(سانده[۲]) تارونه کوز کړی کله پورته
په یو کچ زما د زړهٔ غریبی تار
نۀ مرده او نۀ زنده یم درمیان یم
څه خو ماکړه د زنده خلقو پشمار
ویښی اودهٔ یمه په زمکه نۀ آسمان کښے
په جرعه دکیف مے کړه اودهٔ بیدار
خوشبوئی دګل کشش بوړا له ورکړی
بدبوئی دنجاست کړګونګټ یار
څۀ که رنګ صورت د دوارو برابر دے
ګونګټ خوشے بوراهر چاته روښدار

---

۱ غم د زړهٔ ..... ۲ (سانده) تارونه کوز.... الخ
۳ ګونګټ ۔

تهٔ په څهٔ خان سړے بولے شاه محمده
د سرو دِ چرے کم کړے دے کار

---

دیباره ورشه چه مے راشی په پوښتنه دلبر
ورسته دیدن دے ساه مے خیژی یم روان په سفر
دیدار په لورے کړلے دوه سترګے ځلور په کتو
کله به اووینم رخسار دیار زیبا د قمر
فریاد نړے کومه زړهٔ په زړهٔ سورے له درده
راشه مرهم کیږده صنم زما د زړهٔ په پرهر
دعشق په اور دِ زړهٔ نکور کړم دکباب په مثال
اوس مے کړه مور زړهٔ مے کړه سوړ دبوسو په کوثر
خون مے بهیږی دچشمانو د مجنون په طور
زړهٔ دِ کړم مینے نازنین زړهٔ ښند تن مجمر
په تیږ دعشق سوے ضمیر یمه فریاد کومه
د رب په نامه دخپل غلام په وصال واخله خبر
زړهٔ شاه محمد یمه سائل کومه سوال دوصال
کچکول په لاس په دیروسواس ولاړ یم تل ستا په در

همیشه دره پیے کړحم سینه سوے زړهٔ افګار
تن مے مله په آرام شی چه د اووینم رخسار

د سپینے

(دبناسُت دِثانی نشته محبوبه په کُل عالم کښې
هسې حسن دے درکړے الٰهی پروردګار
صنوبر سروے شمشاد ستا تر قد پورے شرمیږی
د جهان واړه خوبان دِ کهنړم لاندے دے پیزار
کُل عالم د عاشقان دی د تمام عالم معشوقه
معشوقه د کل جهان ئے معشوقه ئے د ستار
په ارزو د وصالت دِ ژاړم ډیر ډیر له بیلتونه
زړهٔ طالب ته ئے مطلوب ئے ځکه کړم نا قرار
نمرهلال بدر سربنکته وی ولاړ د خجالته
ستا د حُسن له تاثیره دوی موندلی دی انوار
امیدوار شاه محمد دے ستاله فضله ذوالجلاله
لمن تینګه ے نیولے ده په لاسو د روئیدار

ریباره ورشه راخبرکړه چه ے راشی نګار
روح ے رفتن که ساه ے خیژی یمه پروت دلفکار
نشته طبیب چه ے مرهم کیږدی د زړهٔ په زخم
آخر به مړ شم په ارمان زړهٔ د وصال دخپل یار
سر په زنګون لکه مجنون یمه دخلقو جدا
لکه کباب دِ زړهٔ نیولے یم د غم په انګار

---

(دبناسُت دثانی، نشته ... الخ

رہ د بیلتون په بند بندی یم خلاص په نشتر نه
ځکه ے اوښے وینے درومی لکه سیند په رخسار
زړه په روغ نشم په دمونو په منتر د یارو
په زړه محبوب یم خوږ ئے ستا دز لفو ښامار
رحم دِ کم دے قهر دیر کړے ځکه ویرکومه
زړه له دِ هسے ژوندہ یمه په سل وار توبه کار
که خیال د وصل شاد محمد ته لرے د صنم
ځان ئے ملنګ کړه ورته پریوځه لکه خس په دربار

جفا راته وفا ده جفا نه ګنړم د یار
زحمت راته رحمت دے زحمت نه دے د دلدار
کړمی کښے د سمی هسے کباب ے زړه د تن شو
هم دم چه دیر غم راته چاپیر شو لکه نار
(ته ګذر) چه په ګذر کړے په دریاب خطر کم وی
غرقاب شی په ګرداب چه بے ګذره کړی رفتار
په خون چه د لاله پیاله دکه شوه د جوره
تور داغ لکه د زاغ لری په زړه شی تار په تار
رقیب د عندلیب سره به څه اوکړی دوستی
یار و کړی د مرو مل د ژوند وغل شی دوستدار

---

له په دے غزل کښے ئے هم د مسجع نه کار اخستے دے یعنے هم قافیه الفاظ ئے راوړی دی۔ ئه د ته ګذر) چه په ګدر .... الخ

چمن شي به رفتن پېښه په رکاب لکه د سور
ځه وار شي په خزان د چمن لوټ کاندې بهار
د انمرچه د قمر د پاسه اونیسي چتري
پرتو به شپ چوګان ضرور د نیکې کړي ښیار
ډېر ډېر په عمل بد زهٔ شاد محمد بنده د رب
پیشوا مې کړه رسول چه د مقبول دے په دربار

---

د نېے عقلو یاري اوکړه بل اور
د اور کار بغیر د سوه لو نښته نور
چه مدام مومي د اور تاؤ نه کرم
خود ضرور به وي د خپله حال تور
خندا زرشي په ژړا ژړا خندا شي
وائ غم بنا دي دي د واړه زور خور
له احمقو خوشحالي د انځر کل د ه
غم الم جفا هجران به مومي زور
چه بے عقل تش له دینه خبر نهٔ وي
چه یاوران دے یاودان دے زماکور
په احمق که مات کړي سل کوټکه خیر دے
د عاقل د پاره مرګ دے تش پیغور
زړهٔ په عشق کښے پائ بند د عقل نهٔ دے
عشق عاقل کړے زړ به د واړه وستر کو کور

دبے عقلو مونږ دِ اوخیژی په نوُ سی
هر احمق بانده دبوره کړی دب مور
عاقلان همیش دنقره شره تبنــتی
احمقان همیشه شرا خـلی په پوُ ر
(دا متل) دے بے عقلی تو ده بـلا ده[1]
هر بے عقله وی تل خپل ازار ته چور
راضی مند وی یار آشنا دهوشیار دوستـه
احمق ریبی ذرۀ دیار دغم په لور
په تدبیر به خپل نصیب ذرۀ زیات نۀ کړے
غور به نۀ شی چه خوک وی دغورو سپور
شاد محمده په نصیب صبر واجب دے
څۀ به زیات کړے چه ډیر اوکړے شروشور

---

زلفے دِ محبوبے په سپین مخ کړے تار په تار
سیزی ما ملنګ صنم هر دم دغم په نار
ټیک دِ په جبین کوی شعلے لکه دنوُر
ستوری دِ خالونه عجب خوند که په رخسار
ستا صدر ده باغ زلفے زلئ پکښے خورے
ما چه لمتوه پکښے مے بیا مونده اسار

---

[1] د (دا متل) دے بے عقلی ... الخ یا (عقل بنه) دے ... الخ

ناست یم سرنګون لکه مجنون د روغو بیل
غوڅ غوڅ قلم قلم یم ستا د عشق په ذوالفقار
مرهم د سرو لبانو ماله راچه شمه د روغ
چه نور ژړا فریاد نهٔ کوم نهٔ په زړهٔ افګار
ما شاد محمد ستا لمن نیولے ده په لاس
وا به نهٔ ورم زهٔ که څوک مے سر کړی سور پدار

رسا خبنه مے خطا کړه په غرور
د وفا په خیال جفا مومم ضرور
په زحمت سره مے زخم د زړهٔ جوړ وی
بے زحمته سر د زړهٔ مے وی ناسور
د محبت د شفقت مے حلق تریخ دے
د بیلتون په غم وی خوږ په خوږ انګور
په ستم مے کم مرمن شی د وجود ده
د وصال په خوشحالئ شم لا رنځور
راحت مومم د زحمت د ډیرو سختو
بد زحمت شی د راحت په ما حضور
طبیب هله د بیمار په خصمانه شی
چه بیمار وی په مرض باندے برپور
سختے ګرمے په مریض باندے تیرین ی
روغ د ندان دی چا ویستلی په انبور

په غوږو د ننګ پتنګ ستي وزر کړي
تاروګې ځپان د شمعې کرځې دور

دوصال وي بيلتون بيلتون د وصل
تل د غم سره تړلې وي سرور

غم بنا دي دواړه دور خوردي باور اوکړه
کله غم کله بنا دي کړي ځان ظهور

خون د زړۀ زما په سترګو کښې شوے اوبه
چه د اونبو پاس د عشق په تنور

شاد محمد ملامت خجالت اوسه
بې قصور ه کنړه خپل ځان ته قصور

---

چه ے زړۀ په بل زړۀ نۀ لګوي اور
يقين د ا چه زړۀ مے پسين نۀ دے د تور

په لرمون کښے د مجمرے اور بليږي
دود د خولے په اسويلو ے اوځي زور

چه ے سوي زړۀ کشش يا ر له ورنۀ کړه
اور د اوچو په مدد کاندي شين سکور

د صفا زړۀ په تاثير بل زړۀ شي جذب
لکه اوخوري د حلوا نوړۍ سپور خور

په کشش چه د يار زړۀ چه مے خپل نۀ کړ
بې له نقصه زما نشته سبب خور

یا مے ذرهٔ دیار دمرهٔ، یا د وحشی دے
چه مے زرهٔ په ذرهٔ دیار نهٔ کوی کور
حال مے داچه وینی اودهٔ دِیم په غم کښے
غریب افسوس مے زرهٔ دِسبی دغم په لور
(تکهٔ شور کوی) چنړے سرے په بټ کښے[1]
هسے زهٔ دغم له اُور ه کوم شور
په خپل ژوند به دِ دعشقه لاس وانخلم
څو چنجو خوړے نهٔ یَمه دګور
عاشق نهٔ وی چه ویریږی دپیغوره
شاد محمد دے قبول کړے دے پیغور

---

سر دذرهٔ مے شو سورے سورے ناسُور
څکه شب وروز اخته یَمه په ضرور
داخچهٔ رنګ او کهٔ[2] لار دعاشقئ ده
چه زما په آه فریاد کوی غُرور
خاکساری دلویو خلقو بالائی ده
نهٔ کمیږی په پوښتنه درنځور
زهٔ بیهوشه دبیلتون په مرض پروت یم
دوصال طبیب زما نه کړځی دور

---

[1] (تکه شور کوی) چنړے ... الخ
[2] غالباً اپوته

یا مې وصل کړه دځان سره محبوبه

یا مې سور کړه په سولۍ لکه منصورؒ

چه مې وژنې درته خون مې دې بخښې

مګر اوښایه اول زما قصور

تنې ذم به مې په تن کښې دوباره شي

که دِ سورې کړې په ما د اور بل تکور

په منت به چِل بیلتون دعشق نهٔ شي

چرنه ملحه سره کیږي دستربُور

د وفا نامُ ونښان چه یکښې نهٔ وي

څه که غټ وي په صورت باندې باتُور

چه په باز کښې وفائي او اشرافي ده

څکه زرهٔ کښې شاه ګدا ته وي منظور

شاد محمده بې وفا نه وفا غواړې

لکه غواړې بکیانړې نه انګور

---

له منصور یو عالم صوفي وو ـ په تصوف کښې ئې نعره اووهــله "انا الحق" یعنې زهٔ حق یا خدائې یم له دې کبــله علماؤ پرې دکفر فتوی اولــګوله او په دار ئې کړو -

# په هيڅ کښې نۀ خلاصيږم

نۀ مې څوك پريږدي دننه نه بهر
نۀ مې څوك پريږدي په سوري نه په نور
نۀ مې څوك پريږدي په ښۀ کښې نۀ په بده
نۀ مې څوك پريږدي په عجز نۀ په شر
نۀ مې څوك پريږدي په کور کښې نۀ په کوڅه کښې
نۀ مې څوك پريږدي په سمه نۀ په غر
نۀ مې څوك پريږدي راضي او نۀ ناراضه
نۀ مې څوك پريږدي په غم کښې نۀ خوشحال
نۀ مې څوك پريږدي په ويښه نۀ په خوب کښې
نۀ مې څوك پريږدي ولاړ نۀ ناست اکثر
نۀ مې څوك پريږدي قرار نۀ ناقراره
نۀ مې څوك پريږدي خوشحاله نه مضطر[۱]
نۀ مې څوك پريږدي په جنګ نۀ بې جنګه
نۀ مې څوك پريږدي بې زړۀ او نۀ زړۀ ور
نۀ مې څوك پريږدي چپ دم نۀ په خبرو
نۀ مې څوك پريږدي په پټه نۀ مظهر[۲]

---

۱ پريشانه    ۲ ښکاره. څرګند. ظاهر

نهٔ ے څوک پرین دی آزاد او نهٔ په بند کښے
نهٔ ے څوک پرین دی په قید نه خلاص وزر
نهٔ ے څوک پرین دی خـنـړے نهٔ ے ونهٔ
نهٔ ے څوک پرین دی مِس جس او نهٔ ے زر
نهٔ ے څوک پرین دی بنه خوږ نهٔ ترخ دزهرو
نهٔ ے څوک پرین دی فلفل نهٔ خوږ شکر
نهٔ ے څوک پرین دی په اُوچه نهٔ دریاب کښے
نهٔ ے څوک پرین دی مشکنړه نهٔ ګـــوهر
نهٔ ے څوک پرین دی فقیر نهٔ ے امیر
نهٔ ے څوک پرین دی په اس نهٔ سور په خر
نهٔ ے څوک پرین دی پیاره کښے نه دنړا کښے
نهٔ ے څوک پرین دی مسلم او نهٔ کافـر
نهٔ ے څوک پرین دی بل نوم نه **شاد محمد**
نهٔ ے څوک پرین دی ذرهٔ ډک نهٔ بے خبر

---

چه رایاد جور وستم کړم ددلـــبر
اور ے پورے په وجود شی ســراسر
چه درحمه مرور د ظلم خپل شی
همیشه به ئے وی پیشه جـفا ضـرر

---

نه تورمرچ

چه یک رنگ وی ورته دوست او دشمن دواړه
هغه کس او مار لړم وی برابر
چه څپله یار رقیب او هم غماز شی
دعاشق به وے نهٔ وی زړهٔ پرصر
ترحم وفا خصلت وی د هوشیار و
خهٔ وفا خصلت بنهٔ بد پیش نی خر
که هر څو ناله فریاد عاشق په زور کړی
معشوقه بے عقله نهٔ کوی باور
د بے عقل که منت او دلاسه کړے
لا د صلح نه راغی وی په بوے شر
دعاشق په احمق او بشے تاثیر دهٔ که
نهٔ پستیږی په اوبو د سیند حجر
که د ښتنے د ښم لږ عقل پکښے وی
هم زما په حق به وسیږی جگر
خان به مر مړ کړم په وصل که د ستا او مونږ
لکه مړ په دڅ خوراک شی ډیر نهر
هغه کس به شاد محمد کا څهٔ بنادی کا
چه چاپیر ترے وی مدام د غم لښکر

---

مرګه راشه جګی جګی په تلوار
روح مے اوباسه چه نهٔ وینمه یار

بے دلبره زما هسے حال خراب دے
لکه اوس کښے چه سڼند کاندی گذار
هٔٔی توبه له دے ژوندونه راشه مرګ
څه خوما په دا کرم کړه منت بار
د ژوندونه توبه توب اولاس په غوږ یم
داجل شربت ته دیر یم امید وار
زهٔ وجود آشنا مے روح بیلتون جلاددے
وجود خاورے شی چه روح اوکړی رفتار
اوس دعشق مے تاؤ برخیره دافسوس کړی
شین لوګے شو ترے په کل جهان اظهار
که د زرهٔ صنم داوسپنے نه سخت وے
شنه فولاد په تاؤ شی کرم دانګار
عاشقان کله دمرګه امان غواړی
پتنګان په هوس ځان سیزی په نار
زهٔ عاشق یمه صادق، منافق نهٔ یم
بے لتانه په نور څهٔ نهٔ لرم کار
په تاثیر د زرهٔ صفا بل زرهٔ شی جذب
پلید زرهٔ کله موندلی دی اسرار
صاف آئین کښے چهره صافه معلومیږی
کله بنکاری چه پرے پروت وی ګرد غبار
نهٔ پیټنے ، احسانمند ، داحسان دلاندے

ولے زۀ به پخپل ژوند توبه ګارنۀ یم
چه په سر دزړۀ خو ړے یم بناما ر
هر یو بیت مے دارمان او دافسوس دے
په زخمی زړونو مرهم لګی طیار
زۀ دلسوز شاد محمد خوښ به شم له خُدَه
که مے سر کړے دمنصُور هسے په دار

---

نۀ شونۀ شوخوک زما په ځان خبر
نابینا ے ګڼړی زیر پکښے سره زر
دعوام په خیال بنکارمه کنجکه
هم په اصل هم په عقل یم ګوهر
بے ما ئے خلق هیڅ فرق کولے نۀ شی
په مابین کښے دمشکڼ ے دجوهر
نکه ما تے پسے غونړه خلق وُلی
هسے مالیونے بولی خلق اکثر
دجاهلو سره ګرانه دبنتینی دۀ
څو چه دوئ سره ځان نۀ کړے برابر
(عقلمنڈ) لره واجب دے چه ساکت شی
که جاهل شی طاقت توانِ وی دشر

---

ـه دمنصور ذکر وړاندے تیر شوے دے ـه (عقلمند) لره واجب .....الخ

د جاهل د لاسه تل عاقل خوږېږي
سا ئلان همیش د سپو موږي ضرر

عارفان به د حیرت گوتې په خوله کړي
که زما په باریکئ اوکړي نظر

په دلیل عدل انصاف که ملامت شوم
جاهل نهٔ یم چه لږ ځان به گنړم بر

چه د زړه ساړے نهٔ وي ورته گوابنے
هغه کس د وچند سوا گنړم په خر

حوصله صبر پکار وي په هر کار سبکنے
هر نهال[1] د صبر خوږ نیسي ثمر[2]

د فریب د مکر جهل نه خالي یم
ځکه نوم مے لیونے شو مقرر

په چغلئ جهل فریب که پوهیدے
لیونے به راته نهٔ وے هیڅ بشر

دا مے وار ه کمبختي بدنصیبي ده
چه مے بنهٔ په بد حساب شو سراسر

چه هنر مے پټوے د عیب په گوته
پټ به نهٔ کړي نوړ په گوته څوک د نمر

شاد محمد ه صفا اوسه په چل صدق
صفائي د هم هاکیار[3] وي هم سپر

[1] بوټے . ونه [2] میوه [3] وسله (هندي ده)

په اغزو ے شو سورے جگر
ستا دعشق ے اونهٔ خوا رهٔ ثمر
کیف ے خوړ دعشق شرابو په وجود کړ
ځکه اوس شو راته تول د زمکے سر
نهٔ ے ناسته نهٔ ے ملاسته نهٔ آرام شته
ترصنده لکه اهو کړحم اکثر
ستا دیدن کوم په ویښه هم په خوب کښے
دب ے نقش په زړهٔ ډیک کړو ستا بشر
رنهٔ ے مل) او نهٔ ے خوب نهٔ ے خوارهٔ شته[1]
جُدا کوحم رنگ زیړے او لیمهٔ تر
که ظاهر په وجود دوغ بے زخم کوحم
په باطن کښے سر د زړهٔ ے د سے پرهر
ستا دعشق تاوونو صبے دیوانه کړم
چه د ځانه یو پوهے نهٔ یم خبر
ستا وصال رابانده هیځ سورے اونهٔ کړ
بیلتانهٔ ے نیزه واړ کړ په سر نمر
دوصال دکوم سوال درب کریمه
دبیلتون یمه د حده په خطر
د وصال په باغ به هله سر دروون کړے
چه په مثل دپتنگ ستی کړے پر

---

[1] (نه ے مل) اونه ے ... الخ

شاه محمد ه بے درب دحکمه نهٔ شی
د نصیبه سره خله کوے شر

کلک غواص مے کړهٔ غوپه په دریاب سر
خدائے خبر چه راوړی کاڼړی یا گوهر
بے مضمونه بدو ئیل دی کاڼړی شته
خوش مضمون ویل دی دُرّ لعل و جوهر
د خطائی اصل اصل سره جوړ وی
باز له بازه زاغ له زاغ وهی پَر
راته وایه بنده ډک دے سرتر پایه
د اصیلُ خطا خیژی خو کمتر
بد اصلا نو ته خطا په خطانهٔ وی
خطا مرګ دے اصیلا نو ته اکثر
د کم اصلو نه ادب نه پرے پوهیږی
د اتعلیم دخوړ دسالئ دے د پید ر
چه ئے پلار وی نا خبره د ادب
فرق کم دے په مابین د دهٔ اوخر
د سړی په مینځ کښے فرق خو ئی ادب دے
چه د انهٔ وی خهٔ چارپایه خهٔ بشر

---

ا د الفظ محمد اسے یک دے (دخطانهٔ)؛ خو مطلب ئے "روز ازل" ښکاری۔

راحمق کم) نهٔ دے دمار او د لړم سنه
لا کم عقله ترینه زیات دے په ضرر
دکم عقلو نهٔ موده اونهٔ دار وشته
مار لړم له هم دارو شته هم منتر
**شاد محمده** دریاب ډک دے دګوهرو
چه په لاس راتلهٔ هغه ےکړهٔ بهر

---

په جنګ غلی زیاته وی شر په مدار
تازه کیږی په اوبو باندے مرغزار
په باران اوپه اوبو باندے اوچیږی
دسوکړے په تاوُ شی شین هغه ګلزار
بے ډوډئ اوبو مړیږی باور اوکړه
په ډوډئ اوبوشی وږے ناقرار
په دوستئ کښے دشمنی کوی دشمن شی
دشمنئ کښے به دِدوست وی لکه یار
دحسابه چه څهٔ زیات شی یا څهٔ کم شی
همیشه ګرځی په سر هغه پیزار
نابینا سره بینا چه شی ملګرے
دبینا نه نابینا هیره کړی لار

---

۱ راحمق کم) نهٔ دے ... الخ

ځنې ځنې ته انار لکه د پیاز شي
بعضې بعضې ته شي پیاز لکه انار
ځنې خلقو ته جوار لکه ګوهر دے
ځنې خلق ګڼړي ګوهر لکه جوار
د ظلماته شي بهر دنیا ته راشي
د دنیا نه په ظلمات شي ګرفتار
شرابي د میخانے نه را بهر کړي
زاهد بوځي میخانے له شي میخوار
ګردن کش په شریعت ګردن نهاد کړي
د صوفي زاهد پغاړه کړي زنار
**شاد محمد** ه سوال دعفوی کړه د رب
چه دِ عفوه کړي په روځ د خپل روښدار

---

که ګوډے ذکړي سوده لکه شتر
هم هغه دے زمانے کي یاد په نر
چالاکي تندي چشتي ورته حاصل شي
نشته شک په چوکه تیز شي لټ د سنګر
نور د بد ے ورځے هسے رنګ له سخت وي
پرغفي شي د مسره ځي تش په پر

---

ے تیارهٔ . تیرے

چه بل اووینی د لاسو پښتو تر ے
تیروی ورته په بات همیش خنجر
په تدبیرے هیڅ د قتل نه جوړیږی
هر زمان ئے لیوال داره وی د سر
ډک د بغضه تندے غُصه خُان ته خوښ وي
لکه اس چه زغلوے په لوټے ډبر
د غریب عاجز په حق کښے هسے شیروی
خولے کیږی ورته د نړ کښے برابر
د عارف برابرځی په مخکښے سم وی
کوزو پیاسی خبره نهٔ کړی لروبر
لږ چه کم کنړی د خُانه په رتبه کښے
لله خس وی ورته لاندے په نظر
تش په توره د غلے په توپه مست وی
ښکاری خُان ورته د کل جهان افسر
مغروری به وے نهٔ کړی چه تل جنګ کړی
د نیزو ګنداره حیه اخلی په سپر
خُان لښے کړی د ټیټ اوبریت به تاؤ کړی
خپل پردی ته ملایسته کړی په ضرر
جعل چل فریب ټګی به کړی خپل کسب
دُور تربور ورته یکسان شی اَن پَدَر

په عالم کښې به هوشیار عاقل مشهور شي
که په منځ کښې وي په عقل بانډے خر
شاد محمده د زړهٔ جوش دِ دلته بس کړه
گنج د زړهٔ دِ بند د لبو کړه په در

# د طامع په حقله

د طامع سړي نه سپے کنړم بهتر
سپے د یو وي طامع گرځي در په در
چه طامع سړے حاضر شي په مجلس کښے
هر سړي سره هوس شي برابر
هر یو وائي چه به څهٔ له مانه غواړي
تمامي سره د ځان وي په خطر
غلي غلي یو تر بله سره گوري
لل زبان شي تمامي مجلس اکثر
تول به گوري بدبنړو دلانډے دهٔ ته
لکه هر زخمي چه گوري خپل پرهر
بېټ په زړهٔ کښے ورته هر یو د پر تخل کړي
یو سړے ورته سم نهٔ کوي نظر
طمعدار لکه ښکاري چه نظر اوکړي
په ښکار گاه د خپل میدان کښے لروبر

آخر صید په ځېل ګمان سره صحي کړي
ګذار اوکړي پرے د طمعے سم خنجر
عاقبت به طمع ځپله کړي ظاهر
بر نا حقه ځان ته جوړ کاندي ضرر
هر یو کس ئے په رټل غوږ ونه تاؤ کړي
د فائدے په طمع او موي لوئے شر
بے د خدایه طمع هسے رنګ مثال دے
لکه غواړي د محرّم په ورځ اختر
**شاد محمد** ئے دربه طمع مۀ کړه
چه دیده نادیده نۀ شے لکه خر

---

زمانه مے په هیڅ رنګ نۀ کوي غوږ
چه پېشو شوه زما مرګ ته لکه یوړ[1]
څۀ که که تن ظاهري دے لیده سے شي
باطن ذرۀ مے دیار خوا کښے وهي دور
(په[2] امید) د وصل رحم مے ذرۀ شین شو
کوز مے نۀ شو بار د غم د ذرۀ د جور
(د[3] مار) مرګ کښے صواب دے ګناه نشته
چه مار اوژني خلق نۀ وژني سنور[4]

---

[1] زمرے۔ پړانګ۔ یور د زمري هغه قسم دے چه د سوات بنیر او مهابنړ په
څنګلونو به عام وو [2] (په امید) د وصل۔۔ الخ [3] (د مار) مرګ۔۔۔ الخ [4] پیشو۔ ګربه

سفیدی د زرۀ پکار ده چه زرۀ سپین وی
چه زرۀ توروی څهٔ که زرۀ لری بلور
د مکار تکبر په عجز غلط مهٔ شه
میږی مره په عاجزئ شی د کشوَرْ[۱]
که په عشق کښے معشوقه سر د یار غواړی
شاد محمد به ورکړی سرو له باالفور[۲]

---

چه دانا شی د نادان دلاسه ښکار
حیف پکار نهٔ دے پکار د کردګار
چه قارغه دانا هوشیار عاقل باله شی
هم په دام شی د طفلانو ګرفتار
شوق د ګیدړ ے وله عقل هوش کړی لرے
که عاقل وی هم کم عقل شی بسیار
جانوران بغیر د عشق د خوراک
په نور څهٔ یو پوټی نهٔ دی خبردار
پرنده چار پایان واړه جانوران دی
عشق د ګیدړ ے کړی حاق فرمانبردار
چه جذبه د عشق عاشق له کشش ورکړی
عقل هوش فکر تے ټول کړی په رفتار

---

۱ مورچه خورد - میږی خور ۲ فوراً - زر تر زره - دستی -

د ورو په لاس چه بند قارغه هوشیار شی
ناکردے چارے پرے کاندی صد هزار

دکم عقل ددوستئ نه امان غوارم
سم مثال دے دکم عقل لکه مار

چه یارو پرِص څو مینه محبت کړی
آخر مار وله تمام کړی د ژوندکار

برخے وارہ ازلی دی په زور ندی
مگر خلاص به وو دغمٔ دنیا دار

معشوقه بویه صادقه هم عاقله
دبے عقلو یاری اوکړه انکار

هر بے عقل د وفا نه خبر نهٔ دے
وفائی د عاقلانو ده روڼ کار

چه بندی شی زړهٔ په لاس دبے عقلانو
خزان لوټ کړی په ساعت کښے شین بهار

بے عقلی څهٔ د خزانه کمه نهٔ ده
شاد محمده نه ترے اوسه توبه گار

---

چه څوک وائی چه ے اوموندے یار
یار عنقا شهٔ هم په مثل پنبه دمار

په خوله هر سرے به وائی زهٔ دِ دوست یم
هغه دوب شی چه پرے اوکړی اعتبار

څو د عقل په محک ئے کره نهٔ کړے
کوټ بنګاړ په سیموزړ نهٔ کړے په شمار

په سبب د صدق ځیل د بل دلاسه
په تندی به مغشوط او موے ګندار

صادقان آشنایان نشته په دنیا کښے
یقین مه کړه که د دور وی که یا پلار

هر سړے په ژبه خوږ په زړهٔ کښے کوږ دے
په ظاهر بنکاری او بهٔ په باطن نار

په جُثه په رنګ رنګین ئے غلط مهٔ شه
که ظاهر بنکاری ګوهر پکښے جوار

په مابین دخولے او زړهٔ کښے دیره لار ده
په زړهٔ بل په خولے به بل کوی ګفتار

چه په صدق باندے یو په زړهٔ او خولے شی
په اسلام کښے شرط دے صدق هم اقرار

د وفا نام و نشان دد‌ُنیا ورک شو
د جفا شو په دُنیا ګرم بازار

یک دلی توره وفا سره بدل شو
په جفا په نامردئ په دور تګ کار

شاد محمد ره یکرنګ اُوسه دو رنګ نهٔ شے
چه غل نشے دخاوند او د روئ دار[۲]

---

نوکسوټی - زرګانړے [۲] د رسول پاک صلی اللہ علیہ وسلم ته اشاره ده -

څه پرسان کړے دخوبان ددستور
ګویا نه لرے ذره قدرے شعور
کله رحم کله مهر په عاشق کړی
کله عجز کله کله کړي غرور
کله هسے عاشق راولی په غم کښے
چه خپل ځان کاندی په خپلو وینو سور
کله کله ئے خوشحال په وصالت کړی
چه به نۀ وی شاه جهان په تخت سرور
کله خلقو سره یئے کوی خبرے
کله ناست وی دهمه عالمو دُور
کله روغ دوصالت په صحت وی
کله وی دبیلتانۀ په رنځ رنځور
کله پاک ګنړی خپل ځان دمړه جرمه
کله بے جرمه ګنړی د ځان قصور
کله ناست د وصالت په نم تازه وی
کله سوزی د هجران په تود تنور
کله ژاړی کله خاندی په ساعت کښے
په زحمت پسے راحت موی ضرور
کله وژنی ځان ددیږلوبے تندے
کله خوری اومه غله لکه انګور

کله دیر دعاشق زړه په خوشنودئ کړي
کله زړهٔ ئے په غمونو کړي ناسُور
دبښتيني عاشقان دلاوران دي
چې ته اوګوره بهرام چرته سيفورؒ
دهغهٔ به خوشحالي وي په دنيا کښے
چه په دړ کښے دخوبانو شي منظور
دبے صبرو عاشقانو خاک په سروي
شاد محمدهٔ رب دِ مهٔ کړه نا صبور

# دُعائيه

(الٰهیؔ) په ما عطا فضل وكرم كړه
اوچ وجود مے درحمت په غوړو نم کړه
الٰهی دګناه پیتے زما دړوند دے
په بخشش باندے همه پیتے مے کم کړه
الٰهی نفس وشیطان مے دشمنان دے
په مدد دفضل وُرک مے ددوئ غم کړه
الٰهی زما وجود خاوړے ایرے دے
په نظر مے تهٔ الماس لعلونیلم کړه

---

ؔ دبهرام اودګل اندامے قصے ته اشاره ده -
ؔ (الٰهی) په ما عطا ... الخ

الهي تن مے په تيغ د ګناه غوڅ شو
د رحمت مے په پرهرونو رے مرهم کړه
الهي باغ مے امان کړه له خزانه
هم ترلرے بد نظر د کل عالم کړه
الهي هره بلا هم کړه ترِ لرے
لره تل ته نوبهار زړهٔ مے خرم کړه
الهي زړهٔ د حرص بنامار خوړے
ته مے تن د قناعت په صبر دم کړه
الهي خپل صفت مے کړه ګويان
نور خيالونه مے د زړهٔ خپنے برهم کړه
الهي نفس وشيطان يم قتل کړے
د طاعت رابانه مے شفاسم اعظم کړه
الهي وجود زما د زهرو ډک شو
را نه لرے نفس شيطان مار ولړم کړه
الهي زما ايمان کړه په خپل امن
هُم مے دوی له ګورستان تيارهٔ تورتم کړه
الهي کړه مے تازه د اميد ګل ته
د سختئ په وقت کښے وار زما هم سم کړه

---

ل چُغ . ك دخدائے پاک لوے نوم . دائی چه دا نوم چا له ورحئ نوهغه هر مراد مونده شی . (؟)

الٰهی د **شاد محمد** مقصود پوره کړه
هم شافع محمد نبیؐ اکرم کړه

---

چه د تاؤ په سپین رخسار د زلفو ول کړ
زما زړهٔ دِ لکه مرغ نسیم بسمل[1] کړ
ریاره تهٔ خوړ خوب کوی د تخت د پاسه
درد و غم هجر لما سره دِ مل کړ
ټول وجود زما تکتوړ لکه د سکوړ شه
چه دِ اوس د عاشقی راباندے یل کړ
اوس مے کیږده په پرهر باندے مرهم تهٔ
چه دِ زړهٔ زما سوړے د عشق په شل کړ
خوشحالی زما بدله په اندوه شوه
چه دے غم د زړهٔ زما په سر نهل[3] کړه
ماچه اولیدهٔ اغیار دا ستا له څنګه
بے اجله دِ دستی زما اجل کړه
که منت زاری مے ډیره درته اوکړه
خو آخر مے دِ بدن په جوندہ دل کړه

---

[1] شاعر دِ بِسمِلؔ لفظ دِ بِسمَل په طور استعمال کړے دے۔

[2] ریاره تهٔ خوړ خوب .... الخ [3] د نهال مخفف دے۔ بوټے (نګول)۔ چوکه کیښول، بنخ او درول۔

خوب خندا خوراک مے لرے شولہ ځانہ
عشقَ تا مے صورت اوچ تلکہ د تل کړه
پہ ژوندو بہ **شاد محمد** هالہ حساب شی
کہ پہ خوبے ځے ورنہ لب تلکہ عسل کړه

---

بے عملہ علم مهٔ لہ خدایہ غوارهٔ
لا پہ وینو اوښکو ډیر پرے بانده ژارهٔ
نابینا چہ ځی پہ لارے آخر ړوند دے
دغہ حیف دے چہ بینا دړوی پہ شارهٔ
علم کړ عمل اوبهٔ نیکی دانہ دہ
بے اوبو بہ ځهٔ دانہ غوړی لہ سارهٔ
پہ خوارئ زارئ عمل دسرې اوشی
پہ خوارئ سرہ سرهٔ زر اوځی لہ کارهٔ[ك]
هر یو کار دے دعمل دعلم نهٔ دے
دے شیطان تہ بہ لعنت نهٔ وو پہ غارهٔ
عرسرے چہ دعمل پہ علم پوُر وی
مُرضی لہ دهٔ اکسیر دعغہ لارهٔ
هر قاری چہ بے عملہ قرآن لولی
دے پیښے کوی دبلا پہ ژبہ لوارهٔ

---

[ك] هغہ شګے یا باجری اوکانړی کښے چہ دسیند بہ لوخی کښے پراته وی.

بد عمل د ېر هندوان فقیر ته ناست وی
لری طمعه د دُعا له دے کړاړ
(مرسړے) چه عمل جنت غواړی
لکه نیسی چه ښوک باز په چتی خراړ
په بل رحم قناعت صبر عمل کړه
لکه سپے ھسے په کور خلق مهٔ داړ
شاد محمد ه آخر تلهٔ دی له دنیا نه
د مرچا خونه به شی په مرګ لتاړ

---

راشه څان کړه دنیکئ په غورو غور
بے فائدے او بے کاره مهٔ شه لکه بُر
آدم زادے د آدم خویونه زده کړه
دچارپایو پشان مهٔ غواړه لور
د پیښو پشان دشمن شه د بد کاره و
لکه موش ھسے وهی د فصل جر
د میږی یوه دانه شپږ میاشتے بس ده
مګر کاندی شپو روز پسے مسلاتر
که حرص باعث په مرګ دخلقو نهٔ وے
مچ به ولے څان واژهٔ په غورو زیر

---

۱ هندو  ۲ مرسړے چه بے عمله جنت غواړی .

او غل[1] چه ژوندے په ځان په مړو حساب کا
بس له هغے ورته یوشی کوړ او کړه

چه تپوس په چوکوړ وته ظلم وُه کا
هغه واخلی بل تپوس تریا لـسکړ[2]

چه دګټے په نظر د تاوان نهٔ وی
پړی دیر دی تاوان کړی په خپل پړه

چه په کانړو ګذار اوخوری یو تربـله
بس له هغے شی په شوړ اوبهٔ د چـړه

هر چه بل نهٔ کا غرض په یو بل باندے
لامبوزن به دوبیدهٔ وے په خوړه

الاچی چه پیے شاشی یو تر بـله
د محلوّ[3] چوغورزول کړی په یولړه

(نافرمان[4]) له ربَ ګران ځانے لره راشی
جغ په سپ کله منی غوئی اړه

نوم داس کیږی که جنګ وی که بے جنګه
بے نامے دے که هاتی لری لوئے دړه

ځناوړ که نور آزاد په میړه ګرځی
دمړ چا وی دشمن دار کیـدی لومبړه

---

[1] ملک۔ محبوب [2] یوښکاری مارغه دے [3] د مالوچ۔ عام طور سره مالوچ پیکلے کیږی [4] (نافرمان) له ربَ .... الخ (؟)

شاد محمد ترهنده تر اهو مهٔ شه
د طاعت په غاره واچوه کسبه

---

د نیکئ جلاب پرِ نوش کړه شاد محمد
چه دِ اوځي د ګناه له ګیده مے اره

چه دِ زلفے الوول په مخ خورے کړ
هغه درنګ مے دکباب دزړهٔ قطرے کړ
زهٔ چه کړم ژړا فریاد دزړهٔ له درده
تهٔ په ما پورے لا تمنوے مسخرے کړ
تا چه جوړه دول سنګار دبناپیر و کړ
لاس و پښے مے دِ دزړهٔ په وینو سرے کړ
دغماز په ملسه سهٔ کیږه صنمه
زما مرګ ته غماز نن تورے تیرے کړ
ستا له دره به وانوړم په آسانه
که مے سر له تنه غوڅ په کمارئ کړ
تهٔ چه نهٔ اخلے خبر زما دلبره
بیلتانهٔ په ما ابنار خاورے ایرے کړ
ستا زلفان مے دی نیولی په منګلو
پرے به نږدم که وجود مے پے ارے کړ

شاد محمد به په ژوند وهاله حساب شی
که ئے پېژ دوسالت په سلارئے کړه

---

چه ے سیل ته یار په لور دبوستان لاړ
نیک نصیب دګل ګلونو په ځان لاړ
تنګے خولے په تبسم دغنچو وا شوے
عقلوهوش ترے په بید لو امان لاړ
دم ختلی استاده په انتظار دی
پچے خولے لکه دبت ترے زبان لاړ
هرچه ایښے پرے قدم زما دلبر دے
دهغے باغ وبهار ه خزان لاړ
زه به څوکوم صفت دیار دزلفو
رنګ بوئ ورته دمښکو دریحان لاړ
که چا ستا لبان په سترګو وی لید لی
دهغو په مخکښے آب د در مرجان لاړ
پرے به نهٔ شمه خفه ډیر به خوشحال شم
که ے سرومال په عشق دجانان لاړ
حفه دم شوم شین لوګے راپورے اورشو
چه دِ پیے رقیب له خوانه شادمان لاړ

---

له زنانه پروڼے ۔برقعه ۲ خوشحاله چه په یوسفزو کښے ورته چیل هم وائی ۔

یا مے مړ کړه یا رقیب له ځان جُدا کړه
یا مے ځائے کړه یا مے روح په ارمانه لاړه

د بیلتون رابانده ترس رحم اونهٔ شو
که مړ شوے په مخ اوښکے باران لاړه

طبیبان مے د وصال د خوانه تبنتی
د بیلتون تیغ مے په زړهٔ دایران لاړه

سونګون زانګم د فکر په تهالونو
تن مے ستا د عشق په بحر پنهان لاړه

که زهٔ دیر دا د ونه ځپل زړهٔ لره ورکړم
دا د به نشی د شادئ تر نشان لاړه

که مے سر ستا په وصلت سره جدا شی
زهٔ به وایم چه ګران نهٔ دے ارزان ځان لاړه

دیر عالم به په دا افسوس شوک به خوشحال شی
که په کړه شاد محمد له مردان لاړه

---

که مے سر و مال په عشق د نګار لاړه
زهٔ به وایم چه د مړے په مزار لاړه

ستا د عشق په درد و غم مے زړهٔ قلم شو
هم د اوښکو رود مے سم په رخسار لاړه

چه دیدن دِ مُیَسّر نهٔ شو دلبره
د بیلتون تیغ مے په زړهٔ کښے دوبار لاړه

ستا بیلتون مے د صورت سره پیوست شو
وصالت ترینه بے جنګه په لاس لاړ
څکه لاس ے په وصل کړ د سر پور ے
چه له تنه زما صبر و قرار لاړ
د وصال په طمع شین مے د زړهٔ باغ وه
د بیلتون خزان مے لوټ له جرارۡ[1] لاړ
هسے رنګ ے کړ تالا والا د کُلو
چه امان ترے طراوت او بهار لاړ
هغه دم شو خریدار دیار د زلفو
چه مے دل د حسن ستا په بازار لاړ
زړهٔ مے ستا د حُسن شمعے ته هوس کړ
د پتنګ پشان د مرګ په اختیار لاړ
زهٔ دِ هسے په غم دوب یم سرتر پایه
چه مدام شو په ما لیل و نهار لاړ
په همه عاشقو ویر د ے ځان ترځانه
چه بیلتون د عاشقانو په ښکار لاړ
ستا له وصله زما زړهٔ بیلتون شړ ے
د بورا پشان په شور له ګلزار لاړ

[1] لوئے لښکر ۲ لوند والے۔ نمی۔ جنګی۔ تورزن

دبیلتون په خنجر غوځ مې د زړه سر دے
د وصال طبیب زما د دل افګار لاړ
چه د پرق په مخ د زلفو دے راکړے
یو په شل زر په ماتے تر مار لاړ
خپل خپلوان به مې یو ځلے ژړا اوکړی
که چا اوو ے شاد محمد له دے دار لاړ
شفاعت محمد شاد محمد غواړی
د غم تر منه په روئی د روښید ار لاړ

---

وے مخ د دنیا دنیا د پاره تور کړه
په هر ځائے د ځان د خلقو د پیغور کړه
غل آباد نه کړ خپل کور په تمام عمر
که د دیر و خلقو ورانے پسے کور کړه
نه په خپل نه په پردی بانډے حصاروی
هسے ځان ئے بے حیا او حرام خور کړه
د حیا باعث ایمان مکان ئے ستر کے
بے پروا شوے له ایمان ځان د شبکور کړه
زورور ته یخ[1] د اوس او د کنګل سے
عاجزانو ته د ځان د لانړی[2] اور کړه

---

[1] اصل هم دا سے دے [2] یو قسم نبات۔
بناځ چه یخ د واورے د کنګل وی

په ایره د بې شرمئ د حیا مانځ کړه
د وجود لوښې د ښه د غوړو سپور کړه

په بد د دوئيل رټل به خوشحالیږې
مسې رنګ بې شرمئ د رباندې زور کړه

لکه توره په قبضه د بل کښې کار کړي
اول غوځ د له نورچانه اور ورکړه

خاوند نهٔ پیژنی ښځهٔ توره اسپه [1][2][3]
اس د هغه دې چه څوک د پرسور کړ

زود آور ته د سر وی ښکته کړے
د عاجزو وے رېبے ځان د لور کړه

د فریب د شیطانئ د ثانی نهٔ وه
لا همه د دشیطان هغه هم پور کړه

د ابلیس مکر فریب پورے خدا کړے
ځان د شمار ترینه سوا په یو څلور کړ

بے پیسے نه د نهٔ خدائے نهٔ یاد رسول دے
نهٔ د ځان د دین پکار کښے څه نمخور کړه

د نیکئ بوټے د اوویستو د بېخه
د بدئ فصل د ښه د ذرهٔ سمسور کړے

---

[1] دامصرع په اصل کښے همدا سے یک ده. بنائی چه "اول غوځ د له نورچانه" پلار او رور کړ" وی.

یو سړے نهٔ دے چه تا ځنے خفه دے
بلکه ټول عالم له ځانه دِ په شور کړ
شاد محمد ه دب رسول دِ شه په مرسته
په ژوندون اوکه په مرګ دِ سر سر تور کړ

---

عقل هوش فکر زما نه صنم یوړ
په خنجر د عشق زړهٔ مے قلم یوړ
په لیدو دِ شومه بُت ژبه مے بنده
سر تر پایه عشق ستا رانه دم یوړ
هسے رنګ په تا عاشق او بنے مے درومی
چه هر چا مے تبرک لره نم یوړ
ټول عالم زما په آه باندے افسوس کړی
چراغ ځکه نار په ژبے دغم یوړ
په ظلمات لکه چشمهٔ آب حیات یم
لکه خضر ته دیدن د تور تم یوړ
چه له ورایه راښکاره شے په خند لو
له مهجوره دِ هجران درد و غم یوړ
چه پرے ستا د کوځے باد دنے الوتے
زیب زینت ئے امانی دارِم یوړ

---

ئے خولهٔ ـ خلهٔ

که بیلتون جور ستم دِ په ما بار کړي
ستا وصال رانه تول جور ستم یوړ
چه په تیغ د عاشقئ دِ زړهٔ مجروح کړم
د وصال دِ وے مانه مرهم یوړ
سرهٔ گلونه به تِرپت کړي مخ په پانړو
که په لوري د بوستان دِ قدم یوړ
صنوبر سرو شمشاد دِ انتظار کړي
هم دِ قد ته فکر واړه عالم یوړ
چنبېري سترگے نرگس ستا دیدن ته گوري
لاله داغ د زړهٔ په سر د ستم یوړ
گونه زرده پروت له درده یم بیخوده
دېر به بنهٔ وي که دِ مانه الم یوړ
دیعقوب سترگے رڼا شوے تر اوله
چه قاصد ورله خبر خوش خورم یوړ
شاد محمد ه که حرص د دیدن دېر کړي
کم سړي له چل نصیب زیا تو کم یوړ

---

د به تهٔ په ما غریب فضل بنیار کړَ
دگناه له دریا بونو ے کنار کړَ

---

۱ حضرت یعقوبؑ ته د حضرت یوسفؑ د ژوند زیري ته اشاره ده۔

نفس شیطان له لاسو پښنو یَمَه تړے
ته مے خلاص ترنه په روئ دخپل رونبدار کړُ
بدعمل ته مے اوده لره په خوب کښے
نیک عمل ته مے تن ویښ په زړه بیدار کړ
نیک عمل ته مے تن صاف لکه آئین کړه
دکجلو نه زړهٔ تور مے له بدکار کړَ
هغه لاره چه همه خوف خطر ده
تهٔ په ما بندے آسانه هغه لارکړُ
شفاعت د محمد زما روزی کړے
هم نصیب مے تهٔ داخپل ښکلی دیدار کړَ
قناعت مے چار ځامه کړه طاعت توره
خپل ثنا صفت مے هر وقت گفتار کړَ
د زړهٔ باغ مے خزان اوچ دنفس شیطان کړهٔ
په خپل وصف ئے تازه لکه بهار کړ
حرص طمعه مے بدله کړے په صبر
د بدانو مے دشمن دنیکو یار کړَ
اخلاص صدق مے مرکوے کړے له ځانه
له بے صدقو گمراهانو مے ویزار کړَ
په بد رد ویل دتل مے کړه بند ژبه
په تصدیق د زړهٔ مے ښه په ښو اقرار کړَ

دارزن یا هغه کېږه چه داس د پاسه اچولے شی. پالان

امر نهی ے قبول په سترګو سر دی
پنځ بنا ے په زړهٔ یک شیطان ے خوار کړی
یک تنها چه کمه ورځ په سفر ځمه
د شیطان د دمړنۍ[۱] ے امان دار کړ
کرم فضل ے رهبر کړه هم ایمان ته
سیاه قبر ے رڼا او هم ګلزار کړ
شاد محمد په روئ د دوست کړه پخپل امن
هم دماړ او دلږم دیخ او نار کړ

---

(پلار له[۲] زویه) زور د دوړه شو زړهٔ موړ
کور دیمچا پاتے نهٔ شو سره جوړ
پلار د زوئ مرګ ته ګرځی زوئ پلار ته
نو سے ګرځی په مرګ خوښ د نیکهٔ زوړ
هسے رنګ شوه زمانه دائے د وزګار دے
چه دلاس دیتیم کاندی ملا تروړ
نهٔ ے خوف خطر دخدائے نه درسول شی
نهٔ ے زړونه دبدئ نه شول په خوړ[۳]

---

۲ شوکه، نوټل شه ا پلار له زویه) زور له زوره .... الخ -
۳ خوړ د تے آواز ته وائ دلته مراد ترے نفرت او کرکه کول

بدی لړه چه کنړی ټوقه مزاق
جواری هلکان زده کړی په اکوړ

په باطن خلق ترابښهٔ زړ سپلمئ شو
په ظاهر رنګینه ښکاری لکه خروړ[1]

له میلمه نه به په ټنګ په ډډه کرځی
ورته ښکاری مرضی لکه په کوړ[2]

پسے شا لکه چیته مسے دیکے کړی
په مخ نهٔ منی ټونګه لکه بګوړ[3]

دکمزوری په حق تود لکه تنور سے
زور ورته ډیر له واوره یخ ئے سوړ

داسے وقت شو دشمن پرین دی په دوستکی
که په یو تالی طعام خوری یا ئے خوړ

ځان ځانی شوه شاد محمده آخرت شو
اخلاص صدق ئے دټولو د زړهٔ یوړ

شاد محمده یاران نشته صاف ټکان دی
که ئے اوکړه قسمونه درسته کروړ

---

عقل هوش دعاشقانو نه مهٔ غواړه
ځان ترځانه سره ډوب دی په غم واړه

---

[1] یو قسم ځنګلی بوټے چه سور ګل کوی ۔ [2] برګے ۔ برص ۔ یو مرض ۔ جزام ته هم وئیلے شی ۔ [3] بکیاړ

نو مطلب ئې له وصله د يار نهٔ وي
د دنيا په کار و بار کښې شوکي لاړ

مسے زهٔ هم ستا د عشق په تاؤ ستی شوم
له بڼو ئې چه تاؤ اووينی له هاړ[۱]

(په يارئ) د بے وفاؤ وفا غواړی[۲]
لکه او باسی الماس کوص له کاڼ[۳]

(هر عالم چه) بے عمله علم اوکړی[۴]
لکه خوښ وی له ابادی په ويجاړ

چه صادق وی هر عاشق په عاشقئ کښے
اميد صبر ئې د وصل وی په غاړ

عشق مزرے عاشق په طور د ګڼ وری
خطرناک وی د بيلتون غوندے بګياړ[۵]

منافق عاشق چه طمع کړی د وصل
لکه غواړی څوک دانه د فصل ساړ[۶]

ستا د وصل په چمن باندے خوشحال وم
بيلتانهٔ ترينه اوس اوويستم په ښاړ

---

۱ اصل کښے له دے خوبناق چه "لکه" وی ۲ (په ياری) د بے وفا... الخ
۳ کان - درنګ ۴ (هر عالم چه) بے عمله ... الخ
۵ شرخ ۶ سوزيدے

دبیلتون مواد مے جمع شو لرمون کښے
بنهٔ به صاف شی ستا دسر ولبو د ځانړ
**شاد محمد** به لا دحده دیر خوشحال شی
که شی خلاص دبیلتا نه دبیره بانړ

---

خدایه نن مے دے اودهٔ نصیب بیدار کړی
چه دِ مخ دخپل دلبر راته اظهار کړی
مسے وایم چه دا خیال زما دخوب دے
که په ویښه دِ جوړه راسره یار کړی
په دے خپل نصیب مے مسے یقین نهٔ وو
لکه مړ دِ بل زما دتنه نار کړی
ما وے زهٔ به لیونے په وړانو کړم رحم
مګر تارانه چاپیر د زلفو تار کړی
دا کرم به دِ په عمر پورهٔ نهٔ کړم
که مے روح درنه په تلل ځله نثار کړی
دوصال په صفائے مے دِ زړهٔ صاف کړی
دبیلتون دِ ترینه ورک ګرد و غبار کړی
دوصال په دم دړود پارو دصبر
دبیلتون لے رانه ورک اژدها مار کړی

---

۱ (هندی ده) ګنړه ګونړه -

طراوت مے وه بیلتون د زړهٔ اوچ کړے
اوس په وصل دِ تازه لکه بهار کړ
دا ساعت مے دلسوزی په بیلتون اوشوه
چه وصال په لتولو نړو بنهٔ سنگسار کړ
مدعا د **شاه محمد** به هاله اوشی
که دِ خوځ د نخاسیانو په بازار کړ

---

دیار غم مے تن قریب په ځنکدن کړ
لوټ هجران خزان مے ګل د زړهٔ چمن کړ
په افسوس په تأسّف مے اوښکے شیلې
چه اغیار مردار دِ پټ پخپل لمن کړ
د رقیب شوے پخلا ماته غصه کړے
خله اوس دِ دوزخ په ما وطن کړ
چه غمان رقیب اغیار دِ دځان دوست کړ
ما دځان سره ځکه پیچ کفن کړ
د رقیب سره چه ته خندا هوس کړے
لکه خرهٔ ته حواله دِ ټول ګلشن کړے
وے زهٔ به جګر خون د غمه نهٔ خورم
د اغیار ه چه د زړهٔ د فریب فن کړ

---

ئه بازار - هغه بازار چه پکښے د غلامانو تجارت کیږی .

دچلے مکر په دام دِ زړهٔ بنـدی کړم
بیا دِ غوښ دغم په تیغ مے دِ روغ تن کړی
ناکردے چارے دِ واړه په ما اوکړے
چه په لاړے داغیاړ موزی زفتن کړی
چه دِ کوڼ په تبسم دخیال وښکے شی
په هر باغ کښے دِ خجل سیمین سمن کړی
تور زلفان چه دِ په مخ خوارهٔ وارهٔ کړهٔ
شرمنده دِ ملک بلغار تاتار ختن کړی
د زړهٔ زخم به څولن د شاد محمد کړی
ورسره که پوخ د صدق دِ گفتن کړی

---

# مرثیه

---

چه دِ مخ په پلو پټ دګور اجل کړ
اوړ د غم دِ په همه خپلوانو بل کړ
اوس دِ رب فضل په تا دبخشش اوکړی
رب دِ مل شه چه دِ ځان د موړ مل کړ
چه دِ پورته سانګ د دے دار الفنا کړ
په طرف دِ د عقبیٰ په لاړ منزل[1] کړ

---

[1] شاعر د منزل په ځائے (منزل) استعمال کړے دے۔ په پښتو کښے "منزل" وئیلے کیږی
چه معنیٰ ئے سفر کول دی۔

(په ځان) زهٔ یم مرضی مرګ ته قریب یم
روغ وجود دِ اجل ستا له ما اول کړ
په تقدیر کښې دِ څهٔ وو هغه درپیښې شو
صاف وجود دِ دارزالو پلاړ غل کړ
شفاعت دِ د رسول الله نصیب کړه
چه دِ ګل د بښې ځوانئ خاوړې ازل کړ
چار یاران اصحاب ګل بزرګان دِ مل شه
خدائے چه ستا په بیابان باندې بورجل کړ
دم په دم په هر قدم درته دُعا کړم
څوے ژوند دے غم په زړه دے دِ نهل کړ
یو ساعت چه دے د زړهٔ نه زنهٔ هیرین ے
شاد محمد دافسوس ځکه جوړ غزل کړ

---

فریب جعل تګی ګل خلقو روزګار کړ
ځکه ماله دے عالمو ځان کنار کړ
بے دړوغو رشتیا نهٔ وی په کښې تهکی
که قسم طلاق ئے درے درته په شمار کړ
په دوستئ که دقلبئ یو دے چا ګمان کړ
یقین اوکړه هغه کس چه خپل ځان خوار کړ

---

۱ (په ځان) یا (زویه) یا (دوره)؟

۲ نهال کړ - بو ته او نکوو. ۳ رنهٔ) هیرین ے - الخ

تہیل ناتیل دی وغ تہگی سرہ پیشہ شوہ
ھر سری ځان دخپل صدقہ دسیس دار کړ
نہ چا اوکړۀ فریب جعل پہ دل صافو
ھم ھغہ عالمو یاد پہ دیر ھوشیار کړ
صدق یاد کړی پہ عقل تہک عاقل کړ
گمراھان دگمراھئ نہ چا پہ لار کړ
روغ رنځور خفہ خوشحال بنۀ بد اللہ کړی
سبب گیر دھر ھر خیز سبب اظھار کړ
پہ بنو خوبی پہ بد ناراضہ پاک رسول دے
مگر دہ لہ ئے دبندہ پہ اختیار کړ
څہ طاقت دے دشیطان چہ څۀ بد اوکړی
چرتہ خاص نفس شیطان دینو ویزار کړ
ملایان شو پرے غازیان منصور شھید شو
پہ گناہ دبے گناہ چہ ئے پہ دار کړ
شاد محمد ہ خان دصدقہ بدل نۀ کړے
کہ چا سر لہ تا نہ غوخ پہ تیز ھتیار کړ

---

پہ ھیبت قلم لہ خوبہ مے بیدار کړ
بیدار څۀ چہ جنگ تہ ځان تہ مے طیار کړ
اولہ صافہ آئینہ کړہ د بد گردہ
عکس صاف پہ کړے بنکارہ کہ د رخسار کړ
نہ وسلہ

تہ صاف نۀ ئے بل نہ څلہ صافی غواړے
پہ یارئ کښے نۀ شوے یار ځان دِ اغیار کړہ

عشق گران دے آسان نۀ دے یقین اوکړہ
تا عبث خوشے خپل ځان پہ عاشق شمار کړہ

کوټ بنګار تا نہ سرہ زړ ھغہ ساعت شی
چہ پہ گرم وقت اکسیر دِ برے گذار کړہ

د نیکا نو سرہ ښۀ د بد و بد کړہ
ښہ نۀ بد و بد پہ ښو دِ سر بکار کړہ

شیشہ پہ ورځے ورځ پہ عکس پہ شپہ بولے
پیژندل د تورو سپین دِ ھیر ستار کړہ

او دۀ غم دِ گوربیدار د خوب و لے
د مزری یاد پہ خوږ کښے ځان دِ مار کړہ

پہ دنیا اړی خوږک بدی او ښوک نیکی کړی
چا ځان صاف کړ چا پہ غاړہ کښے زنّار کړہ

څوک چہ اورتہ نزدے کیږی اورئے سیزی
چا پښتان د سمندرھسے خوښ نار کړہ

قدرے سوړ شو مہ د قھرہ راشہ وا وړہ
چہ دِ خیال د میوٍ خوشے د چینار کړہ

بے وفا نہ وفا نۀ دہ چا موندلے
بے وفا تہ کہ ان ځان سری پہ دار کړہ

---

ئے یو فرضی ځناور دے چہ پہ اور کښے پیدا کیږی او پہ اور کښے پاتۀ -

نور مے پریده چه اود یُ شم شادمحمدٌ.
چه څهٔ حال ووٌ درته واوره مے اظهار کړے

---

ربدگوٌم به د ہیچ یار نهٔ شی هرگز
په سختی به دِ پکار نهٔ شی هرگز
که هر څوئے چېله وے چیل به دِ نشی
په دوستیٔ به دِ دوست مارنشی هرگز
بے وفا نه چه څوک طمعه د وفا کړی
چینار بید به میوه دارنشی هرگز
چه د پیازو نه کوی د مسرو طمع
دغه پیاز به دِ انار نهٔ شی هرگز
د غفلت په خوب الله چه څوک اوده کړی
هیڅ په پند به دِ بیدار نهٔ شی هرگز
د هر کس نه چه لار ورکه رب کریم کړی
په بنوو دبل په لار نهٔ شی هرگز
د دشمن سره چه ډیره نیکی اوکړے
واوره ستا به منت[2] بار نهٔ شی هرگز
که دِ لخته کره حساب په ځائے د تورے
په مطلب کینے به هتیار نهٔ شی هرگز

---

[1] (بدگوٌم به د هیڅ یار . . . . . الخ
[2] احسانمند

دا خزان به ئے آخر خواب تراب کړی
تل به پاتے دا بهار نهٔ شی هرګز
که د دے دنیا په عمر څوک نازین ی
ګرم تل به دا بازار نهٔ شی هرګز
هر سړے چه په بدئ باندی مشهور شی
په نامه به نیکوکار نهٔ شی هرګز
داجل په تیغ که تن دِ شکسته شو
پیوندی شیشه دوبار نهٔ شی هرګز
چه نیکی دخدایه غواړے **شاد محمد**ه
څوک دلاسه د اِزار نهٔ شی هرګز

---

سپین رخسار دلکه ګل هسے بشیران
خال د زنے دِ کوتره زړهٔ مے بان
د زړهٔ حال دکوره اونهٔ وائے چا ته
شو سنګسار چه منصور اووے د زړهٔ راز[1]
عاشقی که پټه وی کله پټیږی
نهٔ پټیږی چه خوړلے وی چا پیاز

---

[1] مراد ترے د منصور وژلے کیدل دی ۔ صفحه
سنګسار شوے نهٔ وو ۔ په دار شوے وو ۔

عاشقی خاوند غلام غلام خاوند کا
صاف مثال دے د محمود او د ایاز[1]
ورپه لاس زلفے لنګر وصال ملاح کا
زما ډوب کړ بیلتانهٔ د زړهٔ جهان
معشوقه عاشق د وصل په طلب وی
د ابیلتون د دوئ ترمیانځ دے غمان
په خبر د وصالت مے خبر واخله
د بیلتون په چارهٔ زړهٔ مے شهٔ تران
عاشق ځان له کناره له درده ژاړی
وصالت[2] وی ترینه ډوړ بیلتون همراز
پتنګ راشی په چراغ پرستی کا
مچ کوندکے په چراغ نهٔ کوی پروان
د وصال فوځونو هیڅ برے اونهٔ کړه
بیلتانهٔ مے برج په سر کی د زړهٔ سان
دواړه ورو وځے دکمان بانړهٔ د غشی
زړهٔ مے وُلی چشم ستادی تیر انداز
د عشق اورے دیګ د زړهٔ په جوش کینے راوست
شاد محمد چه کړه صفت د یار آغاز

---

[1] سلطان محمود غزنوی ۔ واڅی چه دده ښکلی یو غلام ډیر خوښ وو چه ایاز نومیدهٔ [2] وصل ۔ یوځائے کیدل ۔

چه دِ اوويـنم صنم دعشق پـه نار زَ[1]
سمندر هسې کوم پکښې دوزکـار زَ
په بيلتون کښې ناست په تخت بانډې خوښ نهٔ يم
په وصال کښې دِسو راوُړ گلزم گلزار زُ
هغه دم مې هوش له تنه رفتن اوکړي
چه ناصافـه دِپښين اوويـنم رخسار زُ
دبناسُت دِ په عالم کښې ثاني نشته
که تالاش کړمه دکل جهان امصار زُ[2]
تل به ستا ددرد سپيو پا بوسي کړم
که يو ځلې دحساب کړم خـدمتگار زُ
(له خوشئ) به مې تازه دزړهٔ غنچه شي[3]
که دِ سور درسوائ کرمه په دار زُ
(رسوائ) مې ستا دوصل دَه قبـول[4]
چه دِ بند شمه دزلفو پـه زنـّار زُ
سر آزاد لکه هوسئ له تا خوښ نهٔ يم
دِ ير په بنهٔ وي که دِشم دمنگل ښکار زُ

---

[1] دالفظ عموماً "زهٔ" ليکلې کيږي خوشاعر د "ز" د رديف دخاطره صرف "ز" ليکلې ده ماپرې دزورکي نخښه (ُ) اولگوله. [2] ښهروته
[3] (له خوښئ) به مې .... الخ [4] (رسوائ) مې ستا .. الخ

هر عاشق باندے چه مینه وی بار شوے
زۀ کنړم لګه دګل د مینے بار زۀ
که دِ مینه د اغیار وی زړۀ ته شوے
ستا د یاره به نوکر شم د اغیار زۀ
په بل ځائے کښے خان سلطان امیر بۀ نۀ یم
ستا په در کښے ډیر خوشحال یم خوار و زار زۀ
په خوشئ د نفسانئ سره خوښ نۀ یم
ستا په غیرۀ کښے ډیر خوښ یمه بیمار زۀ
که دیار دلاسه پرېوتم په اور کښے
سرۀ ګلونه ګنړم دغه سور انګار زۀ
که ظاهر خلقو ته زۀ بے غمه ښکارم
په دروں لکه لاله په زړۀ داغدار زۀ
زۀ غریب **شاد محمد** ژاړم له بیلتونَ
د وصال دکوم سوال په کرد ګار زۀ

---

زۀ سائل ولاړ یم ستا په دروازَ
راته اوکړه د سرو لبو احسانَ
چه مے ستا د لبو خوند ترحلق تیر شو
انګبین شو راته زهر په مزَ

---

ــه د الفاظ عموماً "ه" سره لیکلے شی - شاعر د ردیف دخاطره "ز" په زور سره لیکلے دہ .

د وصال په اوبو یخو مے زړهٔ یخ کړه
نور په اور د بیلتانه مے مهٔ سیز [1]

که د خولهٔ راته په خوله کړه څهٔ به اوشی
سخاوت لرے ته ډیر بے اندازَ

ستا له حُسن گل گلونه شرمنده شو
په چمن کښے گلاب شو زیړ زیړ [2]

خوشبوئی چه پټه وی ظاهره کیږی
بے لیدو ږ د بنائست شوه آوازَ

لکه شمع مے اوربل په سر د ژبے
چه بیلتون مے په زړهٔ خنبه کړه نیز [3]

په سرود مے کله سُود د زړگی کیږی
زړهٔ مے ستا په بنهٔ مجلس دے ستړازَ

چه څوک ستا له حکمه غیر په لاره روی
په هغو مے ډِوهٔ نشی جنازَ

زهٔ د یار په فرمان صبے رنگ ولاړ یم
لکه اس دِ سور ولاړ خوله په قیز [3]

په یو ترخ کښے مے کچکول په بل کښے گوړے
شبو روز ږ د وصال کړم درویزَ [4]

---

۱ه ۲ه ۳ه ۴ه دا لفظونه د مقطع د قافیے سره سم نهٔ دی ( د عربئ د یوے قاعدے مطابق دا سے لفظونه راوستے شی خو په فارسئ یا پښتو کښے چه نهٔ دی راوستی دا سے ښکاری چه دوه نیمگړے غزلے جُمله گډے وړے شوی دی )

نظر ستا سنگ پارس دے مس پرے زر شی
دا نظر په **شاد محمد** کړه هر روز

---

سر تو پا یه دِ کباب کړم په اور تیز
هم هډوونه دِ زما کړه رېزه مريز
زړهٔ دغم په اور کښې سوے لوغړن يم
تهٔ دګل هسے داغلے په نو خيز
سخت مرض دبیلتانهٔ په ما تیر شوے
اوس مے ماتے کړه دوصال په خوله پرهيز
چه خورلی دی څوک ستا زلفو مارانو
څه هغه به کوی نور نانړو مسکين
لکه زړهٔ په تا عاشق ذرهٔ اوبزان يم
بل به نهٔ وی هسے رنګ دل آويز
هسے بخت به مے بيدار کله دخوب شی
که دِ راکړ جام په لاس زهر آمیز
ستا له لاس مے قبول دے مرګ په سترګو
که شهید شوم ستا دعشق په تیغ خون ریز
لا تازه کړی غلے اور راته له ورایه
چه راپورته کړی چشمان فتنه انګیز

---

لے زړهٔ زورنړ ونکے - چه دهر چا خوښيږی - بنکلے -

**شاد محمد** ستا په تهمت کښے چاے رنګ کړے
څهٔ حاجت لرے پل رنګ تهٔ د رنګریزه

---

چه کاوهٔ نهٔ شي دخپل پردی تميز
څهٔ به او پيژني دوست ويار عزيز
دنيکۍ له ګفته وی قو ثروهلے
په بد شخوند خوزوی بدیره نکه بيز
نهٔ ئے فرق دحلال او دحرام شي
خرته چرته حرام بنکاری پردے خيز
لکه روند چه عصا ورکړی دبل لاس کښے
مراد خيز درته نفس خوبه کړهٔ ترمويز
آخر تلل دی له دنيا نه مرګ په سر دے
هر بنده رداول اوکړی خپل تجويز
بعضے خلق بے پروا له مرګه ګرځی
په مومن کښے پکار نهٔ دے دا تحريز
هغه خلق هم د مرګه نهٔ خلاصيږی
چه فوځونه وړ پيے وی لکه نيز
له دنيا په سفر هغه بشر تللے
چه له مخه ئے دنيا کړه دب تجويز

---

۱ رنګ ورکوونکے۔ دوبی۔ ۲ مجاز خپل نکريا غم ۳ بچاؤ۔
۴ سيلاب ۵ مجازاً۔ پيدا کول۔

نفس شیطان د دشمنان دبیخ کندی دی
په فرمان ئے اوسه مه لکه کنیزؒ
په غریبه ورځ غلط د دشمن مهٔ شه
سرے خوب کړی خس په سترګو کښے ناځیز
امر نهی کړه قبول د ذرهٔ د صدقه
په پند ونو د شیطان او کړه کمین
شاد محمد ه ډوبن خوښ ځپل وطن وے
مړ ته ځهٔ ډهیرئ شاد نې اوځه شونیز

---

حقیق وایم غزل کښے د مجاز
په باطن ظاهره ومه د ذرهٔ راز
دانسته ګمان پښان د نادیده کړی
خو د دیده کړے د منړے ګمان په پیاز
د دراج پښان ئے زړهٔ زمانه یوړو
خدائے هوس کړهٔ په مثال لکه د باز
عاشقیٔ کښے هسے کیږی څهٔ حیف نهٔ دے
حال معلوم دے د محمود او د ایاز[۲]

---

۱ وینځه - ۲ سلطان محمود غزنوی مشهور غازی بادشاه وو
ځپل غلام ایاز ئے ډیر خوښ وو - هم په شکل وصورت هم په
عقل او خویٔ -

معشوقه په کار د عشق چه نهٔ پوهېږي
لکه خرهٔ ته غږ وي سازنده ساز

د عاشق ناله فریاد پرې تاثیر نهٔ کړي
لکه کوڼ چه د چا ناوري دو آواز

په عاشق به خوشحالي د انځر ګل وي
معشوقه چه ځي په خولې د سپي غماز

چه د عقله معشوقه دي مسرور
تل عاشق ئې وي د زړهٔ په سر تراز

ناز بردار د شوه د تور وخاوره لاندے
شاد محمد ه نو د په چا او نهٔ کړے ناز

---

راشه او باسه د بدو چارو لاس
نور په طبع باندے مهٔ ځه د خناس

نیک عمل کړه وظیفه آدمیت زده کړه
غیر له شرع قدم مهٔ بده کوزو پاس

دا دنیا تورهٔ بلا ده په باطن کښے
په ظاهر ده لکه ناوے په لباس

نادانان پرے لکه مچ مسے راټول دي
هوښیاران ترے ساتي ځان په ډیر وسواس

د دنیا دپاره اصل به بدل کړي
اُمي ځان به کړي مُلا په سر لوئے ملاس

ئے چادوے ئے پټکے - پګ - پګړئ -

خدائے رسول دِ د دنیا دپاره هیر کړ
دے دنیا کړے له حقه ناشـناس
فرض واجب ته ځان په لاسو په پښو شل کړے
دبدئ په کار کښے ذغلے تیز تراس
په دا هسے عمر بدو ته هوس کړے
چه دِ بدیرهٔ شوله سپینه غاښ کنډاس
ددلوئے خدائے[۱] په نعمتونو ځان شاکر کړه
دشیطان په شان مهٔ شـه ناسپاس
اوس که جمع خزانه په لوئے حرص کړے
صبا پاتے دی له تا لعل والـماس
سرتور[۲] پښے ابل له دنیا تلی هغه دی
چه قبائے وے اطلس پګړئ دخاس
کرپشان دزمیندار دنیکئ اوکـړه
ظلم مهٔ کړه لکه فصل باندے داش
چه دشمن ئے شو عیسیٰ اوخوت اسمان ته
دوست قارون په بنکته بیائی داپه راس
قباحت به ئے بیـان په عـمر نهٔ کړم
که تمام عمر په دا کښے اوکـړم پاس

---

[۱] ددلوئے خدائے) په نعمتونو ـ ... الخ
[۲] لور دوبنو اوګیاه دریسلو آله ـ

## شاد محمد د یار غلام او خذمتګار دے
## که دلبر دے معتبر کړی کړی التماس

که په خولےشی څوک دعشق دمزری کس
تل به وینی درد و غم ځی خواری کس

که اسیر شی هر بادشاه په دام د عشق
ځان ملنګ کړی ورته پرېږدی سردارے کس

دهوسیٔ پشان ګولیٔ په جګر اوخوری
کم ساعت شی پیښی دعشق په ښکاری کس

که څوک ستا د سرو لبانو مزه واخلی
ګڼړی زهر هلاهل[1] قند و تری کس

سرو مال دعغهٔ داوٌ په پیښ میدان شی
چه شروع کاندی دعشق جواری کس

سرے لنبے چه ترے چاپیر دعاشقیٔ شی
څه به غواړی راحت صبر قراری کس

په لړم پیچلی خوب دشپے حرام دے
خوب به څهٔ کړی ګزیده د منګری کس

له دیباره ځان په تل ځلے قربان کا
یار ته رسی د دیبار په رهبری کی

[1] اصل لفظ هلاهل دے۔ مهلک۔ وژونکے (زهر)

چه څوک طمع د میوے کاندی د سروے
لکه غواړی به وفاؤ نه یاری کس
زما یار دے وفادار د وفا دار و
چه د اصے وفا کله بد لری کس
یو دوه نهٔ دی چه بیان ئے درته اوکړم
د بیلتون جوړونه څرنګ به شماری کس
چه الله کړهٔ خوبرویان بالا په نورو
کم یو نهٔ کړی د خوبانو نوکری کس
د خوبانو سره ځای شی په مجلس کښے
چه کوی ورته مدام ګریه زاری کس
چه سرپښو کښے د یار کیږدی میوه واخلی
سفیده میوه په پورته نهٔ لری کس
شاد محمد به په جهان کښے سربالا شی
که دلبر ته شهٔ حساب اعتباری کس

---

هر پیښن د یرے چه دبدو کړی صوبس
د غه شرم خجالت دے وله ببس
د شیطان په اوریدو زاهد ګمراه شی
بنهٔ دبدو په مجلس شی دیر عبثٔ

---

ﻟﻪ عبث (عبس) په عربئ کښے تریو تندی والا ته هم وائی - بوس - بوټ)

دنا اهلو سره اهل شي نا اهـــل
لکه زوے چه د نوح ـے کړ نا کس
که د مخکښے عقل ورسته له ر ستنه
لاس به نمخه د حسرت په سر مکس
په دوستۍ کښے د دشمن شي د لاس لاندے
دوست اول کړي له دشمنه په دوست وس
د شیطان په دشمنۍ همه اقرار کړي
هم په لارے باندے ځي له دے نجس
وړاندے ورستو نظر بو یه مر بندۀ له
چه بیا نۀ کوي ارمان صبا له پس
حقیر مۀ گنړه دشمن د ځان د لاندے
سرگردان کړي سر ستر کو کښے پروت خس
طمع بند کاندي سره له لاسو پښو نه
مارغۀ گیر کړي د صیاد په دام قفس
نفس شیطان چه دسره په تن کښے ځلے شي
لکه واچوي هوسۍ ته خوک جرس
بعضے خلقو ته یو شر شامي غــر وي
ځنے خلقو ته غر ښکاري یو عدس
ځنے مست وي بربنډ تن په توک جوارو
غلے ناست وي کمو د خور جامه اطلس

---

ل د مسوړ و دال

د هګئ دپاره مات کړی لوښی چرګه
اسپه غلے وی په ګیډه تازی اس
بے وفا اولا داجل دسوړو پلار وی
څهٔ پکار شی زامن لونړه دققنس[1]
هیڅ اشیا به پاتے نهٔ شی بے له خدایه
داجل شربت به نوش کړی هر نفس
که له خدایه بخشش غواړے شادمحمدٌ
له بدګفته شه په مثل داخرس[2]

---

غلط مهٔ شه په بانګونو دخُروس
سحر[3] وی په ګندګیٔ پسے جاسُوس
په ظاهر کښے ښکاری نیک په باطن بد وی
څه پکاره ښه جامه ده دطاؤس
دانا ځان دِ کړو نادان عبث لګیا ئے
دانے ګورے لټوے پسے تش بُوس

---

[1] ققنس یو فرضی مارغهٔ دے ـ وائی چه ځان ته اُوربل کړی بیا کښے اوسوزی بیا چه باران اوشی نو په دغو ایرو کښے هګئ پیدا شی او بل قققنس ترینه پیدا شی ـ مطلب داچه دقققنس بچے پیدا شی نو دے ترے اګاهو مړوی ـ [2] کونګے ـ [3] ګنګ ـ

په باطن کښې دادنیا تورۀ بلا ده
ظاهر ښکلې په جامه ده بد عروس[1]

هر لیدونکې ترې امان د رب غواړي
نادیده ئې دتول په عشق کښې دي محبوس[2]

دپیسې دپاره څوک چه دروغ وائي
لکه ورکاندي ایمان په یو فلوس[3]

د ایمان زوال دروغ دي پرې باور کړه
بې شرمي زوال دننگ او د ناموس

چه عمل ئې وي خراب په رنگ وي ښکلې
باطن تېن وي ظاهر رنگ ښکلې پطنوس

زوره ور ته وي عاجز ته شیر وي
لکه چرغ . چرګي خور ظالم تپوس[4]

(دهغه چه[5]) عمل نۀ وي په خپل علم
لکه مړه شمع درون کړې په فانوس

مخ که تور وي سفیدي د زړۀ پکار ده
څۀ پکار ده مخ سفید او زړۀ ابنوس[6]

---

[1] بندي [2] پیسه پخوانئ سکه [3] یو ښکاري مارغۀ دے [4] (دهغۀ چه) عمل نۀ وي .... الخ ؟
[5] یو ونه چه لرګے ئې تک تور وي .

که دِ سترگے کرے روښنا نه په ذره واورے
تل غوبږی درحلت د رپسے کوس[۱]
دنیکانو د مجلس دِ نفرت دے
د بدانو په مجلس کوے جلوس[۲]
پا څیدل دِ د غفلت د خوبه نهٔ شی
گناهونو کرے دروند لکه کابوس[۳]
شاه محمد ره که گناه لرے بے حده
هم د رب د فضله ته نهٔ شے مایوس[۴]

---

نن برشوے دے په ما د بیلتون لاس
څکه واخشتو له ما نه ژوندون لاس
روح مے حسے په قفس د صورت زیست کړی
لکه کیږدی څوک په اورکښے د رون لاس
چه دلبر زما د حاله خبر دار دے
څکه نهٔ بددی په جگر د مفتون[۵] لاس
بنهٔ پوهیږم چه زمانه بے پروا دے
څکه کیښودهٔ په څټ مے جنون لاس

---

۱ نغاره ۲ ناسته - راغونډ کیدل - ناسته پاسته - ۳ خپسه
۴ لاتقنطوا من رحمة الله ته اشاره ده - ۵ فتنے وهلے
مجاز عاشق -

بېخودي مې د دلبر دعشق شاهي ده
غم بنا دئ مې مسې لوئې کړېخون لاس

د بېلتون ذره يه مرکز راته پېين نهٔ شي
نهٔ سپينيږي تور په مېنو د صابون لاس

ستا په عشق کښې مې ذمه دغم په غکښې
لکه کړو باندې تل وي دشپون لاس

که مې اونيولې زلفې ستا خهٔ حيف دې
پا ړو نيسي بنا ماران په افسون لاس

د رقيب په منتونو غلط مهٔ شه
له خط په تندي بد دي ميمون لاس[ع]

شاد محمد ده دشمنی ددنيا واخله
بيائې بنکته چه لاره پرې قارون لاس

---

غمزده وهي چپل سر لکه مکس
چه مدام سوزي په اور لکه دخس

چه دعشق د تاوه سوړ لکه کښئې شي
اور صفا کړي ذړ تربيل کړي کوټ اوجس

اور دعشق برابر دې له دوښ خه
تاؤ دعشق نهٔ دې داوړکه پيښ پس

---

ع له شادو بيزو .

هر صادق عاشق په اور د عشق کباب وی
منافقو ته څهٔ غم او څهٔ هوس
چه یو غم که په وصال د عاشق لاړ شی
زر بیلتون له یوه راولی پرے لس
چه ئے څهٔ د لاسه کیږی حیله نهٔ کړی
په هر یو عاشق بیلتون کوی خپل وس
د پردے نه د باطن ظهور ته راشی
چه د عشق په غاړه کړی جرس
تکبر ابلیس خراب کړ تر دے حده
شاد محمد ه ځان ته او نه وائی کس

---

د دنیا د غم د پاره په شور مشئ
له حرص لکه نمل شبکور مشئ
ځان او بهٔ کړه چه دمر چا پکار ینږے
سوز و ونئے دمر ځین لکه اور مشئ
علم حلم د عمل قناعت واخله
کوک پتکے د خیال په باد داس سور مشئ
غم د دین د آخرت کوه نور پرین ده
په غمونو د دنیا کښے غمخور مشئ
زرهٔ دِ او وینځه د قولو غیرو چارو
تو به کار شه لیو داده د نور مشئ

(اسمه لار) د شریعت ده پرے سفر کړه
په څنګلو کندو خوبنی سکه چور مشَ
سفیدی ته دیدن څه حاجت نشته
مخ که تور وی څهٔ شو زړهٔ بانده تور شَ
د نیکئ خزانے جمع کړه غنی شه
حاجتمند د ګناهونو د پور مشَ
د بدئ پهلوانی دِ کمزوری ده
په نیکئ کښے پهلوان شه کمزور مشَ
د ایمان فصل دِ اوساته د غلونه
په ریبل د چله لاسه په لور مشَ
په عقبیٰ کښے که مانړئ غواړے درب
ورانه ونکے د عاجزو د کور مشَ
که مکه مدینه غواړے مور و پلار دی
په آزار راضی د پلار او د مور مشَ
شاد محمد ه ستړګے روڼے په ګریان کړه
له غمو نو نه بے غمه د ګور مشَ

---

اے د دوو کونو سرور ه راشه راشَ
د تمام جهان رهبره راشه راشَ
چه تمام عالم دِ لار په دنړا سو می
د ظلمات په حق کښے نمره راشه راشَ

---

ے د رسمه لار د) شریعت ... الخ

د ب کریم دِ پہ سر تاج د لولاک لما

د همه خوبانُ غور ه راشہَ راشہَ

بے لتانہ بے دِلان دِ پہ غم ډوب دی

د عاصی امت جګړه راشہَ راشہَ

اول خدائے پہ تا عاشق پسے جهان دے

د جمله جهان افسر ه راشہَ راشہَ

دلبران دِ خادمان حلقه بګوش دی

دلبرانو نه دلبره راشہَ راشہَ

چہ آدم د کُل عالم خیر البشر دے[1]

اے د کل جهان بهتره راشہَ راشہَ

چه آدم ابوالبشر د کل عالم دے

د عالم خیر البشره راشہَ راشہَ

ټول خوبان د پاک الله د دنیا زینت دی

اے د ټولو نازېنوره راشہَ راشہَ

چه خوبان دِ دکرمه امیدوار دی

د خوبانو سر دفتره راشہَ راشہَ

د شیطان د نفس د شره نهٔ خلاصیږم

ما کړه خلاص د دوئ د شره راشہَ راشہَ

---

[1] د دا شعر حمد اسے یک دے. بنائی چه دا سے وی چه آدم دکل عالم ابوالبشر دے. اے دکل جهان بهتره راشه راشه. د دویمه مصرعه کښے د حضور پاک صلی الله علیه وسلم لقب خیر البشر ته اشاره ده. غالباً چه د شعر زاید دے اصل شعر ور پسے راغلے دے.

په نظر د فیض اثر به دِ سره زر شم
کړه مے لاندے د نظره راشه راشه
شاد محمد دِ خاص غلام د دروازے دے
لاړ به نهٔ شی ستا د دره راشه راشه

---

اے زما د زړهٔ تسکینه راشه راشه
خبر زده کړه د مسکینه راشه راشه
چه همه خوبان دِ لاندی تر قدم دی
تر همه وُ بهترینه راشه راشه
چه رحیم کریم قدیم دِ ناز بردار دے
د الله د دربیا زبینَ راشه راشه
ستا نوری صورت چه شوے آخرین دے
په معنی کښے اولینَ راشه راشه
په نظر دِ زنګین زړونه صیقل کیږی
صیقل کړهٔ زړهٔ زنګینه راشه راشه
کل ملک انسان او جن دِ قدمبوس دی
دستار په نور رنګینه راشه راشه
چه دِ سوال اول درب د امت وُه
د امت په غم غمګینه راشه راشه
شاد محمد دِ سپے غلام ستا دکوڅے دے
ډیر ویریږی د لعینه راشه راشه

(ساقي) پورته شه موسم د نوبهار شي
په زړهٔ غم د زيات د وصل د خپل يار شي
يو جرعه د ميو راکړه چه پرے مست شم
خيال د حال د مدهوشے په زړهٔ بسيار شي
بے هوشي جنون د عشق لويه پايه ده
عاشق هله شي چه څوک په دے نامدار شي
چه منصور د عاشقۍ شراب په خوله کړهٔ
انا الحق ئے په زبان بانديے گفتار شي
ليونتوب د عاشقۍ ورسره مل شو
راضي منډ ځکه په مرگ د ځان په دار شي
په دنيا کښے چه څهٔ کار دے عاشقي ده
بے د عشقه راته خوشے واړه کار شي
ستا بيلتون رانه د عشق رخت تالا کړه
ځکه ورک زما نه صبر هم قرار شي
خزانه د عاشقۍ ده دهٔ موندلے
هر يو رنګ زما په عشق خبردار شي
ماچه لاس ستا د وصال ګل ته کړو وړاندے
ګل رانغے بيلتون بنځ د لاس کښے خار شي
په دنيا کښے به ترے لار غلطه نهٔ شي
چه څوک سم د عاشقۍ په سينه لار شي

---

لے (ساقي) پورته شه ... الخ

چه اسره ئے په وجود د عشق نهٔ وی
پتنګ وے به ومرګ ته انتظار شُ
پتنګ ځان د معشوقے اول قربان کړی
بیا پرے راشی که ئے روح په یار نثار شُ
لیونتوب د شادؔ محمد به هله لاړ شی
که ئے طوق په غاړه ستا د زلفو تار شُ

---

چه ے غم دیار په سر باندے افسر شُ
ځکه شمار ے سر په ځائے باندے دسر شَ
د تدبیر لینده راکاږمه په نخښه
که ے غشے د مقصود پرے برابر شَ
غښ تدبیر مخکښے تقدیر ته یو ذره دے
چه تقدیر د تدبیر سر باندے که نور شُ
د بیلتون آفریدی لوټ د وصل رخت کړی
که عاشق دوان د عشق په خیبر شُ
د دوستئ طمعه د مار د لرم مهٔ کړه
وفا نهٔ کړی مشهور ځکه په ضرر شُ
اس تازی د زمانے د خرهٔ خراب کړ
په درجه د اس تازی مقرر خر شُ
د اختر په ورځ د بر هوس عشرت وی
ماسکین ته محرم یوم د اختر شُ
هسے ما پخپل تاثیر سره روښان کړ
لکه نور په تاثیر بنهٔ روښان قمر شُ

بے ادب پہ مثل مار پہ دب سمیږی
پار و مرکړی مارکم وقت چہ بے منتر شۀ
دکم ذاتو آشنائی د مار لرم دہ
د ضرړہ د موزر ورک بل اثر شۀ
خر مُهرہ ورتہ هیرا دُرّ یتیم وی
کوم کم زاد تہ قدر خوشی د جوهر شۀ
زر پہ بنکتہ درجہ شو د مشکنړے
خر مُهرہ مشکنړہ کموتہ گوهر شۀ
شاد محمدہ نور بہ څۀ غوارے د خدایہ
کہ سلام دِ د دلبر قبول پہ در شۀ

---

پہ مدار مے داغیار وهی زړۀ جوش
یو زرّہ مے پاتے نۀ شۀ عقل وهوش
پہ غضب مے د اغیار څۀ پروانشتہ
پہ منت مدارے هم نن د مہ گوش
تول بدن مے د سپند هسے لوگے شو
چہ اغیار شربت د وصل کړلو نوش
بد کردار اغیار عاشق تہ هسے نل دے
لکہ مرگ تہ گربہ غلے وی د موش
(پہ غضب) دی سرہ یو تر بلہ دوارہ
هم اغیار وی هم عاشق وی پہ خروش

---

ے (پہ عضب) دی ..... الخ

(بسکه) پټ کړه ظاهر نهٔ کړے دزړهٔ راز
سربسته کړه زړهٔ دشونډو په سرپوش
په خبرو چه دِ نن دی څوک غوږ وبنه
شاد محمد څان کړه چُپ کښینه خاموش

---

خدایه بخت زما اوده نصیب مے خوار شهٔ
چه سُور گل زما د پښنو د لاندِ خار شهٔ
داُمید یخه اوبهٔ شربت د وصل
اوس هغه اوبهٔ مے سیزی راته نار شهٔ
تازه ترغنچه دگلو مے په لاس کښے
شوه درنه لکه سِکهٔ راته سخت بار شهٔ
دباور لخته زما دقبضے کهوره
چه مرئ مے غوټوی راته متیار شهٔ
قناعت په خزانه چه تو نګر وُهٔ
د کُنجکے لاس ئے نهٔ رسیږی خوار شهٔ
چه دِ یار کانړه تل تیر دخپله سره
اوس په سر درته هغه اشنا اغیار شهٔ
دوصال زلفے زما د مرئ طوق دے
درنګ په درنګ مے خوری په مثل راته مار شهٔ
هغه مزے چه مے سخت وو تر فولاده
شلیږی بر ناحقه اُوس لکه اوم تار شهٔ

---

۱ (بس که) پټ کړ . . . . الخ
۲ (هندی) وسله .

## په لوئی د پړے کوله شاد محمد ه
## هغه یار د ِ شهٔ دشمن څه د ِ پکار شئ

اصل باز لکه په مثل د غراب شئ
خر مُحر تمتو کیدر لکه سواب شئ
هغه اوس چه اوچ لاونده ورته یو بنکاری
هغه اوس لکه دواورینه یخ آب شئ
اباسیند قلزم هامُون[1] لکه څپری شول
اوس څپری ړوبه وی خلق لوئے دریاب شئ
حرصناک د قناعت په جامه پټ شو
صبرناک په حرص زیات لکه ذباب[3] شئ
په قوت کښے چه دشیں د صاق زیات وه
بر ناحق درزونه خوری عسے بیتاب شئ
چه میش لکه اوبهٔ وو په زړهٔ نرم
بے گناه کوی قتلونه اوس قصاب شئ
نادیده شوله دیده باطن ظاهر شوه
نادیده باطن ظاهر دیده حجاب شئ
ظاهر نرم باطن سخت وی د بنو سختو
په نرمئ د سخت سزا لکه سیماب شئ

---

[1] هامون هغه دښت صحرا غالباً د شاعر مراد جیحون دے چه سیندونه پکښے غبیږی او موسمی جهیلو یالوئے لوئے موسمی ډنډ ے پکښے جوړیږی لکه هامون هلمند، هامون مشخیل وغیره [2] د روکے حوض یا تالاؤ (ځېرے) [3] مچ [4] پاره ـ

سیب انګور شوه لا تراخهٔ د مرچکی نه
خوله سیزونکی مرچکے لکه عناب شی
نادیده ته د تاتار نافه خشره شوه
کم دلیل ته غوشایه ګل دګلاب شی
**شادمحمده** بے غوږ ونوته پند مهٔ کړه
بے عملوته دِ هسے ځان عذاب شی

---

هسے خوښ یمه په غم د خپل نګار کښے
لکه خوښ وی سمندر په سور انګار کښے
په کتو دسترګو کیے مے سوده کړهٔ
در اتلو دِ شبو روږ یم انتظار کښے
بیتانهٔ دِ یم په خشکه کښینو ے
کله کښیبه نم د وصل په بهار کښے
څه مدار به دا غیاره خُنے غواړے
نهٔ دوستیږی اغیاری وی په اغیار کښے
بورا یاروی دګلونو ګل کښے ناست وی
اغیار یار سره ګونګټ ناست په ګلزار کښے
دآشنا زما په منځ کښے صافه لار ده
څهٔ رقیب که راته کیږدی غنے لار کښے
(نهٔ څوک) غواړی قراری زما داوښو
چا لیدلے ناسیند دے په قرار کښے

---

لے ا که څوک ) غوړی .... الخ

رچه[1] رقیب ، غماز خوبانو سره متّلل کا
لکه زاغ ځی دبلبلو په قطار کښے
ښکاری بد رقیب غماز په ښو کارونو
لکه سګ چه ښکاری بد په ښهٔ کردار کښے
یا رقیب غماز لعنت د خلقو اخلی
یا بو دیٔ چه شی دپیغلو په سنګار کښے
شاد محمّده صدق لاړ شو یار یارنشته
خیال کوه همیش تګی خیژی په یار کښے

---

بے لتانه هسے حال مے دے په کور کښے
لکه مړی د کافرو وی په ګور کښے
ستا دعشق په تاوده[2] اور کښے هسے خوښ یم
لکه خوښ چه سمندر وی په بل اور کښے
روغ زنګور دے د طرفه داخذه
سود و زیان دبیمار نشته دے په شور کښے
خطر بویه عاشقیٔ کښے هر عاشق له
چه رقیب غماز ئے ورنه کړی په تور کښے
دواړه سپی داړل ته ناست وی دعاشقو
وفا نشته دے په غل په کاشر چور کښے
چه د غور دوصال نهٔ وی طعام خهٔ وی
مزه چرته وی بے غوړو تالی سپور کښے

---

(۱) رچه رقیب ، غماز ... الخ      (۲) یو فرضی ځناور یا چنجے چه په اور کښے پاتی۔

بے وصال عاشقی عاشقی نهٔ ده
طاقت وینه کله کیږی په سپوړی خوړ کښے
وصالت لکه جنت بیلتون دوزخ دے
په بیلتون کښے عاشق وی دغم په زور کښے
خوشحالی مے شی په کل وجود حرام
چه رقیب کړم دبیلتون په قرض پور کښے
دپیغوره چه ویریږی عاشق نهٔ وی
شاد محمد دخوشحالیږی په پیغور کښے

---

په منول خاطر مے غم دیار ډیره شُ
دخوشی مے تن میرات په نغاره شُ
اور دعشق مے په تن باندے بلیږی
ځکه تن زما دغم په اور ایره شُ
چه اثر دعشق مے کیوت په وجود کښے
دعصمت صبر قمیص رادنه پاره شُ
چه مے ستر کے شوے دعشق په پرده پښے
ځکه ننګو نام مے واړه او اره شُ
ستا تهمت مے په سر تاج دبادشاهئ دے
عاشقی کښے ځان بادشاه راته بنکاره شُ
چه دعشق نغمه تغمه دچاذره نهٔ کړی
دغه زړهٔ راته په مړو کښے په شماره شُ
دبے عشقو کار و بار دے دوحوشو
هر وحشی بندی دګیډے په اتره شُ

د عاشقو عشق قوّت او هم قوت وی
مجنون تل په عمر خپل سر په میره شی
لیونتوب د عشق له "مرګه" بالاتی[1] ده[2]
ځکه خو بیا مجنون په خپل مرګ دوباره شی
په خپل عمر به توبه د عشقه نهٔ کړم
که په عشق کښې مے تمام بدن اره شی
شاد محمد نور به څهٔ غواړی د ابس دے
که په دې کښې د دلبر د سر مجره شی

---

غمزده په ذرهٔ افکار یم بے مخلص
ندرون په سوړ انګار یم بے مخلص
چه یار نهٔ وینم په دواړو سترګو ړوند یم
هم د عقل نه ونړار یم بے مخلص
ناست ولاړ په غم کښې ډوب یم سر تر پایه
د اسیانه ناقرار یم بے مخلص
د سنبل خوړل او خوب مے نهٔ شی بے دلبره
وچے شونډے زیړ رخسار یم بے مخلص
د فرهاد غوندے ځان وژنمه په خپله
تل د مرګ په انتظار یم بے مخلص

---

[1] د امصرع هم بے ییک ده ـ ګوندے دا سے وی " لیونتوب د عشق له مرګه بالاتی دکار !؟

[2] چه سنده د ژرنده)

(یوساعت) مے آرام نۀ شي بے له تانه
غوځ دعشق په ذوالفقار یم بے مخلصَ
(د مجنون) مسے دخلقو نه جُدا یم
په طرف دغل په لار یم بے مخلصَ
بے دلبره باغ بهار راته اور ښکاري
لکه ناست په باغ بهار یم بے مخلصَ
دافسوس لوګے مے خیژي له دهانه
پروت بے ځانه په بار بار یم بے مخلصَ
شاد محمد وائي بے تا م مسے حال دے
دمنصور مسے مے حال دے بے مخلصَ

---

دادستور دے مل په مل لري غرض
صاف په صاف وغل په غل لري غرض
که په زر و ته خانو کښے سرے پټ شي
خود ضرور به پرے اجل لري غرض
د وار و ښنبونه آخر بند شي پکښے مر شي
چه مګس په خوږ عسل لري غرض

---

۱ (یوساعت) مے آرام ..... الخ (؟) ۲ د د مجنون) مسے د ... الخ (؟)
۳ دامصرع صدا سے یک ده - بناقی چه دا سے وی -
"دمنصور مسے په دار یم بے مخلصَ"

عشق بد دے دروغ فقط لیونی کړی
لیونی په جنګ جدل لری غــــرض

عاقبت ئې دے خراب سړے خراب شی
چه په جعل فریب چل لری غرض

دسې عمر شی تمام چه لیونے شی
لائے خپل د مرګ اول لـــری غرض

دروغ ددروغو سړیکار وی یو تر بله
څۀ به دروغ په نیم بسمل[1] لری غرض

رسوا پان به رسوائی کــوی خبر ے
پټ خفیه په خفیه بیل لری غرض

خپل پردی نیکی بدی ورته یوشان وی
بے اټکل څۀ په اټکل لــری غرض

نیک عمله کار غرض په نیک عمل کړی
بد عمل په بد عمل لــری غــرض

آدم زاد په آبادئ بانـدے خوښیږ ی
جانوران په لوئ ځنګل لری غــرض

(خود[2] به کنګ) کړی ځان په لاس به اشارت کا
چه ناطق چرے په کل لــری غـرض

(عاشقانو[3]) ته بل ځائے نکه داوړ وی
د معشوق په ځائے بورجل لری غرض

---

[1] شاعر دا لفظ "دِبسمل" یا "بِسمل" په طور استعمال کړے دے۔ په اصل کښے "بِسمِل" دے۔ [2] (خود به کنګ) کړی۔ ....الخ [3] (عاشقانو) ته .... الخ۔

شاد محمد هغه کس په نهٔ خوارېږی
چه په صدق په توکل لری غرض

---

په بیلتون کښے د نګار مرمه فقط
په دیدن پسے د یار مرمه فقط
پتنګ ځان په سره لمبه باندے ایره کړی
هسے زهٔ په سوز انګار مرمه فقط
عاشقئ کښے مرګ عینِ بالائی دهٔ
که منصور هسے په دار مرمه فقط
د بیلتون په بند بندی لکه قیدی یم
د وصال دِ امیدوار مرمه فقط
شین لوګے د افسوس د خوے نه خیژی
په خندا دِ د اغیار مرمه فقط
ستا په لوز دسترګو کښے سود کړهٔ
همیش ستا په انتظار مرمه فقط
نهٔ په ویښه نهٔ په خوب کښے آرام شته
غم کښے ستا لیل ونهار مرمه فقط
بے وصال مرهم وارهٔ عبث دے
چه د عشق په ذوالفقار مرمه فقط
داغ دعشق په زړهٔ لری عمر ئے کم دے
د لاله هسے داغدار مرمه فقط

---

له د منصور ذکر مخکښے تیر شوے دے۔ "بالائی" لفظ ته غور اوکړئ په دار ختلے سرے هم بالا (اوچت) وی!

تار په تار زړهٔ **شاد محمد** دغم ځزان کړم
نکه ګل د نو بهار مــــرمه فـقـط

---

راشه مهٔ ځه ســـر هوا پــه لار غلط
چه اونهٔ کړے په ځپل فکر کار غلط
دادُنیـــا بـه نکه باد هسے فــنا شی
زړهٔ بسته نهٔ کړے پـه دا بهار غلط
داجل پـه تیغ بـه ستا جګر پاره کا
چرے نهٔ ځی داجـل ګـــذار غـلـط
پـه یـکی بانده رب اومنــه په صدق
دیک والی نـهٔ کړے بل اقـرار غلط
درسول پـه رسالت هـم عمل اوکړه
ځان هوښیار کا نهٔ شی ستا چار یار غلط
یو صدیقؓ دویم عمرؓ دریم عثمانؓ دے
دعلیؓ نـه د کـافـرو وار غــــلـط
کـافران به په دوزخ کینے تل مقام کا
چه د سمے لارے ځی کُـفار غلط
مستقیم پـه شریعت پـه پنځ بناشه
غیر له دے نهٔ کړے هر کـن رفتار غلط
که هر ځو فـکر تدبیر تړی هر کار ته
تدبیر ستا به تقدیر کړی تار تار غلط
داجل پـه مرض څوک چـه مرضی شی
دحیات امید کا دابــیـمار غــلـط

نفس شیطان دِ دشمنان دِ یے بندی دے
په دوستئ نهٔ شے بابکار د مار غلط
بے وفاؤ نه که طمع د نیکئ کړے
لکه بوټی میوه دار چینار غلط
عاقبت به ورانه ویجاړ خراب تراب شی
ځوک به زړه تړی په دا بازار غلط
شاد محمد ه عبادت دخپل معبود کړه
چرے نهٔ کړے خپل خاوند غفار غلط

---

چه په عشق کښے راتله پند کوی واعظ
لکه خر په کښل شخوند کوی واعظ
عینی ځان کنزمه خلاص دعشق په بند کښے
دخلاصی مےځهٔ له بند کوی واعظ
تریخ دزهرو ډکنډیره په ما لړی
هر کلام که خوږ ترقند کوی واعظ
دعاشقو دنا صحو سره څه دی
د دوستئ که بوخ ځوکند کوی واعظ
که عمل کړی ځوک به لږ وئیل عمل کړی
نصیحت څهٔ له هر چند کوی وعظ
چه مجمس د وعظ ماته واعظ نیسی
زړهٔ لرمون مے پرے سپند کوی واعظ

---

په غوږ کوږ په ژبه کونګ یم کاږه نشته
په آواز که پند بلند کوی واعظ
مرګ ے خوښ دے لاس به پاس دعشقه نهٔ کړم
که هر څو راسره کښند کوی واعظ
**شاد محمده** چه ئے ناوړے درته واک
دا په ځان پورے ریشخند کوی واعظ

---

چه پل نهٔ بږدی د ریا په لاړ واعظ
سراسر ګنړمه پوئے په کاړ واعظ
چه پلید په پلیدئ دریا نهٔ وی
جواهر توبه وی هر ګفتار واعظ
چه ذره قدرے اثر ئے نهٔ وی خولے کښے
ریا کار به وی هغه بسیار واعظ
چه ریا طمعه ئے نهٔ وی په بدن کښے
هم د روغونه چه وی ویزار واعظ
هر سړے ددهٔ په وعظ ګوش نهاد شی
په نیکئ کښے چه تل وی قرار واعظ
د بدئ نه چه پرهیز کوی ویریږی
چه روان وی دنیکئ په تار واعظ
نصیحت وعظ واعظ چه رابیان کړی
دهر چا د زړهٔ اوکاږی خار واعظ

---

نهٔ غوږ کښبو ونکے - آوریدونکے ، غوږ نیوونکے .

**شاد محمد** غوښه په پند د واعظ کیږ دہ
یو دِ بس دے نه چه وائی دوبارہ واعظ

هیڅ کوځم کوړ وکړ دیار په طمع
دخپل ځانه ناخبر دیار په طمع
اوږ دعشق مے هَمَه وجود ستی کړ
هم مے سکوڼ شو دزړهٔ سر دیار په طمع
سرنګون لکه مجنون یوائے ناست یم
هر طرف ته کرم نظر دیار په طمع
ستا دعشق په نم تازه لکه دګل یم
په امید دهم بستر دیار په طمع
اوږ دعشق پیدا شوے دے بیشکه
پرے کباب مے شو جګر دیار په طمع
دوصلت مرهم مے کیږدہ په زخمونو
غوځ بیلتون کرم په خنجر دیار په طمع
دبیلتون که هر څو ډیر فوځونه راشی
هیڅ مے نهٔ شی تر خطر دیار په طمع
که دلبر په خوړاک حکم راته وه کا
ماته زهر دی ثمر دیار په طمع
هر ساعت دِ زهٔ طالب ته مے مطلوب ئے
زهٔ ملنګ یم ستا د درد یار په طمع
هیڅ مجال مے دزړهٔ نشته بے مجال یم
لاړوس یمه نهر دیار په طمع

که بیلتون تنبے په ما پسے کړے پورے
بیا به لرے نهٔ کړم وَر دیار په طمعَ
عشوړه به ړاشی هم اے **شاد محمده**
څو به نهٔ کوے اختر دیاړ په طمعَ

---

ستا دحُسنه شرمنده شو ګل په باغ
دحسده لاله کینبوه په زړهٔ داغ
زهٔ چه سوزم ستا د عشق په لنبو کښے
په پتنګ تل سوزی په شمع په چراغ
دبلبلو سره شین طوطی جوړیږی
نهٔ جوړیږی دبلبلو سره زاغ
چه څوک ماسره دیار مجلس اغاز کا
تښی کالبُوت لکه دبُت شمے د ماغ
زهٔ بےغمه دوصال په تخت اودهٔ یم
بیلتانهٔ مے دبیلتون اوکړ سُراغ
دستا غمونو سرګردان لکه مجنون کړم
یو ذره قدر له ترے نهٔ یمه فراغ
د دلال د قدم خاوره به رانجهٔ کړم
چه مطلب مے چل مطلوب ته کړی ابلاغ
**شاد محمد** ستا د دیدن په طلب ګرځی
که ئے سور کړے شاه دوصل په ایراغ

---

۱ دستا غمونو سرګردان ... الخ ۲ تیزاس - یوغه

هر سړی کړه ژبه تینګه په خلاف
هزارها قسم به خوری چه وایم صاف
که یقین پرے چا دزړۀ په صدق اوکړۀ
بیا به اووینی هاله ظلم انصاف
که ئے راغے دفریب تګئ په جال کښے
بیا به نۀ شی په ډیر وس باندے معاف
اول بویه چه سړے سړے کړه کړی
ګوندے هر سړے وهی دیارئ لاف
فریب جهل تګی مکر خلقو زده کړۀ
که پښتون دے که جهلا دے که نداف
که ارزال دے که اشراف دے دائے کار کړی
دارزالو نه ارزال شول لا اشراف
که څوک ورکاندی روپئ چا لره ګوره
هم هغه روپئ کره کړی په صراف
مناسب دے امتحان په سړی باندے
نۀ چه وی دلړګی توره په غلاف
بښه یاری جنت نظیر بده دوزخ ده
مذبذبه یاری وه کښنږه اعراف
چلولی سړے به دوست په خدمت نۀ کړی
که ئے ستل حُله دځایه کړے طواف
هر یو کار په مناسب کول بهتر دے
په هر کار کښے مناسب نۀ دے اسراف

صادق یار د اینځر کل او د مار پښبه شوه
او به نهٔ موم که اوګورے اطراف
رمنت بار[۱] به د هر ځنزیه خدمت نشي
که مدام ورسته ولاړ ئے لاس په ناف
**شاد محمد**ه صادقاد آشنایان نشته
د ټکانو سره نهٔ ئړی ذرهٔ شګاف[۲]

---

چغلی خوړ ګنړم په اصل بد خلف
چه د ښونه ځی د بدو په طرف
بد خصلت د ځان پیشه کړی تل پرخوف وی
نیک خویونه کړی د ځانه کل تلف[۳]
جانوران که بد خوئ کړی جانوران دی
آدم زاد په ښهٔ خصلت دے مشرف
په بد اصلو وعظ پند څهٔ اثر نهٔ کړی
خر به نهٔ شی په تعلیم عالم سلف
بد کردار به نیک کردار هر ګوره نهٔ شی
په تعلیم ئے معلم شی مُکلف[۴]
د ښوښهٔ د بدو بد سره زیږیږی
د غمو وی غم شرشف

---

۱ رمنت بار) به د ....الخ (؟) ۲ دا مصرع په اصل کښے همدا سے یک ده بناؤ چه دا سے وی: "د ټکانو سره نهٔ کړے (ذرهٔ) شګاف (؟)
۳ ضائع ۴ ذمه دار

د علے نه وی غله وابنهٔ وابنــهٔ وی
غله نهٔ ده چرے شوــے د علف
آدم زاد ســره یکسان برابر نــهٔ دی
کله دُر کله چینجی وی په صدف
شاد محمده خیال او فــکر کوه سم شه
دحسرته چه بیا نمخے دوارِه کف

---

سوزم همیش لکه پتنگ دعشق په نار د فراق
زړهٔ ـے طوطی کوی په تاپسے چغار د فراق
لکه لا له ـے زړهٔ پرخون پخپله وینو کینے بوخت
(دا ښے دیرکم) دی چه وی زړه باندے داغدار د فراق
سترگے په باغ کنے د نرگس بوراپسے شوے رندے
څکه بوراکوری هر گل لټوی یار د فراق
لکه ققنس دځان په اور مدام د عشق وریتیږم
چه ـے شریک نهٔ شو یودم په غم نګار د فراق
داد افسوس په اسویلو سره ـے ساه شوله لنډه
دم ـے کوتاه شو ساه ـے خیژی په تلوار د فراق
لکه تنور ـے سرے لمبے مدام دخولے نه خیژی
چه په مجمر کنے د لرمون ـے دے انګار د فراق

---

له د ښارو وخوراک ؎ نهٔ مرِے ؎ (دا ښے دیرکم) دی ... الخ (؟)
؎ یو فرضی مارغــه دے چه د مرګ په وخت ځان ته اور بل کړی او پکښے اوسوزی ذکرئے ورِاندے هم تیر شوے دے. ؎ انگیټئ.

رود ے داوښتو په مخ دِرِ ومې دسيلاب په مثال
چينه د زړهٔ چه مے خوری جوش بورته بسيار د فراق
ماشاد محمد ستا دوصال په طلب ځان کړملنګ
په روز وشب ډهر ساعت کړم انتظار دفراق

---

ځوبه شکوم[1] احوال دخپل ماضی مطلق
سوتر پا يه ډوب کړم غم په خپل عرق[2]
معلم عالم فاضل طفل غبی شوم
د اومې طفلیٔ مکتب لوه لم سبق
کاروبار ته د تقدير تدبير عبث دے
د بارانه ساقی ځان پريوځی چرق
(په ناحقه)[3] دچا پوست دبوسوړک شی
راضی منډ وی بر ناحق وژنی ناحق
بے ګناه چه بر ناحق په ګناه شماری
ورکول دی دشاغوت دتول سپق
لټ به پورته دچوکو په وصل نهٔ شی
صاف صادق دمرګ په شاوی دخوے تق
شوینده ناشوینده ناطق اخرس شوم[4]
لکه اوومی دننګر په خوے تبق
زمانے چه ے دعدله لاس په سر کړ
حکه آه مے آسمان واخشت شفق

---

[1] بنکم [2] خوله [3] (په ناحقه) دچا... الخ [4] ګونګے (په خوله)

دیو غمه مے وجود لا خالی نهٔ وی
چه بل غم د مخ دپاسه راکړی پړق
صبر زغم مے دیر دتن وینه اوبهٔ کړه
نوس دغم مے زړهٔ کړخید ہسے ازرق[1]
که هر څو مرهم د صبر کړے پرے پورے
لا د زړهٔ د شاد محمد زیاتیږی شق[2]

---

هر بے عقل د وفا نهٔ لری مطلق
بے رحمی ظلم جفائے وی سبق
چه تعلیم د معلمه خراب واخلی
خو د شاګرد یهٔ خراب وی برناحق
هر انسان به رحمدل او وفادار وی
جفادار وی بل اوخپل له لکه چړق
چه په بنهٔ بد ه خبره نهٔ پوهیږی
په شادی کوی ژړا په غم بق بق
عاقلانو ته یوه کیله تش مرګ دے
بے عقلانو ته عبث وی په مخ پړق
هسے دیږ دم د احمق د ظلمه جوړه
لکه دیږ دی د شجر په بادوړ ق
چه رایاد جور ستم دخپل دلبر کړم
لکه خس مے تن شو غرق په خپل عرق

---

[1] ازرق۔ شین۔ نیلا (په اصل کښے ازرق بیکلے دے)  [2] چاود
مراد ترے زخم دے۔

(که دِ) کیږدی د وصال مرهم دپاسه[1]
لیس له هغه به مې جوړ شی د زړهٔ شق
چه مې ډک دے زړهٔ دجوره اسویلے کړم
په تاثیر ئے فلک واخیستو شفق
لاس به زهٔ **شاد محمد** تا نه پورته نهٔ کړم
ان که چا کړم په تیرُّو سپق سبق[2]

---

تل د کبر سر ماتیږی په کوتک
شته دے کبر له زوال او نهٔ کړے شک
که په خپل حُسن غرور کبر هوا کړے
ویره اوکړه د گردشه د فلک
چه غرورکبر هوا دځانه دور کړی
دهغو ثنا صفت کوی مَلک
کبر خاص صاصةٌ[3] د ربُ ده چه قدیم دے
څهٔ بنده په غرور کبر شی کلک
زهٔ منت کومه ته قهر کنټرل کړے
ستا غرور مې کړو قدخم په ملا کینے سک

---

[1] (که دِ) کیږدی ... الخ [2] د الفظ هداسے لیک دے. "تیرو" (تیارۀ جمع) دلته نهٔ لگی به "تیروتو" یا "تیروتو" دمصرے وزن خرابیږی. په ځنے قبیلو کښے "ستیرو" دتیر د جمع په طور هم راځی. [3] په اصل کښے هداسے لیک دے بناؤ چه "خاصه" وی.

چه په عشق کښے منافق د رته ښکاربږم
ښه کره مے کړه د عقل په محک[۱]
د عاشق د دلسوزئ نه خطر اوکړه
په مثال د ے آذار سکه ټوپک
ظاهر روغ په وجود کړ رحم بے پرهره
په ضمیر[۲] مے ستل دغم غشی دی لک
هغه ورځ مے (دے) د ژوندۀ لاس ونیځلے
چه د عشق مے دے خورلے په ذرۀ بیک[۳]
شاد محمد ۀ نفس شیطان خوراکیان سپی دی
ځان ساته چه درنه اونۀ وهی چک

---

یو مے عشق ښاسی په زړۀ ډوک
یل بیلتون مے ماتۀ وی خوله غابن په ثوک
منکیرک شۀ راته باز منګل مزرے شۀ
ځکه ښخ ئے په ځیګر کو لاله نوک
که ځو مے دروېزه د دیدن اوکړه
راد نۀ کړۀ د وصال په لاس کښے ټوک
حیرانی ده عجیبه د عشق دور
شاه ګدا کړی او ګدا کاند ملوک

---

[۱] کسوټئ - ذر کا نړے [۲] زړۀ [۳] داو سپنے جوړه شوے هغه تیره سونبه چه دشپے ماٸے پر ے دماهیانو یا کبانو ښکار کوے شی -
[۴] ټپوس -

عاشقي په مثال ورانه ماشوم ده
نهٔ جوړيږي خو آخوشي په شوک شوک
شوشنده ئے له آوازه خفه کيږي
که هر څو ناله فرياد اوکاندي غوک
په سلوک به د سالک پوهيږي
خر ته څو کله پوهيږي په سلوک
**شاد محمد** داد خوشے منصفي ده
چه ته وائې توره وانګوره وته املوک

---

رب دِ ايښے په سر تاج دے د لولاک
اسم ستا احمدٌ محمدٌ محمود دے پاک
ستا د مخه دا دنيا الله پيدا کړه
ګنبدِ چرخه به وے نه ځمکے يا افلاک
د آدم د پيدائش سبب هم ته ئے
ستا د دويه آدم جوړ ئے کړ د خاک
رب قادر په خپل قدرت د چه حکيم دے
د بل چا نشته په دا کښے څهٔ ادراک
چه ابليس شو نافرمان ځکه شيطان شو
چه د خپل ګناه ئے او نه لارهٔ باک
آدم خلاص شو ستا د مخه توبه ګار شو
چه پخپل ګناه له حده شو غمناک
د جنته دا بهر شو نور معاف شو
په اولاد ئے شو آباد همه املاک

---

له چيند خه

ستا د دویـه ستا امت هم مشرف شو
چه نبیان وو ستا امت ته په پسخاک
په آخر به د مغو پایـه وی لویـه
چه لری ځان ستا په درخس و خاشاک
شاد محمد ره لمن تینګه د رسول کره
چه د دواړه نفس شیطان کاندی په واک

چه ساقی د عشق درکړی پیاله بنګ
بے هوشی هوش ترے دور کړی ننام و ننګ
چه ئے روح د عشق کنیوزی په قالب کښے
دیوانه شی روغ وجود به هغه درنګ
پټ دننه ئے په زړهٔ باندے اُوربل وی
ظاهر روغ وی په باطن زړهٔ غوځ چورنګ
خود بینی کښے معشوقه موندل مشکل دی
تو چه ځان وړ پسے خپل نهٔ کړے ملنګ
اول مرګ پسے ژوندون دے باور اوکړه
بے زحمته راحت نشته په هیڅ رنګ
دوصال د باغ ګلونه هاله بوئے کړی
چه یو ځل کړے ځان ستی لکه پتنګ
چه عاشق په تخت د وصل چرے کښینی
د سادین لوټه کښی تخت داورنګ[1]

[1] داورنګ زیب عالمګیر باچا تخت۔

بعضے بعضے مشهور پہ فقیری شی
څهٔ که دیر خلق خادر کړی دځان لنګ
چپ یوا ځے ځان له کښینه شاد محمده
دنصیبه سره نهٔ شی د چا جنګ

---

وے بل دِ شو دِ یبنو د لاندے اک
کور پہ کور دِ ګرځوی نفس لکه سګ
پہ یو ځائے دِ قرار ے صبر اونهٔ شو
دحرصه هر طرف ته کوے تګ
دریا مونځ وظیفه کوے په طمع
خلق لوټے په شته همسایہ تسبیح پک
پہ هر چا باندے داستا تهګی چلیږی
بل بہ نهٔ وی ستا پشانے چرته ټهګ
بنګالی خلق له تاسه امان غواړی
هم شیطان درته لاسونه نیږدی پہ غوږ
پہ ظاهر دِ کړ ځان سپین لکه د واورے
پہ باطن کښے دِ توِل رخت دے د زړهٔ برګ
(نوبتونه) پہ دُنیا بہ کړهٔ ترکومه
دادنیا ده د اوبو دپاسه څګ
د بدئ پہ هر یو کار کښے ګړندے ئے
دنیکئ پہ کار دِ نهٔ خوزی یو رګ

---

ئه اور دهند کوده  ئه لو پټکے - پګ  ئه (نوبتونه) پہ ..... الخ

محمدی په کار تورزن او بهادر سےٓ
دنیکئ په کار کښے زړهٔ ډلویړی درک
ته د نفس دپاره هسے رنګ له شور کړه
چه به سپے اونهٔ کړی هسے شانِ زوک
شاد محمد ه پند به ستا هله خوند ورکا
چه کالبد ئے شی بے ساه خالی تش دک[1]

---

کله مړ کله ژوندکا څېل مقتول[2]
کله بناد کله ئے مل کړی دزړهٔ نول
په ړو ړو دناز خیر ئے د خوبانو
په جذبه دعشق عاشق نه یوسی سُول
چه عاشق دعشق تاوونو ته سر کیږدی
د دوزخ تاوونه یخ گڼړی قبول
دعشق تاوٗ د عاشق وینه اوځکی زیړ شی
تاوٗ داور کاندی پوست تور لکه کلول
په مذهب دحکماوٗ وینه روح دے
د زنده مرده تر میان ده وینه پول
د جُسے سرے دور ایه معلومیږی
چه وصلی وی مرخوک دعشق زول

---

[1] دقیمے دتکولو لرگے - کوړئ - په اصل کښے هغه لرگے چه په منځ کښے دروست وی یا وښو خوړلے وی.

[2] په اصل کښے دا سے لیک دے بناغ چه کله مړ کله ژوندے - وی

که ظاهر عاشق خندا کوی د خلقو
په باطن وی او چې شونړے ذړهٔ ملول
چه وصال د معشوقے د عاشق مراد وی
په منت په عاجزئ به کړی حصول
که په کبر په غرور وصالت غواړے
شاد محمده دانسته نهٔ شے مجهول

---

بے وفاؤ د یارئ چه کوے خیال
اول تیغ ته د غمونو کړه ځان ډال
د راحتے په نیت تل به زحمت مومے
همیش سوړ به یُے د عشق په کرم تهال
خوشحالی به دِ بدله په اندوه وی
په خپل عُمر به ذرّه نهٔ یُے خوشحال
بے مرضه به دِ وینه غم او به کړی
یو پوټے به دِ د ذړهٔ نهٔ وی مجال
د اول ورځے دویمه به وی سخته
هذا القیاس چه به دِ دغه وی احوال
د عاشق صبر په عُمر د یار نهٔ شی
د بیلتون غواړم امان سه ذوالجلال
چه ئے برخه دوزخی غوندے وی خواره
بے بیلتونه به هیڅ نهٔ وینی وصال

---

ﻪ مراد ترے جاهل دے ۔

کنارہ بہ دِ همراہ غم د هجران دی
سر تر پایہ بند د غم بہ ئے پہ جال
تندے غوښتہ مروړ عبث د خلقو
برندے سترگے ژبہ بند لکہ دیوال
کہ ئے خوږ خلق عزت او حرمت ډیر کړی
بے نگارہ خوشحال نۂ وی یو مشقال[۱]
رڼا ورځ پہ حق دړوند تورہ تیارہ دی
حاجت نۂ لری پہ شپہ کښے د مشعال
د عاشق معشوقہ خپلہ د زړهٔ مراد وی
هیڅ نظر نۂ کړی پہ مُلک یا پہ مال
معشوقہ دِ بے وفا د عاشق نۂ شی
مگر لتے بہ د غم خوری هر محال
**شاد محمد** د بے وفاو وفا غواړی
لکہ شوړ آب نہ امید کړی د زلال[۲]

---

د بخت نمرے کړو قسمت سر پہ زوال
د نصیب بدر قمر ے شو هلال
بیلتون وُلی ما پہ غشو د غمونو
مانیوے ورتہ تن د صبر دال
عشق بیمار کړم بد بیلتون راتہ طبیب شهٔ
د وصال د یارۍ کینسود پہ ما پال

---

[۱] یو بوټے -یوذرہ رشقال دیو وزن نوم دے)
[۲] صفا خوږ ے اوبهٔ ۔

(بیا بیلتون)[1] په رسټې مرئ ځیه کړه
ځکه لاړه رانه هوش صبر مجال
هر عاشق وي په دنیا کښې په اور سوے
عاشقي د جهنم دوزخ مثال
روغ عالم په ماگومان دنشاتي ئے کړي
زه د عشق په نشائې خورم د مستئ تال
بادشاهي دعاشقي تر پښه لا زياته
که عاشق په زړه خفه وي که خوشحال
داور سوے بنده او سيزي درد مند شي
درد مند اور کنړي تکور او هم دسمال
هر ساعت په غم کښې ډوب دچل دلبر يم
نور ځه غم ے په زړه نشته يو مثقال[2]
د عاشق مشغولا تل دچل ضمير وي
ځکه خلقو ته وي چپ لکه ديوال
کين چاپير عاشق په اور کښے گرفتار وي
قبلوي سختي په طمعه د وصال
چه بيمار تراخه تراوه داړو اونه خوري
لا صفرا به پر ے زيا تيږي هرحال
څوچه صبر ورته او نه کړي درد ے کاله
او به نه خوري ثمر زر دنسو نهال[3]

---

[1] (بيا بيلتون) په جنون ے په ..... الخ (؟)
[2] يو بوټے - لړشان [3] نوے بوټے.

عاشقي كنزم آسانه مرګ بيلتون دے
هر عاشق کاندي بيلتون په زړهٔ حلال
عاشقي په توقه وشته سره نهٔ شي
شاد محمده چه ورنهٔ کړے سرو مال

---

په بيمار باندے وي شپه د هجر کال
يو ساعت دولس مياشتے په خوشحال
چه مجبور په در د کهجر مشرف شي
هله اووينې د ښکل آشنا جمال
چه څوک نهٔ زغمي ستم د يار دلاسه
ناروا به کوي طمع د وصال
چه په کبر په هوا وصالت غواړي
لکه ځان کنړي بادشاه د خوب په خيال
(بے ريباره) چه په طمع د ديدن وي
د معصوم پيشان د ذاړے غواړے مال
چه سختي عاشق په ځان قبوله نهٔ کړي
دراحت به څهٔ اميد کوي يا سوال
د هغه بيمار په برخه باوړے وي
چه په ځان د طبيب اونهٔ مني پال
بے زحمته چه راحت به دځان غواړے
لکه څوک چه بدلوي شړئ په شال

---

۱ (بے ريباره) چه ...... الخ۔

چه حاضر د معشوقې په حضور نهٔ شي
شاد محمد وی هغه عاشق ارذال

---

زمانې کړهٔ په زړهٔ باندې اور بل
څکه ناست یَمه جدا د خلقو غل
نکه بوم چه د قارغانو نه پټیږی
هسې پټ ناست یم د د عالمو بیل
چه رهبر کړی عقل مخکښې لیونے شو
عاقل بُولی خلق پوئے په فریب چَل
د فریب جعل اوچل نه ے توبه ده
د دے عقله احمق خوښ یم هر محلٔ
پاتے نهٔ شوه څوک یکدل اویک زبانه
څکه زهٔ ناطق زبان ناست یَمه لل
که راکاږی ے هر څو د لاسو پښو نه
کښیږم نهٔ بادم د دے خلقو په لار پل
رنګ ترے لرے دے همه د غیرو چارو
په آئین د صدق زړهٔ ے دے صیقل
بے تحقیق چه صاف کس سرے مجرم کړی
هغه کس نهٔ وی د عقله سَـرَه مَل
دا ناتُنُدُه دا عین نادانی ده
چه کوی د خودغرض په خولے عمل

---

نه هر محال یا هر وخت

صفائی د صفائی صفائی بنه د ه
کوټه دِ لـه وی په هر کار کښې مجمل[1]
ځان منصف کړه په انصاف سره عادل شه
چه بد بنهٔ دی که ښهٔ بنهٔ دے مفصل
(د اژوندون) لکه جاب[2] د آب په سر دے
هر نفس له شته د لوټ لار دے منزل[3]
غټه وـنه په وَهَل وهل غورزیږی
السټی نهٔ شی د فریب بو ـټه نهل
فریب جعلی[4] په خپله خپل ځان وژنی
آخر جعل ئے شی کیږه کښې تخ شل
چه د بد و وی بخلا د خود دشمن وی
، ضرور ځان لره په زور گوری اجل
هر ناشونے کار چه وینه په سترگو
د غصے لکه سور مل شم الـوول
شادمحمده د زرهٔ تاؤ دِ دے بس کړه
نور کوتاه کړه تهٔ په دا مقام غزل

داحمق نهٔ ده وفا د اینحُر کل
یار آشنا نه لا دشمن وی ورته خپل

---

[1] غیر واضح ـ چه صفا نهٔ وی [2] (دا ژوندون) لکه .... الخ (؟)
[3] دا لفظ هم دا سے ییک دے ـ په پښتو کښے "منزل" وائی چه د
قافیے له اعتباره هم درست دے ـ [4] تهک ـ

چه دشمن په زنړکی زیات ددوسته شماری
څۀ به طمع ددوستئ کړی ترینه بیل

که بے عقله ظاهر ښکلے په جُسه دی
اندرون دچیرړو ړک وی لکه ځل

بے وفا به زیر احسان دخدمت نۀکړے
چه ذاری مدار خدمت ئے کوے تل

چه په چرغ کښے جفا باز کښے وفا ده
ځکه چرغ په ښځهٔ دے باز په ښل

عاقل صبر په نصیب وی حرص نۀ کا
احمق پښت په ځائے حرص نه بندی څنګل

د احمق حارص چه نولس په نصیب وی
په خوارئ ذارئ حرص به نۀ کړی شل

داحمقو وشتۀ توقه سره جنګ وی
د هوشیار ښیار مدار ګسړه کنځل

عاقلان په ځائے دغم ژړا افسوس کړی
بے عقلان په خوشئ غم په غم خندل

چه یکسان ورته دوست ودشمن دواړه
دهغه مثال دے اوړ داوړ دی سول

هم هغه به دړ دسیږی نوړ به نشی
**شاد محمد** په تقدیر چه ږدی ښکل

---

که خبر کړی ځان زما دزړهٔ په حال
بیا نۀ دی سړے زما دلال

فولادی زړهٔ به دِ نرم لکه موم شی
په آتش زما د عشق سره فی الحال
د غرور لخته به پرے باسے دلاسه
د کرم به په ما اوغوروے شال
که دِ داغ وی د اسلام په وجودباندے
دلسوزی به دِ کړی زړهٔ په ما حلال
د بیلتون ناشونے ډیرے بے حسابه
مالیدلے مرګ ژوندون بیلتون وصال
دلیدو د اوریدو فرق بسیار دے
څهٔ به وایم درته حال د زړهٔ ملال
شپه او ورځ هره لحظه ے وی په اورکښے
لحظه ورځ وی ورځ تیریږی په ما کال
د مهٔ هسے ترے پروت یم لاندے غلے
خوړ په ما دے ستا د مینے د غم جال
چه بیلتون ے د مرض د عشق طبیب شو
د وصال دیارۍ کینبود په ما پالۍ
که خبر زما د حاله سراسر شوے
اوړ به بل کړے پاس په سر لکه مشعالۍ
د عاشق په زړهٔ کښے ډیر مطلب وی جمعه
معشوقے مخکښے وی چپ لکه دیوال

ۍ پرهیز
ۍ عام طورسره مشال یا مشعل بیلے کیږی

څوک ساقي مالوسر دواړه په يارئ کښے
شاد محمد ورکوي دواړه سـرومال

---

دوباره شومه داور په لنبو جل
لکه سکور دوبار وي اور دابانده بل
(دمرض) دعشق بے وصله دارو نشته
فقط مري چه نهٔ شي ياه سره مل
خال وخط ديار جمال جذبه دعشق
دعاشق نه عقل فکري هوش کړے بيل
دغرور کبره توبه دنصوحي ده
که په عشق کښے ے حئ سرنه يم معطل
چه کښېږي څوک دعشق په درياب بانده
دختلو اول بنهٔ بويه اتکل
دغروره چه کښېږي بے کودره
بر ناحق يه کړي ځان مر دډوبو وغل
شاد محمده هاله ځال فکر کړي ځان ته
چه ے بوتے شي په زړهٔ دعشق نهل

---

هر بے عقل وي په هر کار کښے جاهل
په نيکي خدمت دچا نهٔ وي قائل

---

۱ (دمرض) دعشق ..... الخ (؟)
۲ حصار - ار - ايسار

عاقلان مړی ژوندی په نیکئ د کړی
مړی پرېږده ژوندی سړ کړی نا قابل
د هوشیار و په مخ چول عالم سرخروئے وی
شرموی بے عقله وار ه قبائل
د عاقل مخکښے یوه مسله بس وی
هر بے عقله ته زر[١] هیڅ وی مسائل[١]
بے عقلان همیش په عکس باندی کار کړی
په عوض د سُست شی تُند د تُند کاهل
عاقلان ساتی راضی یار دوست له ځانه
بے عقلان په حق دیار دوست وی قاتل
هوشیاران رحم مدار ترس کړی په خوار و
احمقان شری رټی وهی سائل
د احمق نه وفائی د ملی تُوره
ان که شال توره مصری کړی حمایل[٢]
پښه د مار د اینځرګل شبقدر واره
برابر دی که نه ئی اوکړه ازمائل
بعضے ډوب شی په اوبو کښے بدنصیبه
احمقان ځان بل غرقاب کړی په ساحل
شاد محمد به سربلند شی په جهان کښے
چه دسپو سره د درد کړو شامل

---

[١] هزار مسائل د پښتو د فقهے یو کتاب نوم هم دے.
[٢] په غاړه کښے ذوړند ے.

چه بې دل جدا سختي وينې دَ دِل
لکه پوهٔ مريض پخپل مرض دَ سِل
په صدف کښې چينجي دُرِّ يکانه کړي
آدم روغ د نارٔ هوّا داوبو کَـل
تَل د مره جفاکشه سړک بهتر دے
دَبّ قادر دے سائل شاه کړي شاه سائل
دنصيب په کار کښې عقل نهٔ چليږي
تقدير عقل دعاقـل نه کړي زائل
افلاطون ارسطوآن لقمان حکيم هم
د علاجَ داجله وو جاهل
دمعشوق خبره سخته هر عاشق له
لکه خښتکل په پوهه زر هلائل
مرګ مشکل دے د عاشق په ځان آسان دے
دستم جور په تيغ وي تل کهائل
جنون واقي ليونتوب دے عشق جنون دے
دعاشق عقل بې عشقه وي قاتل
چه طلب د مطلوب نهٔ کړي مطلوب غواړي
شاه محمّد دا لا نبـو ده په ساحل

---

هسې زهٔ يم په بدئ باندے خوشحال
ورکوم تمامي عمر په يو کال

له دخلوړو عناصرو ذکر په يو شعر کښې راوستل هم يو ښهٔ شعري صنعت دے۔ له وژونکے ، مهلک ۔

دواړه سترگے مے بینا هم نابینا دی
چه بدل مے په شرړی کومړین شال
جواهر داسته بخلے بنکاره کیږی
په کنجکه مے لعل ورک ړهٔ بےمثال
په مجلس ددشمنانو هوسناک یم
ددوستانو په مجلس یمه ملال
(ددښمن) سره صلاح او مصلحت کړم
له دوستانو پټه ډمه د زړهٔ حال
دمیوے وُنے مے اوولیستے د بیخه
ما په ځائے دمیوے جړه کړه نهال
کد مے لاس چرے په برو باندے برشی
یو ذره قدرله نهٔ یم پسے اتهال
کټورے راته کنډول کنډولے جام شهٔ
جام بدل مے په کنډول کړ د کلال
بهسے رنگ زهٔ دانسته نادانسته شوم
چه د ورځے بله وم ځان ته مشعال
بل سرے چه کری گنداره چیل دشمن کری
ما چپه توره چل ځان کړ حلال
روغ سرے دگناهونو توبه کړه روی
زهٔ کمبخت د گناهونو یم لیوال
شیدا محمد وائی لړلے په گناه یم
پاک به نهٔ شم که په سند شمه کنگال

---

له (ددښمن) سره صلاح ... الخ (۴)

زهٔ یم په بدیٔ کښے د بدانو سره مل
نیکیٔ کښے د نیکانو سره یمه په بنوشل

بدیٔ کښے زهٔ د بادهٔ هم د آس گړندے یم
نیکیٔ کښے ځان رنځور کړم اخښتے نهٔ شمه پل

بدیٔ کښے هر اندام مے د فولاد تر آهن سخت دے
نیکیٔ کښے مے هر یو هډوکے کړ دے په زل زل

بدیٔ کښے راته سمه لار ښکاریږی ورانه شاړه
نیکیٔ کښے پیښه لار وینم په مثل د خوشحال

گناه کومه ډیره خپل خاوند ته مے مخ تور دے
چه بل به نهٔ وی مانه په دنیا کښے بدعمل

وینمه هم گورم هم تر هسے بے پروا یم
کله بنسهٔ منمه کله نهٔ منم اجل

ځمان به نا دیده کړی د گنی زما په ځان
زهٔ یم بے عمله په جبه کښے گنده نل

ډیر عالم گمان کوی په ما د داوړو یخ
اوچ لاونده سیزمه راته ښکاری اوربل

مایه د هر چا هډوکی مات کړهٔ بے هنره
نشته زما وس په بے وسیٔ یمه معطل[۱]

خلق مے هر ځائے کښے لیونے دیوانه بولی
دغه لیونی گڼمه زهٔ په خپل اټکل[۲]

---

۱ حصار ، ایسار ، اړ ، بېله .
۲ خیال . فکر ، اندازه .

واوره شاد محمد لاکه ته ذر ته بیره اوکړے
هغه به دی رسیږی چه ږیک وی په ازل

تاچه تورے کړے سترگے په کجل
د جگړه ے ږ اوویستو تیغ شل
سپین رخسار دے لکه گل مسے تازه دے
مرواری ږدی دندان لبان عسل
ستالمن ے ده بنوے په منگلو
برے به نه بدم که ے سرته شی خلل
خود ے لاړ شو بے خودی راباندے راغله
چه ږ زلفے په سپین مخ کړے السوول
تولہ زمکه ږ په ما باندے توده کړه
چه ږ اوږ د عاشقئ شو په ما بل
عاشقی ده د حد کرانه دیره پورته
گوندے او به افلاطون په دے اتکل
د وصال په امید زړه د عاشق جوړ وی
گوندے دے به کړو بیلتون غوځ په گوگل
خار د چله سره سم دے پیدا شوے
هر عاشق سره بیلتون وینه مل
معشوقه عاشق چه شی سره ترغاړه
بیلتون ناست وی ورته پټ لکه د غل

ئه مروارید .

کل غمونه به ے شی دزړه نه لرے
له دِ خوله راته انعام کړله یوځل
قرار ے صبر مے نشته ستا په عشق کښے
د مجنون پشانے سریم په ځنګل
معشوقه عاشق له هله په لاس ورشی
چه اول شی د بیلتون په جرنده دل
معشوقه چه څوک په سر باندے بیا مومی
شاد محمد نهٔ دے په سر ورته معطل

---

چه په بل پسے ژړا کړی ډیر ستم
اول اوکښېږه د نورو نه خپل غم
چه د مرګه بے پروا بے غمه کرځے
مرګ دِ سورے هسے ځی درپسے سم
هر سړے چه د دشمن په مرګ خوشی کا
نهٔ پوهیږی چه به زهٔ شمه عدم
مرګ د کل جهان په سر لکه د نمر دے
په رڼا ئے منوړ دے کل عالم
تهٔ به څه اوکړے سودا په دا بازار کښے
چه څهٔ نه لرے په جیب کښے زیات وکم
دا دنیا د باد سورلی د خوب لیدهٔ دی
څوک به زړهٔ تړی په دے پورے محکم

---

لے الف - ایسار ، حصار

روند په لاړ د همسا په دلیل ګرځي
بې همسا به پورته نهٔ کا یو قدم
ته ئې په دوغوسترګو کړې په ځنګل کښې
بیا ځان دِ نابینا کړ په هر دم
په کوټه کښې دِ تیاره کاندي ساه لنډه
کل صورت دِ بې ډیوه نه شي برهم
داډیوه لره د باده په هنر کښې
بې ډیوې به هلته څهٔ کړې په تورتم
ډیوه مثل د ایمان باد د شیطان دے
دے ایمان ته دِ شیطان غل د خپل چم
تیل په مثل د عمل ډیوه پې بله
باد کښناوه دا هم عمل چه لري خم
ستا خبرے ے په زړهٔ دی سکیندلي
لکه کیږ دي په پړس سرے مرهم
توبه کړے په هر ځائے کښې سوکړ دا سنه
شاد محمد ره درکښې پریوځه د صنم

---

(پهٔ تعلیم) دخړو دماغ ے کړو چل کم
پند دبل په بس عبث اخلم دغم
دهوسه ځان په نورغم ته راکاږم
درنړا نه نښوځم په تورتم

---

ئه (په تعلیم) دخړو ..... الخ (؟)

که مے ذره د خوشحالئ په لوړ هوس کړی
زه د ذره په هوس یو نه بدم قدم
دانسته اچوم ځان په سوړ انګاړ کښے
بے فائدے لکه پتنګ ورکوم دم
لکه څوک چه له تصویره عشقبازی کړی
هسے زه د بے خولو غلیږ مه په غم
که هر ګل د ګلستان اوګورے څه شو
بوړ اتور کړ د نرګس جوړ و ستم
د آبدست د سادینه په لوټه بانده
بدلوم پرے ګلستان بوستان ارم
په شمشیر د هلال مثل د ایران زه
په ګذار د زه دوړ وځو کړم قلم
د بنړو په عشق ذره مے دے سورے کړ
لا د زهرو پرے دپاسه بدے مرهم
که راحت که سختی مے ده په عشق کښے
دا همه وار ه ګنړمه ستا کرم
نور به زه شاد محمد نه ګرځم کاوا که
که مرئ کښے مے کړی طوق زلفے خم خم

---

ذره مے شو سوده لکه پته د یار په غم
ګرځی پرے لټ د رونه د جوړ هجر د ستم
څه که ظاهر روغ په وجود ګرځم بے پرهره
ذره مے اندرون په څلوړ ځایه شو قلم

۱ خوله

نهٔ کوی پُرسان دبیمار لا غصه غضب کوی
څهٔ کښناه تقصیر دے لما شوے کل صنم
اوچ ے شو رکونه د زړهٔ ستاد عشق په تاؤ باندے
هله به شم روغ چه راکړے سرے لبِ مرهم
وینے ے د زړهٔ دغریب په جوش سرٔ غولیٔ وهی
راشی دچشمانو په لار اب شی څاڅی نم
(خیژ څی) ے لوگے د هسویلو دخولے په زور سرهٔ
بل چه اُور دعشق ے په مجمر کښے دشکم
بند په بند بسته کرم عشق ستادلاسو پښو نه زهٔ
طوق ے دمړیٔ شوے ستا سیاه زلفے خم خم
ستا په ناوکو بنړو ضمیر ے شو سُورے سورے
راشه گوره زړهٔ ے د غلبیلَ نهٔ دے کم
کله به دِ مهر شفقت په ما وصلت اوکړے
کله به شو دواړه لاس تر غاړه فم په فم[۲]
رحم به دِ کله ستا په ما غوند ے سکین اوشی
کله به بیلتون د وصل لاندے کرم په دَم
سپے کا ځان د در د محمدا ے شاد محمدهٔ ته
رب چه دخپل دوست په روئ په تا اوکړی کرم

---

شین عنبرین دِ په جبین محبوبا خال وینم
دواړه زلفان دِ بنامارانِ په سینه تال وینم

---

۱. (خیژی) ے لوگے .... الخ (؟)      ۲. خولهٔ په خولهٔ

خوله د صدف لب د مرجان گوهر دندان لړے ته
حسن د دیر دے په دنیا کښے ورک د سیال وینم
تور د اوربل لکه بخمل په وروخو خور دیلي
څے په مکیز غوځوے دل په سر د شال وینم
ستا په دیدن پسے کومه ځانګندن د غمه
بیلتون محصل دے په ما سم ګران د وصال وینم
دنګه مرئ د بښاپیرئ لکه بلورین بریښي
لب د ثمر خوله د چینه آب زلال وینم
دواړه کمان د ابرو کړه خداے د غرق په ما
د بڼو تیر ته د ضمیر په مثال ډال وینم
زه شاد محمد زخمي قلوب[2] په غم کښے ډوب ترسره
ستا د بیلتون په غوبل ځان تمام پیمال وینم

---

چه مے اووت د ضمیر ه سیخ د غم
خوب ژوندون شو را ته ځکه تریخ د غم
هر ساعت زما د غم سره بازی ده
عمر تل مے تېر[1] اوده او ویخ د غم
ولے زه به تل د غمه زیر بار نه یم
چه افسر مے دے په سر مریخ د غم
بے د وصل د مرهم و به دوغ نه شم
چه دشل زما د زړه وکیخ د غم

---

[1] پاکے دړے اوخوږے اوبه [2] قلوب د قلب جمع ده په معنی د زړه - دلته د واحد په طور راغلے دے - د پښتو په شعر ونو کښے داسے مثالونه ډیر دی -

که وصال دِ شو زما سره مدګړے
بړے به او با سم بیلتون نه ریخ دغم
شاد محمد وائی په خوله کښے مے شی زهر
که هر څو خورمه .بیتا بطیخ دغم

---

زه ګنهګار یمه دا ستا چه ئے قهار هم رحیم
رحم دِ غوارم په روئ دخپل رسول کریم
دا هر اشیا به شی فنا ورک به ئے نام نشان شی
یو به شی پاتے پاک الله چه ئے نامه ده قدیم
د مومنانو ځائے جنت دے غنی رب وئیلی
دکافرانو ځائے دوزخ جهنم سقر او جحیم
ته ئے توان راکړه قوت رب دخپله فضله
راته کړے لاندے نفس شیطان چه مے دځان دغلیم
کبر هوا نه ده پکار چه څوک بنده ګنړ دځان
چه شیطان اوکړه ځکه کړۀ الله د در رجیم
د صابرانو مرتبه چا سره سمه نه ده
دا هر صابر دے درب دوست چه هم په خوئی دے حلیم
بے وسیلے چرے څوک ځائے ته رسید لے نه دی
ته شاد محمده لمن ټینګه کړه په صدق دمیم

---

مه رې غږ . دست . ته خربوزه . خټکے ۳ دا د دوزخ نومونه دی ۴ دښمن ۵ مردود شړونے . شړنے شوے (دخدائے له درګاهه) رټلے شوے . رد کړے شوے . ۶ دمیم نه مراد دلته محمد صلی الله علیه وسلم دے .

سونګون لکه کباب د عشق په نار یم
په امید د وصالت سینه افګار یم
زندګي مې ده د مرګ په سیلاب مخکښې
چه په زړه پرهر د عشق په ذوالفقار یم
درون سوې ظاهر سور تازه وي
هسې زهٔ لکه لاله درون داغدار یم
جُدا ځان له مې سرور د آشنا خیال دې
د مجنون پشان د خلقو نه کنار یم
یو ساعت مې قرارې په یو ځائې نهٔ شي
د آسیا پشان له حده بنا قرار یم
د ناصح په دم د منع نهٔ جوړیږم
چه خوړې په زړهٔ ستا د عشق بنامار یم
څه طبیبه ته زما د رنځه واوره
نهٔ رغیږم زهٔ د عشق په رنځ بیمار یم
عبث څله بدنامي د ځان په ما کړې
زهٔ د عشق په تبه پروت د ژوند بیزار یم
د دیدار په تش پیغام باندې رغیږم
ځکه تل په منتونو د دیدار یم
بیلتانهٔ مې رخت د صبر واړه لوټ کړو
امیدوار ځکه د وصل د خپل یار یم
ستا د مینې داغ زما د زړهٔ په سر دې
شاد محمد واقف د نورو توبه ګار یم

ــ چرنده

جوش د زړهٔ ے لا زیاتیږی نهٔ شو کم
دب ے طوق کړ د مرئ د آشنا غم

په نصیب ے غم په برخه د ازل دے
نورے نورے غم په ما وی دم په دم

په تدبیر سره تقدیر نهٔ راځی بیرته
که زرهٔ اوکړم تل تدبیره د صنم

کناره زما سرود د آشنا خیال دے
جدا ځان له د یار خیال کښے یم خورم

بے له تا ے سود زړه د ضمیر نهٔ شی
کهٔ زهٔ اووینم په سترګو دیر عالم

دغم زهر ے په تول صورت خوارهٔ شوهٔ
بیلتون زړهٔ ے تکوی سکه لرم

د زړهٔ وینه په فراق زما جدا شی
تل د سترګو نه ے څاڅی د زړهٔ زیم

(غم ے وازده) د صورت داړه اوبهٔ کړه
لکه اوڅاڅی په اور د کباب نم

بے وصال بل علاج د عاشق نشته
که هزار علاج ے نور کوی هر دم

دعاشق مثال د مری دے باور کړه
مړے کله صحت موی په مرهم

---

له زړهٔ

له (غم ے وازده) د صورت ..... الخ (؟)

وصالت ئے معجزه د مسیحا دے
پوے ژوندہ د عشق مردہ شی په قسم
شاد محمده په غوږ کوږ په ژبه گونگ شه
که کانړی کښے شولے تیل ته شړشم

---

په خط و نم د صنم توره اوربل وینم
دواړه زلفان د جانان الوول وینم
کوم شوره تانسکوره کړم په اوره صنم
خبر په لرمون د بیلتون دلاسه شل وینم
غوځ ے ضمیر کوم ویږه هر زمان د ځان
چه یاره کناره وی زما دا اجل وینم
وهم نعری په ارئ ے شوسر د زړهٔ
بیلتون زحمت هر ساعت د ځان مل وینم
شین عنبرین په جبین وهی خال لیلی
لبان اوری بناپیری ستا عسل وینم
نشته هوس د جوسر پشان شور کوم
راشه دلبر زړهٔ په سر غم نهل وینم
زهٔ شاد محمد یم نکوره په ضروره یمه
وصال کړم هیر په غم دیرتن غوبل وینم

---

ئه په دے غزل کښے ئے یو شان هم قافیه الفاظ
راوستی دی ۔

زړۀ مې قلم دې صنم پروت بیمار یم
راکړه مرهم دِ دغم امیدوار یم
مرګ ته قریب زۀ غریب ستا هجران کړم
رقیب غماز کړم تر اَنږ دِل افګار یم
لکه مجنون سرنګون ځان له ناست جدا
غم مې دې مل خون په شل دنګار یم
مخ دِ چراغ په زړۀ داغ لرم ستا د عشق
نۀ کوم څنګ زۀ پتنګ خوښ په نار یم
ګوهر دندان لب مرجان مخ ګلاب لرې
ابرو کمان تیر مژګان زۀ پرې ښکار یم
ستا په جاګیر زۀ فقیر مدام خیر غواړم
دا مې مطلب راکړه لب انتظار یم
زۀ شاد محمد په احد غواړم ستا وصال
نۀ دِ خلاف په زړۀ صاف دِ زۀ یار یم

---

د دنیا طلب کوې صبا مابنام
د الله په کار کښې نۀ کړې یو ګام
ورځ او شپه حرام کوې د زړۀ په مینه
ما توې پېسې پېسې قلعه او بام
شنه عمامې په لاس پګړۍ په سر کړې
هر سړی ته غوروې د تهګۍ دام

---

ځ په دې غزل کښې هم د مسجع نه کار اخستې دې یعنې هم قافیه الفاظ راوستی دی ۔ ته خوله ۔

په حاصل د دُنیا اصل بدل کړے
گاه شے میاں ځله ملا کله امام
په دنیا پسے حیا شرم کړے لرے
لا به ځان کړے بے غیرته بد بدنام
که دُنیا د دسته په کُفر حاصلیږی
صِغه د رنگ دځانه لرے کړے اسلام
د حرصه دِ څومن د سپے په سَر کړه
که بد واتی په تا باندے خلق تمام
بینا ځان دِ نابینا کړله حرمه
چه بدل دِ په کندوال کړمسین جام
د بدیٔ طلب کوے د نیکئ تښتے
سر د ننه په کړیوان کړه شه اعلام[۱]
د کم عقل پښان لسږ په ډیرو اخلے
بد له وے به یو ساعت په شامدام
رچه[۲] حرص) کړے کوږ وکړ پاک له غیرته
هوښیار ځان به کړے دنیا ته عقل خام
که څوک تا منع کوی دغیر و چارو
په ذره نهٔ منے هرگز د دویٔ کلام
شاد محمد ه توبه کارشه له کُل غیرو
د خاوند حکم منه سکه غلام

---

[۱] خبردار [۲] (چه حرص) کړے ... الخ (؟)

نن زما په زړهٔ راځی لړے دغم
درنګ ساعت له مے اوځی له تنه دم
روح او یارسره په تلو کښے دواړه یو دی
یو ذرّه نشته په دا کښے زیات وکم
روح وتل زما په سرسترګو قبول دی
جدائی کنړم مشکله د صنم
د بیلتون جلاد زخمی د زړهٔ په سرکړم
یو دِ غم را باندے زور شهٔ بل الم
د وصال طبیب را اولیږه محبوبے
چه مے کیږ دی په زخمی زړګی مرهم
د افسوس په اور مے زړهٔ لکه کباب شو
ځکه دروی مے د سترګو د زړهٔ زیم
د دے هسے زندګئ نه په مرګ خوښ یم
چه بیلتون کړمه په زړهٔ قلم قلم
وفائی د دلبرانو عادت نهٔ ده
ځکه ورځ ده په ماشپه تیارهٔ تورتم
په رسئ د تورو زلفو مے پانسی کړه
په مړئ کښے مے کړه طوق زلفے خم خم
شاد محمد به په ژوند وصال حساب شی
که پرے اوکړے د وصال چرے کرم

---

یک تنها یوائے ځان لره بیل خوښ یم
د دورنګو خلقو بت لکه غل خوښ یم

(ربه[1] دزیانه) زړه سود پکښې عدم وی

په زړ وار له هسې مل نه بې مړ خوښ یم

چه سر وسیلی[2] شی ګڼې په لټ د هجر

اسوده په خوړ دوآب نا تل خوښ یم

که په حق دګیدړے شپه ورځ ګیدړی ګرځی

اوږدے پروت نکه سزرے په بورجل خوښ یم

ډېر پرے ګرځی په طلب ګېنې دحرامو

له دے هسې پښتونه ناست نکه شل خوښ یم

په فریب ټګی د ړوغوچه چلیږی

هسې شان زبان دراز ونه لا خوښ یم

زیر سایه چه ترے راکاږی پانړے څانګے

هسې ونے طراوت نه په جل خوښ یم

چه عمل د خودغرضو په زبان کړی

که دا څوک کېنږی اتکل بے اتکل خوښ یم

په بدئ ګڼې چه دچل عمر ګزران کړے

هسې عمر نه دمرګ په بدل خوښ یم

د بدئ که دوست زمانه کوی طمعه

زهٔ له دوستله نه بے دوسته اول خوښ یم

دنصیبه سره جنګ دبنده نهٔ شی

په نصیب زهٔ شاد **محمد** د ازل خوښ یم

---

[1] (ربه دزیانه) زړه ..... الخ (؟)

[2] دَل - مبتلے .

له علاج ے نا علاجه شوحکیم
چه بیلتون کړمه دژوند سره غلیم[1]
په مابین کښې دژوندهٔ او د مړده یم
کله مړشم کله شم په تن سلیم
معشوقې د عاشقانو ساه او روح دے
وصالت ئے دے فردوس بیلتون جحیم[2]
په بیلتون کښې هم عاشق د مړو خراب وی
وصالت کښې تازه ګل وی په نسیم
په وعده چه وفا اوکړے تاله ښائی
تل وفا کوی وعده باندے کریم
دوی کبر په عاشق باندے حرام دے
په غروی کبر ابلیس شوه لو رجیم[3]
بے صبری کبر غرور د عشق زوال دے
عاشق هغه دے چه وی په خوئی حلیم
د الزام د عاشقئ چه څوک ویریږی
عاشق نهٔ وی هسے وی په منځ کښې نیم
د امیده د وصلت ناامیده مهٔ شه
د وصال امید کوه د رب رحیم
ناامیده د کریم د فضله نهٔ شے
شاد محمده وسیله چه لرے میم[4]

---

[1] دښمن [2] دوزخ [3] مردود۔ شړونے
[4] د میم نه مراد مُحَمَّد صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّم دے۔

حیرانی دہ چہ یار نہ وینمہ پا یم
یارہ مے روح دے چہ روح نہ وی دکور بنا یم
عشق خوب دے دخپل دین او د مذھب
معشوقے تہ پیر عاشق او مرید وایم
مریدی پیری پہ وشتہ ہوقد نہ شی
روح کالبد یک دل کہ نہ کڑم خطا یم
معشوقہ عاشق یو تن دے پہ باطن کینے
څہ کہ زہ پہ ظاھر تن دیار جدا یم
کہ ھر څو جور ستم دیار ہ مومم
پہ تصدیق دزړہ اقرارئے پہ وفا یم
کہ مے تیک وھے پہ ھراندام میخونہ
مطلب داچہ تہ زمائے او زہ ستا یم
آخر مھر بہ د راشی پہ ما باندے
چہ زغمونکے د دجور دجفا یم
مرے کلہ دے پہ تورو چا وھلے
کہ پہ ما باندے مے ګورے آئی د دایم
چہ بر کبنی د کړہ کمان ددواړو ورو ځو
پرے د زہ شاد محمد ان ویشتے رسا یم

---

الھی پہ ګناہ تور سکہ مداد یم .
شکر داچہ رب ستا پہ فضل شاد یم

---

ئہ سیاھی

چه په فوق د الف د بندګئ شو
دا مې بخت دے چه د میم[1] په امتیاد یم

اول سوال مې د ایمان او پس د خیر دے
هر ساعت په شریعت کړدن نهاد یم

زړۀ مې صاف لرے د کل وارو غمونو
دنیوی د دنیا غم نه په فریاد یم

بې لتانه مې بل ځائے د قبول نشته
بنهٔ محکوم[2] په دے د زړۀ په اعتقاد یم

په حیات[3] مرد ایمان او د موړ خوښ کړه
هم په سوال د ژوند د مور د نیک اولاد یم

حمد صلواة د برکت هم د صدقه
چه د بنده د رسیٔ[4] توری آزاد یم

زړۀ مې سپین دے د تور داغ نه تر بلوره
دوست د سپین یم سخت له توره په عناد یم

کله مې غل وس په ورانی د وراسنځ اوکړی
وران به نهٔ کړی چه په پوخ صدق (استاد یم)[5]

په نرسی لکه او به هسے بهیږم
په سختیٔ کښے یو په سل سخت (تر فولاد یم)

---

[1] د میم نه مراد محمد صلی اللہ علیہ وسلم دے [2] په اصل کښے همدا سے یک دے خو بناٸ چه "محکم" دی او مصرع دا رنګے وی . "بنهٔ محکم مې دے د زړۀ پرے اعتقاد" [3] د دے شعر نه پس شپږ شعره نه چاپه بدل او عام خط کښے ورزیات کړی دی . [4] غالباً چه رسیٔ وی . [5] اِستادیم

چه دُنیا له بقا نشته دے فنا ده
ځکه زهٔ **شاد محمد** سور په اس د باد یم

---

چه[١] د عقل څوک په لارے بږدی قدم
د وفا خصلت په سرک باندے سم
بهٔ مشهور به په عالم کښے وفادار وی
ترینه دور به وی د هر چارے غم
که یے یار که دوست آشنا یا یے رفیق دی
په سدارے دارونه تر ساقی خورم
وفادهٔ د عقل جز د دُردانه ده
نه عاقل به وفادار وی په قدم
بے عقلان د وفائی نه خبر نهٔ دی
چه وفا یې د مار دی که لړم
په تشخیص د وفائی کولے نهٔ شی
څهٔ به پیژنی وفاده تریاکرم
هر بے عقله د وحشی سره یکسان دی
د زرے قدرے نه یو دے نهٔ بل کم
د کم عقل دوست دشمن عاقل بهتر وی
دوست کم عقل د خپل دوست اوچوی دم
د عاشق زړهٔ په وصال د یار تازه وی
گل بنائست طراوت مومی په شبنم

---

[١] دا ټول غزل په بیل خط درزیات شوے دے.

شاد محمد دې بس لره صبر په نصیب کړه
لا بهتر شی چه سر غوڅ شی د قلم

---

ګنده او کرم بیا د مکر توبه ګار شم
د رنګ لا نهٔ وی بل ګناه ته زر تیار شم
هر ساعت ګناه کوم د زړهٔ په مینه
شپه و روځ په ګناهونو خوش بسیار شم
په نیکئ کښے د نیکانو سره جنګ کړم
په بدئ کښے د بدانو سره یار شم
په نیکئ کښے د کنګل د داور ویخ یم
په بدئ کښے اوچ لاوندهٔ سیزم انګار شم
په نیکئ کښے مے طاقت او قوت نهٔ وی
په بدئ کښے طاقت دار اسفندیار شم
په نیکئ کښے مے لاس مات او پښے مے شلے
په بدئ کښے زهٔ د باد په اس سوار شم
په نیکئ کښے مے رنګ زیړ لکه رنځور یم
په بدئ کښے تازه تر ګل د بهار شم
په بدئ کښے د فولاد تر آهن سخت یم
په نیکئ کښے سست اندامه تر اوم تار شم

---

له د ایران دیو پهلوان شهزاده نوم دے . د ګشتاسپ بادشاه زوے
وو د پلار په حکم ئے همیشه میدانونه وهلی وو - آخر د رستم د لاسه اوژ شو -

په نیکئ کښے په سینه باندے خوښ م
په بدئ کښے دګولئ نه تېز رفتار شم
په نیکئ کښے ځان په سوره ښنبا سم
په بدئ کښے لکه نوږ هسے اظهار شم
په نیکئ کښے ے نامه او ناموس نهٔ شي
په بدئ کښے به بهادر او ډېر تورمار شم
پښے ستر ګے به په لار ځم ویره ے نهٔ شي
چه آخر به زهٔ کومې وته ګذار شم
چه په جیب کښے ے ټکه او پیسه نهٔ وی
لیونے یم چه روان په لویه لار شم
چه اوس نهٔ لرم خبر دخپله ځانه
عاقبت به په آخر کښے خبردار شم
هر سړے به د عمله پوښتېدے شي
چه اول زهٔ شاد محمد خپل اقرار شم

---

(زهٔ ډیار) په مینه مست لکه اورنګ یم
چه هر وقت دبیلتانه سره په جنګ یم
بیلتانهٔ دی په ما کړی هسے چار ے
چه دلاسه ئے په زړهٔ باندے چورنګ یم
لنون نور لیدلے نهٔ دے ے له مانه
لکه زهٔ ئے رسیدے په قلنګ یم

---

۱. زهٔ دیار) په مینه ... الخ

ټول وجود مې سرته پايه سرۀ لنبه شو
سوې سکوړ په اوړ نسکوړ لکه پتنګ يم
عاشقي ده ډېره ګرانه هم اسانه
ولې زۀ يوائې خولې کښې د نهنګ يم
ستا رحمت ماله رحمت دې امې دلبره
په قوت د عاشقۍ دِ سخت ترسنګ يم
عاشقان دي صابران په صبر پائي
بې صبره بله لاړ کښې په پښو لنګ يم
ستا د مينې په نشه چه نشه ګرځم
حاجتمند کله نشې ته ځي د بنګ يم
هر درې نۀ يم چه هر دړ کښې ولاړ يم
زۀ غريب شاد محمد ستا د در ملنګ يم

---

زمانه شوه پالوونکې د کمين
په خرۀ پروت وي دسروزرو ساز و زين
اس د کټې لاندې خوږ پرهر پرهر شو
سرو مچو د توړو واچوه کبين
زنانه شوې ناريته ناريته ښځې
ښځو کېښوۀ په سرونو پټکي سپين
دَړو خوشې انګوړو دي نيولي
بکيانړو انګوړ اونيول شيرين
باز بحرئ چرغ په مثل د قارغه شول
تپه سان اخلي اوس مات د شاهين

ع اصل کښې هم داسې دې
بناغ چه (زۀ) وي

د طوطي په مرتبه قارغان حساب شو
د قارغه په مرتبه شهٔ طوطي شين
(دغه شاړه) شړئ شوه د شاله غوړه[۱]
په شړئ باندے بدل شهٔ شال مرهین
دګنی قدر قیمت د نله سپک شو
ګندہ نل شو د ګنی نه بهترین
مشک عنبر عطر نافه شوله بدبویه
غوشایه سوټي خشنره شوله مشکین
شاه محمد د زمانے له شکایت
په زړهٔ غوځ پرهر پرهر دے په سنګین

---

قرار ے په یوځائے نهٔ شي د آسمان
هسے زهٔ دے زمانے کړم سرګردان
حریفان دلیونو په نامه یاد کړي
لیونی کړي په هرکار کښے حریفان
په خوئ دروند په جامه دروند سپکو سپکوی
سپک لندړے چتے ملے به ګنړی خوان
تول په عکس سره کار شو اړولی
ښهٔ په بدو بد په ښو شوه ښهٔ نقصان
غم ښادی کړي ښادی غم کړي په ساعت کښے
ژړا زر کړي په خندا خندا ګریان

---

۱ (دغه شاړه) شړئ شوه ... الخ

تور په سپین سره حساب شو سپین په تورو
شال شړی شوه شړی شال شهٔ دیر ارمان
باز بحری چرغ نګړ لکه تپوس شو
مینګبرک غراب شینغ شوه مسے شان
خر داس په مرتبه شو اس دخر شو
اس دخر بخورد خوری په هر زمان
اور اوبهٔ شهٔ اوبهٔ اور شهٔ سرے سیزی
واوره یخه شوه توده لکه سیران
غل شو سعد سعد غل غوند ے سزا خوری
صاف تکبن شو تکبن صاف شو پلید ځان
نهٔ پوهیږم دا سبب دعکس څهٔ دے
یقین داچه حاکمان شو ظالمان
شاد محمد ده حق په حق باطل باطل کره
بے ریا اوسه په مثل د مسین ان

---

اول زهٔ کوم صفت د پاک سبحان
ورپسے د محمدؐ آخر زمان
مشر یار دے صدیقؓ کل په تحقیق دے
دویم یار دے عمرؓ دریم عثمانؓ

---

ے ښکاری مارغان دی ے تپوس . تیو ورته هم
وائی مغه مرغه مینګان نیسی - ے اور

خلورم یار ئے علیؓ پہ علم پور دے
اصحاب ئے دی کُل ستوری د آسمان
چہ څوک سم درومی دخدائے رسول پہ لارے
جنتونو کښے بہ شی د دوی مکان
چہ څوک سَمَہ لار پریږدی پہ کږه درومی
پہ کږه لارے بہ وه موسی تاوان
د لیوکانو د غلو ویره پکښے شتہ دے
هسے نہ چہ درنہ لوټ کاندی ایمان
نابینا هم دهسا پہ دلیل سمځی
نۂ پہ دوغوسترګو ځی پہ بیابان
کوڼ چہ ناوری خبره آخر کوڼ وی
روغ پہ تاوه وے نۂ اوری دا بیان
پہ سفر باندے چہ ځے توښہ د واخلہ
چہ بیا اونۂ کړے پہ توښے پسے ارمان
چہ صبالہ پہ توښے پسے ارمان کړے
دا ساعت ئے توښہ اوکوره دځان
هر غلام نوکر پہ حکم دخاوند ځی
تۂ دحکمہ دخاوند ئے نافرمان
چہ اسید د ترقیٔ کړے د خاونده
پہ خدمت دخپل خاوند اوسہ شادان
پہ خدمت کښے دخاوند پہ ځان بیمار کړے
پہ خپل کار کښے دهاتی ئے پهلوان

شاد محمد ته آبادي د نوي کور کړه
همیشه به دِ کور نهٔ وي په مردان

---

بے عقلي بے وفائي کښې مه يَو
زيات وکم نشته په دے کښے لکه جَو
هر بے عقله تل په خپله طبعه کار کړي
د ناصح پند نصيحت نهٔ وهي دو
که هر څو ورته په غوږو د پند دُر کړے
د احسان به ئے را نه وړے په دو
لا د لاسه به په قهر په غضب شي
ستا وهلو ته به ځان کاندي په سو
د بے عقل عاجزي بلا آفت دے
مينږي مږ کړي ځان په عجز د کيشتو
بے عقلان په لوږ د جهل له پوواره
وړے خپلے کړي د خپله لاسه لو
د بے عقل څوک ملګري په لار مهٔ شه
د ابرو حيا د مل اوچوي نو
شاد محمدهٔ دا مرګ دے که ئے نهٔ دے
چه لمانه پښتوے مخ په.... پلو

---

چه څوک زړهٔ ورکړي په لاس کښے د خوبانو
بيا دِ نهٔ کوي علاج په طبيبانو

ـــــــــــــــــــــــــــــ

له شمشتئ

دهغے علاج په مثل شي د لاړو
لاړے نهٔ راځي چه توشي دلبانو
لکه طفل چه لاس اچوی آسمان ته
ټوپ په خیال کړی دپیوو ستورو تابانو
یا چه خوګ ذاتی دشمن په دوستی بولی
لکه غواړی وفائی د رقیبانو
حاصل دا چه تللے زړهٔ دے لکه مړے
په دُنیا شي مړے بند د محبانو
زهٔ د زړهٔ په نیت په تا باندے عاشق یم
اختیار ستا که مے سپارے په قصابانو
چه په عشق کښے بےادب شي ادب دور کړی
هغه کله منی پند د ادیبانو
چه دَ عشق آغمه نغمه د چا په زړهٔ شي
په سرود نهٔ شي سُود د مطربانو
شاد محمد د صادقانو سره یار دے
کناره دے د بے صدقو بے زُبانو

---

زما[1] په زړهٔ باندے راځي چپے د غم خارو
چه هر زمان کوے په ما جور وستم خارو

---

[1] په دے غزل کښے هم شاعر د مسجع نه کار اخستے دے۔ او هم قافیه ټکی ئے په مصرعو کښے استعمال کړی دی۔

لکه مجنون سر په زنګون یمه دخلقو جدا
دغم سرود د زړه په سود کوم هر دم خارو
تا په خنجر د عشق پرهر کړمه کړېږم مدام
په زړه ناسورے اوس ضرور کیږ ده مرهم خارو
دعشق په نار د زړه بیمار لکه کباب نیوے
سوے دوزخ زړه ےکړه یخ اوکړه کرم خارو
دواړه کمان دِ کړه جانان د ابرو غرق په ما
د بڼو تیر دِ په ضمیر شو زما[1] خارو
لکه پتنګ کوم غورزنګ ستا د رخسار په چراغ
عاشق په اور چه وی نسکور هم دے خوم خارو
زړه شاد محمد ستا دوصال کومه سوال درته
چه عمر خپل یو سره تل دواړه همدم خارو

---

بیلتانه د غم په اور کړم کباب دُو رُو
څکه تن نه ے اوځی آب تاب دُو رُو
خون د زړه ے دافسوس په جوش جدا شی
راځی ځی په لار دسترګو سیلاب دُو رُو
یا ے زړه بیلتون توته ذرے ذرے کړه
یا خزان رژوی ګل د ګلاب دُو رُو
صبر زغم زما دتنه اوړه شی
چه د مخه راته دور کړی نقاب دُو رُو
څرنګ زړه به ے آرام او خوشحالی کا
چه راځی دِ دک دغمه جواب دُو رُو

[1] زما (سم) خارو

د رقیب غماز د ظلمه ډیر وییرېږم
راکوی راله بې میڅه عتاب رُو رُو
(د بیلتون سیلئ) مې سترګو کښې خاک نولی
چه نظر کرم ستا د مخ په کتاب رُو رُو
چه نقاب د مخه لرې کړې دلبره
په آسمان کښې نور شی دور د افتاد رُو رُو
تهٔ چه سیل ته د بوستان د ګلو ورځې
ټول ګلونه د بوستان شی خراب رُو رُو
**شاه محمده** ورې رنګ د زیړنهٔ وی
چه رقیب غماز نه موے عذاب رُو رُو

---

زمانه مانه په دور په بل پیر شوه
چه خوږه ګوره په حلق کښې مې کنډیر شوه
عیب نقصان وینم زهٔ د خپلو سترګو
دنړا ورځ راته تیارهٔ د ګوراند هیر شوه
دوست مې ورک شو هر سړی مې ځان دشمن کړ
چه پیشو راته حساب په ځلئې د شیر شوه
د لړګو ټوپکې سم په ټوپک شمار شو
د توت لخته ایرانئ مصرئ شمشیر شوه
نارینه پاتې شو نوم نارینه ورک شو
زنانه د نارینه په ځلئ کښې شمیر شوه

---

ئه (د بیلتون) سیلئ مې ---- الخ (؟)

باز پتوس شو بجری چرغ شاهین قارغه شو
تری خواره دکته جره په سیس شوه
په طلب ددنیا خلق شو بے دینه
کلیمه تر ددنیا په حرص هیس شوه
بوے ددکه خدائے هغه وقت شاد محمد ره
چه فرقه د نفس شیطان دړنه چاپیر شوه

---

همیشه یم سرنګون د ډیره غمه
ځان له ناست یمه جدا دکل عالمه
نه مے خبنکل نه مے آرام نه خوردو خواب شته
یک تنها سرود د عشق کړم ستا صنمه
(خیالے) بل دنړه بهرد ے بے له عشقه
ستا د عشق په اور نسکوړ پروت یم بے دمه
ځکه سرے د بیلتون سختو ته ایښے
نا امید نه یم د وصله له کرمه
عاشقان د وصالت په نم تازه وی
ګل بناست طراوت مومی له شبنمه
کوتک ترخ کینے د توکل کچکول په لاس کښے
ستا د وصل کوم خیر دکوړو چیمه
چه وصال دا یحر کل شو بیلتون تل وی
نه خلاصیږم د بیلتون د توره تمه

---

ے (خیال)

د وصال پشان وصال په ما قیامت شو
نور څهٔ نهٔ وینم بې جوره بې سمته
غم د صنم شو را سره د تیوله عمره
معلومیږی بارے برخه ے د ده کمه
خود کرده گیلے عبث کوی د بله
چه په خپله لار کړه ځی پرین دی سمه
بیځائ دِ کړه پیشه دفا دِ دور کړه
د پرستم ے دِ کړه ملا د لاسه خمه
د رقیب غماز په مرگ کښے گناه نشته
دوا ړه کم نهٔ دی د ماره د لړمه
**شاد محمد** لکه د زړه اوچوی هم چپ کړه
ځان په هوش کړه څهٔ او نهٔ یاسے دفمه

---

چه دِ راغله د بیلتون په ما چپه
په دریاب کښے دِ د غم کړمه غوپه
هیڅ طعام زما د ستونی نهٔ ستیرږی
ستا غمونو د مرئ نه کړم خپه
د وصال په مجلس یو ور ځے بنادنهٔ شوم
د بیلتون اورم همیش غزل تپه
او ددیدے نهٔ شم په اوچه خورم درزونه
ستا ستم زما هر دم را کابری خپه

---

ئه د لام د حرف (ل) کوږ والی ته اشاره ده     ئه خوله

دغمونو نه ے تن چرے خلاص نۀ شو
هر ساعت راځي په ما دغم ځوپه
دوصال په کرم غم ے دکم نۀ کی
لا بیلتون ے په سر ددی دغم توپه
دخولے پوزے نه مے ځي دوینو دارے
بیمار پروت یم ستا دعشق په اسپه
عاشقان په ورځ خفه په شپه خوشحال وی
**شاد محمد** نه شۀ خوشحال په ورځ اوشپه

---

خود کرده عبث ګیلے کوی دبله
چه په ځان ناشونے اوکاندی په خپله
دنصیبه به ذره قدر زیات نۀ کړه
که دپاره هر خوا زغلے عبث زغله
ډیر حرص دخپل نصیبه سره جنګ دے
که په لاړ و آسمان وے خو هم وُله
په هر ځائے چه شکایت کړی دنصیبه
بے فائدے نولی په سر باندے خزله
هزارها شکر واجب په یو نفس دے
په آبد ست کښینه هم کرځه هم خمله
شکایت دخپل زحمت په هر ځائے مۀ کړه
څۀ پکار که بوتی بۀ کور لری مله
**شاد محمده** حق باطل په ریا نۀ کړی
بے ریا اوسه په مثل لکه ستله

دعاشق تور ه طالعه بخت خواره
چه د غیب نه جدا کړي یار له یاره
دافسوس رسئ پائئ دمرئ شي
ساه په پورته اسویلی کوي بې واره
بعضې وقت کوتاه دم شي ساه ئې لنډه
دکباب په دود ئې زړهٔ سوزي بې ناره
چه غوټئ دامید ګل شي دعاشقو
دبیلتون خزان ئې ذرکړي تار په تاره
په عاشقو دبیلتون قلنګ جاري دے
خزان اخلی خپل قلنګ دشین بهاره
دصادق عاشق مثال لکه بورا دے
بورا تل مزه چرچه اوړي له ګلزاره
معشوقه بویه صادقه هم عاقله
نه چه یو په دوه درے نهٔ وي خبرداره
چه کاذبه هم بے عقله معشوقه شي
تل عاشق به ئې خلاص نهٔ وي غم دباره
دعاشق دزړهٔ زګونه وي غوځ شوي
خولی مومي ددلبر له ښهٔ ګفتاره
دتوپک ګولئ په سل ځلے ده کمه
حذر بویه دعاشقو د ازاره
دزړهٔ وپے ئے دغم منګک کړي غوټے
خون ئے کم شو رنګ ئے زیړ سینه افګاره

نهٔ مے ځنګل خوارهٔ سارهٔ اسویلی زیات کرم
لیمه تر بدن بے خوبه نا قرارہ
د افسوس د اسویلو د کهرم بادہ
شونډے اوچے لرم سترګے پُرخمارہ
د وصال طبیبه راشه علاج اوکړه
د ب دیاره په ځنګ مهٔ ځهٔ د بیمارہ
د رنځور تکیه بے ربه وارہ دور شی
دلداری د طبیب غوره ده بسیارہ
شاه محمده رب رسول په تکیه اوسه
پوخ امید د شفاعت کړه دروئید ارہ

---

چے مے رنګ کړه په دادرنګ په حسن خیل دلبرہ
لکه قمر موندے اکثر په شپه کښے نور د نمرہ
وصال دِ نهٔ وینم په ویښه یا په خوب محبوبے
درد د هجران بیلتون د هر ساعت وی مل راسرہ
شوے ظالمه په مظلوم باندے کرم نهٔ کوے
رحم دِ کم دے ځکه سرے لښے مے ځی د سرہ
*ځګلول په لاس ستا د وصال له دره خیر کومه
نامناسب دی چه بے خیره مے شړے له درہ
که په وعده د وصالت دِ مشرف کړمه زهٔ
هغه ساعت به وی بهتر راته د لوے اخترہ

---

* ځکچکول په لاس ستا ... ... (؟)

ستا وصالت که چرے او کاندی کرم رب ندے
هله به خلاص شم د بیلتون ظالم د سختۀ شره
چه د نظر د فیض اثر دا باندے نشته صنم
ځکه وصل خورمه مدام زهٔ د رقیبه خره
ګیر هوا ابلیس بسته کړهٔ د لعنت په زنځیر
ګم عقل خو وی چه څوک (ځان) ګنړی د بل نه غوره
زهٔ شاد محمد په شفاعت د خپل حضرته غواړم
چه ګل ګناه ے رب په خپل فضل کړی در ګذره

---

راشے خبر دیار ګل د ځان په ویر یمه
نهٔ پیا ئمه نور په دنیا مرم غوښ په ضمیر یمه
غم دِ په ما ډیر دینه ، مرمه کم ے سیر دیته
و یشتے دے رساصنم زهٔ د عشق په تیر یمه
تا پسے فریاد کوم ، تل لکه فرهاد کوم
ګیر شیرینۍ ستا د اوږدو زلفو په زنځیر یمه
ستا مهر کرم نشته ، ځکه زما دم نشته
نهٔ راځې هوس چرے تول عمر زهیر یمه
غم کړمه پائمال صنم ، نهٔ وینم وصال صنم
هره ورځ زهٔ د بیلتانهٔ په بند اسیر یمه
نشته دے قرار زما ، عمر دے په دار زما
نهٔ یمه خبر د ځانه مسے هواګیر یمه
تیر یمه دسره زهٔ ، نهٔ دِ ځم د دره زهٔ
لار به نهٔ شم زهٔ شاد محمد ستا د در فقیر یمه

---

لہ (ځان) ګنړی ۔۔۔ الخ

داحمقو د صحبة له حذر بويه
دخوراک د مار لرمه خطر بويه
دموذري مار و لرم او احمق يو دے
مسلمان لره پرهيز د کافر بويه
عشق آسان دے دخوبانو مشکل نه دے
د رقيب هجران بيلتون نه خبر بويه
مرچکي لچه کم ترنج وي پوخ شي زيات شي
لکه تخم هسے رنګ ئے ثمر بويه
چه ئے تخم وي د ترنج ضرور به ترنج وي
تخم خوږ به نشي ترخ خوږ شکر بويه
د نيکانو نه نيکي د بدو بد وي
د ښو ښهٔ د بد موذره ضرر بويه
بے رحمي ظلم دے کار د بے عقلانو
هر عاقل له رحم ترس برابر بويه
بے رحمي ناترسي ظلم کړي بے عقل
د هوشيارو رحم ترس سراسر بويه
وفا باز کړي جفا چرغ سياه چشم
باز په تل چرغ نځو نه کمتر بويه
جفا عيب دے د همه عيبونو مشر
مال معيوب سره چاړهٔ او خنجر بويه

---

لـه دموذري مار ولرم ..... الخ (۲) که دا لفظ موذريا موذروي نو د "مضر" بدل شکل دے په معنی د ضرر رسوونکے -

وفائیٔ رحم هنر دے یقین او کړه
بے هنره یو په شال زیات د خر بویه
ترحم وفا خصلت دے د هوشیارو
یار آشنا لره دعقل گوهر بویه
احمق ډوب شی ځان چه کړ کری بے گودره
باید داچه وی گودر پرے گذر بویه
هر بے عقل لوینړی کند ے ته پاس گوری
شاد محمد ه ورانده ورو ستو نظر بویه

---

په جبین د عجب خوند کوی خالونه
دوا ړه وروځے دلیند ے بانړه شلونه
دجمال ثانی دِ نشته په جهان کښے
ته چه راشے شرمنده شی گل گلونه
(ښنکه) خوله دِ د گلاب د گل غنچه ده
سپین دندان دِ مرواری بے لعلونه
ستا دقد ه صنوبر سرو شر مینړی
په صدر دِ دواړه زلفے خوری تالونه
(نوئ) ملا دِ د لاله د گل نازکه
تار په تار دِ پرے انبار کوځنی ولونه
چه دِ اونه وینم اور را باند ے بل وی
بے وصاله ورځ په ما وی زر کلونه

---

۱ (ښنکه) خوله ... الخ (؟)  ۲ (نوئ) ملا د ... الخ (؟)

که مے سرستا په دیدن شی له تن لرے
لیس له مرګ به په مابل کړے مشعلونه
که وجود مے شی قطرے ډیر به خوشحال یم
عاشقان په تا بانڅلی سرو مالونه
هر بوړا چه ګل له ځی ویره ئے نهٔ شی
که وزرئے پاتے کیږی به شپلو سنه
ستا په عشق کښے سرنګون لکه مجنون یم
بے لتا مے پکار نهٔ دی محالونه
د وصال همسا په لاس کښے ماله راکړه
په دیدن مے د بیلتون مات کړه پالونه
د هجران ارمان بلبل دے په زړهٔ دړے
دمړ چا پاتے ددے دنیا سیلونه
شاد محمده یار کړه تینګ ویره د نشته
که په تا غمازیان ډیر اوکړی چلونه

---

رب دِ په مرض د عاشقئ څوک بیمار نهٔ که
ګرځی به بےکوره یو ساعت به قرار نهٔ که
چه په عشق څوک زنځورشی' د دلال منت ضرورشی
معشوقه به خاوړے واخلی چه منت د دیبار نهٔ که
منم عشق د تنګ' یو یوتے نهٔ کوی ځنګ
ځان په بلو لښو سیزی هیڅ پروا د انکار نهٔ که
عقل هوش فکر مے کم دے' په زړهٔ بار د دیار غم دے
په ګریوان مے اوښے دروی دواړه سترګے مے وار نهٔ که

چه خوک ځان ګنړی عاشق چه په مینه وی صادق
خپل صنم چه ترې سر غواړي عاشق بالکل انکار نهٔ که
د مجنون پشان خراب یم سوے زړهٔ سینه کباب یم
له دے ژوندهٔ لاس په غوړیم چه نظر په ما یار نهٔ که
که پرے اوکړے ظلم زور یار د وما نړه په کور
شاد محمد به ستا ... ره ... طرحته رفتار نهٔ که

---

هسے مست یه ستا ... عشق په نشه
چه تمام ... سم ... ے کاندی تماشه
ستا بیلتون دے مار لرم په ما لګیا دے
هر ساعت مے تیک وهی زړهٔ په لشه
سپین دندان د مرواری لب عسل دی
سره عذار د ړدی د سرے غلے رشه
ستا کړے وروځے صنم هسے زینت کا
لکه خوند کا په کتاب باندے حاشیه
ستا په جوړ په ستم به وے ژاړم
چه دے تل د معشوقو جوړ پیشه
که د خیبر د سپینے خولے راته پیشکش کړ
په صفت به د ګویان یم همیشه
زړهٔ زما د په منګلو باندے یوړ
لکه خاره په منګل چه وړی باشه
د وصال مرهم مے کیږده په جګر ته
د بیلتون په چاړهٔ زړهٔ مے مهٔ تراشه

درحمت په نظر ته مے ساته لاندے
**شاد محمد دے ستا د در خس وخاشه**

---

هسے تلے بخت مے بیا په دوباره شه
چه ورک شوے یار مے بیا راته ښکاره شه
خوشحالی شوه له په ما له حده پورته
همه غم مے د زړهٔ واړه اواره شه
بے دیدنه دخپل یار په مروحساب یم
اوس مے مروجود دړوغو په شماره شه
په وصال دِ نکه ګل هسے تازه یم
په بیلتون کښے مے دا زړهٔ پاره پاره شه
ستا دیدن زما ژوند دے ناز پرورے
بے وصاله مے د زړهٔ سر په اره شه
مخ دِ شمع ده بلیږی په تور شب کښے
زړهٔ زما پرے پتنګ هسے ایرهٔ شه
تورے ویښے غورځوم دعشق له درده
د زړهٔ سر مے وریت کباب نکه قطره شه
د دیدن دِ ارزومند سکه مجنون یم
بے له یاره خپل مکان راته میره شه
ستا له مینے به وانهٔ ورم په آسانه
که مے ځان خپل اوبزان په غرغرهٔ شه
دبیلتون ښنکر په ما تے رانه لا رشو
اوس وصال زما په ځان باندے دیره شه

تسلّی ے پہ دے دا ږو خلقو نهٔ شی
**شاد محمد** چه ستا د مخ په ننداره شهٔ

---

شته یارئ کښے د احمقو ستا ل آفته
سر دیار د بالائی منږی په بشکته
یو ساعت به ترینه یار خوشحاله نهٔ وی
شپو روژ به لا همیشه خورے د غم لته
دکم عقل وفا عین جفا شماره
د عاقل جفا وفا نه ده اوچته
چه په بنهٔ بد ده پوهیږی احمق نهٔ دے
احمق نهٔ پیژنی وږ او ملامته
که د شل کاله خدمت د احمق اوکړهٔ
په دریاب به د لاهورکړی د ساعته
د سړی احسان خدمت ورته برباد وے
هئے افسوس د هسے کش د بد خصلته
بیلتون غلوی جدائی ته د عاشقو
د خزان زرهٔ چوی د باغ د طراوته
د عاقل آشنا نه سر ومال قربان شه
مخزنٔ ورک شه یار آشنا چه شی بے پته
هر ساعت جفا سختی څهٔ پکار نهٔ ده
مناسب کله سختی کله راحته
**شاد محمد** وائی خوشحال به شم که نهٔ شم
که کړیږم به تر ورځے د قیامته

---

ء مخزنٔ ورک الخ

ستا غمونه ے شو بار په سر د زړهٔ
په ستم ے ډکړهٔ تن لکه اوړهٔ
تهٔ بے غمه بے غمی هوس خندا کړے
زهٔ ژړا فریاد آمونه کړم سارهٔ
یک تنها لکه مجنون په غرونو ګرځم
نهٔ ے خوب شته نهٔ ے ځنګل شته نهٔ خوارهٔ
د وصال طبیب زما ننه ځی په دَدَه
بیلتانهٔ ے زړهٔ پرهر کړهٔ په چارهٔ
د خزے ځائے ویران دے دغم زهٔ یم
په ما جمع دیر غمونه لوے واړهٔ
تهٔ چه ماته خندوے دغضب توره
لکه ځوک چه زده کوی ګذار په مړهٔ
دذاتی د وصالت چه پکښے نهٔ وی
خهٔ پکار دے بے میوے صورت د بړهٔ
چه ګړ ورے د مزری نه برے یوسی
څهٔ له حیف به ځوک کوی د رب په کړهٔ
په خپل ځان به ستاله عشقه لاس واخلم
که دِتن زما په اوَر کښے ولاړهٔ
معشوقو ته هغه وړهٔ شی شاد محمد ده
چه ځانونه سلامت ګنړی هم پړهٔ

---

عبث خوله به دامید کړی درته وازه
د مینے لذت به نهٔ موے د پیازه

کہ دِ ړاشي پابوسي له دَرب پغاړه
د دوستئ طمع اونهٔ کړے د غمازه

عشق بنهٔ دے حقیقي که مجازي وي
حقیقت ته نږئ لاړ ده د مجازه

که لګړ چرغ بحري شاهین[۱] تېز پر دي
صدقه شه دیوے بنړے د بازه

بت به بت وي په جامه دسرو نهٔ شي
خر به بل نهٔ شي هر ګز د اس له سازه

بے غلی عنرینه ډک وي تهول د شره
بے عمره عقل دوړ وي له درازه[۲]

میانه قد زمونږ رسول[۲] آخر زمان صلی الله علیه وآله وسلم دے
اوسط بنهٔ وي کار بنهٔ نهٔ وي بے اندازه

بے فائدے خبرے لوئے عیب عظیم دے
څکه زرکه باز کړي مړه د لوئے اوازه

که بے قدرو له باز ورشي پَر ترے دور کړي
څه بے قدره وي خبر د باز له نازه[۳]

---

[۱] دا ښکاري مارغان دي [۲] یوے مشهورے مقولے ته اشاره ده
چه کُلّ شَبرٍ شریرٌ اِلّا عَلیٌ وَکُلّ طویلٌ احمقٌ اِلّا عمرٌ۔ خو دا
مقوله قطعاً غلطه ده څکه چه په سندرو او لوړو انسانانو کښے ډیر لوئے
لوئے بزرګان اونیک اوهوښیار خلق تېر شوي دي؛ [۳] دیوے بوډئ قصے
ته اشاره ده چه یو باز ئے لاس له ورغے نوهغے کم عقلے ترے وزر او
نوکونه پرے کړل ۔ چه دا ډیر لوئے شوي دي اوهغه شان باز ئے دکار اوویست.

که میخوره زانی بنگی چرسی یا غل وی
گنړم کم په مرتبه د قمار باز ه
**شاد محمده** غم کښے د زړهٔ خون خوړے
دروغجن فریبی ټگ ګرځی بشیرازه

---

نادیده چه دنیا دار شی مهٔ ئے وینه
چه هندو په دُنیا خوار شی مهٔ ئے وینه
که ئے زر منه غوړی دورځ خیږے
چه خوراک ئے اوچ جوار شی مهٔ ئے وینه
چه مدام راوړی په سر پنډ د کبلو
که ئے اس تچر بسیار شی مهٔ ئے وینه
زړه ئے نحه سوه اوسان که ئے چلیږی
چه په خپل لاس ئے مهار شی مهٔ ئے وینه
سرهٔ زر سپین که ئے بهیږی د کوځے نه
چه سائل ته بد اختیار شی مهٔ ئے وینه
چه سفر کښے پورے باسی ځان په نورو
چه د تهوک په انتظار شی مهٔ ئے وینه
که د ډیر عزیز تربور که ان فرزند وی
بد لمن او بد کردار شی مهٔ ئے وینه
چه نهٔ خوئ او نهٔ خصلت نهٔ دیندار وی
بوټ اوربوځے که ډیلار شی مهٔ ئے وینه

دکهٔ چاکو (چارهٔ په حق دګنډار نهٔ شي
چه نقطې ذوالفقار شي مه يې وينه
(په وعيد) چه يې وعده او دروغجن شي
که مرخو دِ مُمين يار شي مه يې وينه
که يې بنې جامې اغوستې وي زرينې
چه يې خپل تلې پيزار شي مهٔ يې وينه
که د خپله ځانه زيات وي درته زرهٔ کښې
چه روان په خطا لار شي مهٔ يې وينه
که يې رنګ قدوقامت ځوسه وي ښکلې
پوزه خوله کښې يې چه نسوار شي مهٔ يې وينه
چه ميلمه شري رتي د خپله ځايه
که امير نواب سردار شي مهٔ يې وينه
چه په اوري داوبو په ځاې شربت غبکي
چه نور په سر دستار شي مهٔ يې وينه
چه يو ځاې کښې دِ عزت او حرمت نهٔ وي
هغه ځاې که ان ګلزار شي مهٔ يې وينه
شادمحمده په غوږ داوره فکر اوکړه
چه خپل يار درته اغيار شي مهٔ يې وينه

---

رَبَه باغ دزړهٔ مې تل په طراوت کړه
هم ترې دُور خفقان خزان بلاآفت کړه

---

[۱] که چاکو [۲] (په وعيد) چه .... الخ (؟)

یو جُرعه د مئ و مستو ماله را کړه
مست له حده ے پخپل خوږ محبت کړه
د مجاز په نړئ لاړ به ځم تر کومه
اوس روان ے په لوے لاړ د حقیقت کړه
د خفقان حرص مرض ے په وجود دے
خدایه ماله دے مرضه په صحت کړه
امان را کړه هم د شره هم د کبره
هم غرور هوا له تنه ے رخصت کړه
غصّه قهر ے کړه بند په طوق د صبر
ژبه خوله ے بند د ځایه غیبت کړه
امر نهی پنځ بنا زما قبول دی
مستقیم ے تل په فرض واجب سنت کړه
آئین د خوشحالئ ے کړه زړه صاف
زنګ د غم حرص هوا تر ینه اوچت کړه
پښے او لاس ے غلط مهٔ کړے غنی خدایه
د بدئ د هر یو کار ے په نفرت کړه
را نه لرے خوئ او کار کړه د وُخوشو
برابر ے د سړو پکار خصلت کړه
د خپل دوست شاه لولاک د برکته
خوږ ایمان ے د خیانته امانت کړه
حیا شرم ے امان کړے په خپل فضل
هم په دے دنیا او هم په آخرت کړه

شاد محمد وائی مختور ے بندہ ستا یم
سرفراز ے دخپل دوست په شفاعت کړه

# نعتیه

دمکے دمدینے غوړه سردارہ
دعربو دعجمو شهر یارہ
چه په سم کښے دمیم فرق داحد دے
په همه صفت موصوف احمد نامدارہ
دالله دنوره پوره درب دوسته
دعاصی اُمت په غم باندے غمخوارہ
اولین هم آخرین محبوب دخدائے ے
په سبب ستا خدائی کړله اظهارہ
دومره رحم دپدر په پسر نه وی
لکه ته ئے په اُمت مئین دپلارہ
سرگردان لکه اسیا چه عرش عظیم وو
برقرار شو ستا دگرده دپیزارہ
چه د قرب دقاب قوسین ته ادنی بیامونه
اول سوال د د امت وو له غفارہ

---

ئه دقرآن پاک یو آیت ته اشاره ده - چه د معراج په شپه دوست دخدائے صلی الله علیه وسلم خدائے پاک ته دومره نزدے شوے وو چه ترمنځه ئے د دوؤ لیند و یا درے نه هم کمه فاصله وه -

تاج په سر چه دِ الله د لولاک کیښوۀ[1]
نوکری دِ سلطانانو کړه اختیاره
کُل شاهان دِ غلامان حلقه بگوش شوه
سائلان دِ خالی نهٔ ځی له درباره
دعرش[2] کرسی دِ دواړه لاندے ترقدم دی
دلبران دِ دوی کرم ته امید واره
شاه گدا امیر فقیر درته یو ښکاری
دادگستر غریب پرور ښه ئے روئیداره
دصدیق په صداقت عُمرؓ په عدل
په حیا ذوالنورین عثمانؓ بسیاره
دعلیؓ په ډیر ډیر قتل د کافرو
چه همه ئے وو لرزان د ذوالفقاره
هم په دوی د اسمانو شهیدانو
شاد محمد د دی د سپو سره اوشماره

---

زړهٔ مے ډک دے ستا د جوره دستمه
یو ساعت نهٔ یم فارغ د ډیره غمه

---

[1] یو حدیث قدسی ته اشاره ده چه پکښے خدائے پاک فرمائی لولاک لما خلقت الافلاک یعنے اے محمد (صلی الله علیه وآله وسلم) که ته نهٔ وے نو ما به دا اسمانونه نهٔ وو پیدا کړی ۔

[2] (عرش کرسی د) دواړه لاندے تر قدم دی ۔

سره لنبه ے د بیلتون دسره خیژی
سرنگون بے خو ده پروت یمه بے دمه
کناره کړخم یواځے غم ے مل دے
راته یو نکه مجنون دے غر اوسمه
د تلو لاندے ے زمکه بل انگار دے
چه تل وینم بے رحمی دخپل صنمه
په افسوس ے شنے لوخړے د خولے خیژی
د اغیار په خوا کینے کینی خوش خوّرمه
د اغیار سره مدار د عاشق مرگ دے
یو پوهے نشته په دے کنے زیات وکمه
عاشقئ رکنے ، معشوقه بناؤ مشفقه
د عاشق د زړهٔ د زخم وی مرهمه
معشوقه دِ کبرجنه د چانهٔ شی
کند ے غشے به ئے وی وتے د شکمه
ډیر ستومانه به په ژوند مرگ غواړے
مگر بے اجله نهٔ مری له ماتمه
چه د عشق له رواجه خبر نهٔ وی
څوک به خهٔ گیله کوی د ړوغ عالمه
شاد محمده په عاشق صبر واجب دے
د بے صبرو امید ورک وی له کرمه

---

زمانه شوله رله ، ما سته روکړدانه
چه خبر نهٔ شو لم هیڅ د خپله ځانه

هر سړے مے د دوستئ نه امان غواړی
هر آشنا مے په چل وئ کښے شو ستومانه
که زهٔ ډیر مدار منت د چل آشنا کړم
مګر تښتی توبه ګار به یار له مانه
که زهٔ ښتهٔ خبره کړم ځان به خفه کړے
د کنځلو نه په ځان به کاندی ګرانه
دوست دشمن مے همه واړه سره یو شو
په غصه شو راته واړه یکهما نه
که لاس ئے په بدئ په ما رسیږی
دوست اول په مرګ مے خوښ ډیروی پښانه
د منت جولئ په لاس کښے چا له ورشم
دوئ راضی زما د صلحے دی په ورانه
هیڅ ګناه په ځان کښے نهٔ وینم د سره
بے له دے چه په پیسه یمه ناتوانه
دا عالم دنیا پرست کوډے فروش شو
د پیسے د پاره شا کړی دا یمانه
د فاسق د منافق عزت به کیږی
دا په دا چه سره د واړه وی یکسانه
هر صادق چه رښتیا واوړی په دے وخت کښے
دیوانه نوم به ئے خورشی تر جهانه
خدائے رسول د سفید ږیش عزت ویلے
دا عالم ئے عزت کم کوی د حوانه

دسپین بدیری نه څوک څهٔ طمعه داری کا
بے له طمعے عزت ورک شو ددنیا نه
له عالمو طمع مهٔ کړه خبر دارشه
شو روڼ طمعه کوه دخپل سبحانه
داکاروڼه دتقدیر دی شاد محمده
عبث تهٔ خوشے کیلے کړے دهرچا نه

---

زړه دوستم خدایه زهٔ په هسے زمانه
یار یار ته لومه ایښے روڼ د روڼ ته په کینه
پلار زوی ته بدنیت زوی په پلار ته په تنګئ کښے
دے دنیا همه یاران خپلوان کړه بیګانه
یار یار په پیسه خرڅ کړی دپیسے نه به یار سک کړی
بل سرے به خپل کړی که ئے ورکړه یو آنه
یاری شوه دمار پښه دانځرګل لیلة القدر
زانو نه لاتپننګه ده د بنځو بیګانه
نران شو زنانه د زنانه (نه) لاخراب شو
څه شوه که مالی ګیری ئے تال خوری په سینه
د بنځے ناریته بیلتون دے قول پرے باور اوکړه
بنځے نه قربان شه زړ بے قوله ناریته
توره یک دلی سخا د نر ده دغه نخښه
داچه څوک کوی عالم ئے بولی دیوانه
عکس شو کارونه بنهٔ په بد و باندے شمار شو
څوک لکه برعکس شړئ بولی پښیمنه

زړه چه د دچا په جامه رنګ باندے غلط شو
کیږی تاروکی ګوښګټ ته واتی پروانه
خوله به د ترښنه شی دخولے په حرص ګوره
ګمان داصلی مه کړه په بد ذات هندوانه
واوره په کاڼه یګړی مه غلیږه هوښیار شه
مه کوه ګمان د ناریښه په زنانه
دا دنیا ده ناوے د دولتی په پرده پټه
نه را معلو میږی که وړه ده که ګهنه
ټول د دنیا په طلب ګرځی سرګردانه
د یخ میږی بنده د حرص ډیره نښانه
لاس که د اوږ ده چرے په خواست کړه چل آشنانه
قطعه به له تانه هغه د رنګ کړی یارانه
جال ګورکنی داموښه مارغه نه وینی په سترګو
وینی د حرصه د کورکنی د دام دانه
ږوشه شاد محمد ه خان بندی په حرص نه کړے
په خان دیونو چه چرے اونه کړے کانه

---

دافسوس په اسویلو ے شوه سالنړه
فارغ نه شو زړه زما د غم له پنړه
مری اوچه حلق ے تریخ دے لکه زهر
نه خوږیږی لاشی تریخ د شیرین کنړه
دجهان خوانه ترابنه ے شی په حلق کښے
چه غراب شری بلبل د ګل دونړه

کوتاه دم شوم ساه ے لنډه سترګے برنده

ستا د غم بیلتون پانسی کړم له مرکنډه

د وصال د باغ په سیل پسے مجروح یم

نهٔ خلاصیږم د بیلتون د سختلو لنډه

بخت زما سرزمین واړه آتشین کړو

د وصال بار دار اونهٔ ے شوه شنډه

زهٔ بے بخته خورمه لښتے په زړهٔ سختے

د باغ سروے ے کړه بخت لکه ارهنډه

الف قد مے غم کړو خم د لام په مثل

لا بیلتون راپورے کړی خندا ملنډه

د بیلتون اور ے په کینډه کښے بلیږی

د وصال په اوبو یخو نهٔ شوه تنده

غیرے ینے شاد محمده د زړهٔ دور کړه

په عبث پسے اونهٔ وهے منډه

---

د صبا باده خوشبویه تر عنبره

ډیر دعا سلام ے یوسه تر دلبره

دٔعا سلام له پسے ے داعرض کړه

چه د هوب دے یار په هجر کښے ترسره

که کوم ورسره ستا مکرے نهٔ شی

داجل غشے به ۓ اوځی د جګره

---

ئه (هندکوده) بخه :

(پروت پـه) کښت دے نهٔ ژوندے نهٔ مړه دے:

پښتو ستړکے پروت د ځانه ناخبره
که همراه ورسره ستا مهرهم کرم شی
هله خلاص به شی د هجر د ضرره
ستا کرم به معجزه د مسیحا شی
پړے مړه به شی ژوند دوباره غوره
په سلګو د ځنکدن به ئے ژړه اوچوی
که ډیر کړه یاره درحم د نظره
د لوندو خټو اوبهٔ لړے بهانه وی
خون به واخلی ویره اوکړه داکبره
دبیلتون لنبو وهلے بدهٔ حال دے
په وصال ئے ژړهٔ خوشحال کړه نازپروره
شاد محمد درته ولاړ لاس په نامه دے
لاړ به نهٔ شی بے وصاله ستا له دره

---

د هوا هوس په خیال مهٔ ځه آسمان ته
ئے پیدا د زړهٔ خیال کړه کورستان ته
هر نا اهل بوالهوس چه کوږ روان شی
له تمام جهان غرډوی وخپل ځان ته
کوږ پښکے وهلے بدیره بریت به پریږدی
دحریف مخ له نهٔ راځی میدان ته

---

له (پروت په) کښت دے...الخ

پیدا کړے دے زینت دسرړی بزیره
وایم بنجُه په هر باب چپ بدیری خُوان ته
ظاهر بدیره فرق د بنجےُ دسرړی دے
باطن حال ئےؤ وی معلوم غنی رحمان ته
شاد محمد ه صدق شرط ورسره مل کړه
ډیر لوئے بدیری دی چه نهٔ کوری ایمان ته

---

په سینه دِ ئکی زلفے اویزاند ے
نکه ناست چه بنامارانوی په گنج باندے
داوربل تیک دِ د نور هسے شغلےکا
خال دزنے دِ بادشاه عدالت کاندے
(زرهٔستی) دعشق په اورشوم سرتر پا یه
لا مے نهٔ اخلے خبر راپورے خاند ے
کُل وجود به مے سرهٔ زرستا په نظرشی
که دِ زهٔ کرمه دخپل نظر دلاند ے
په ارمان ستا دوصال ئے سترگے رسرےکړے
نکه سیند مے په مخ ځی او بنے چلاند ے
دوصال عرض به اوکړم په بیلتون زهٔ
چه په زړهٔ ئے دی راکړی لښتے تاند ے
تاچه ځان زما د حاله ناخبر کړ
بیلتون اوبنکے مے شتئ دزړهٔ پراند ے

---

لے دزهٔ ستی) دعشق .... الخ

که هر څو ے حال خراب په زړهٔ زخمي شوم
وے نهٔ شو ے تهٔ په ما باندے زړهٔ سواندے
شاد محمد په حال همه خلق ژړا کړي
دهوا مرغان پرے هم وائي وير ساندے

---

بے وفاؤ په يارئ کښے کړيدون دے
د وصال اثر معدوم وي تل بيلتون دے
چه ئے قهر غضب ډير وي رحم نهٔ وي
تيريدهٔ د تريخ بےخوړه شواخون دے
هر ترابشهٔ د شيرينئ په زور تيريږي
بے خوړو تراخهٔ بنخ غشے په لړمون دے
د بيلتون خيرے په وصل لرے کيږي
د جامو وغيره خيري له صابون دے
خود غرضه اوړ د خپتے لاندے باسي
مراد غرض هير کړي هر چا نه قانون دے
چه جفا کاندي پيشه وفا ته شا کړي
د هغهٔ او د خوګ[1] يو رنګے مضمون دے
(چه موسئ[2]) کړو کيميا ګر بيا ئے دشمن شو
لا تر اوسه پټ په سر روان قارون[3] دے

---

[1] سوَر، بد ځناور [2] چه موسئ) کو ....الخ [3] د حضرت موسیٰؑ د تږهٔ زوئے وو چه ډير شته من سړے وو۔ د حضرت موسیٰؑ دښمن شو او خدائے پاک سره د خپلو خزانو په زمکه کښے ښخ کړ، وائي چه دے په زمکه کښے مخ په ښکته روان دے۔

رهغهٔ سړی چه بدے چارے په لاس واخلی
سړی هوش نهٔ دے داعین سخت جنون دے
دجفا سره وفا هم مناسب وی
څځله وائی اول مرگ پسے ژوندون دے
شاد محمد ه زړه د هجره تار پتار شی
چه لاله تمامی بوښت په جگرخون دے

---

تن مے ځخ دبیلتانهٔ په زړهٔ خنجر دے
چه جُدا زما دغیږے نه دلبر دے
جدائی به زهٔ په مرگ قبوله نهٔ کړم
مرگ مے تَل ځُله قبول په سترگوسر دے
دآسمان له دوره ژارم ډیر فریاد کړم
نیزه وار دبیلتانهٔ راباندے نمر دے
سمندر هسے مے برخه شوه له اُوره
اور دغم دبیلتانهٔ زما بستر دے
وصالت ځکه زما له تنه تختی
چه بیلتون مے تن کښے کړے دغم کر دے
اور دعشق زما د زړهٔ په سر بلیږی
اندرون زما په مثل د مجمر دے
خوشحالی په ویښه خوب به څهٔ رنگ وینم
چه ډیره زما په زړهٔ دغم لښکر دے

---

ك رهغه سړ ی ـ ٢ انگیتهیٔ ·

په عاشق دبیلتانهٔ دلسوزی نهٔ شی
کله رحم په مومن کړے کافر دے
عاشقان دبیلتانهٔ نهٔ خلاصیږی
هر عاشق ته بیلتانهٔ جوړ کړے شر دے
وصالت زما د حاله خبر نهٔ دے
بیلتانهٔ ے په سر کړے دغم غر دے
زهٔ عاشق یمه صادق د رونجن نهٔ یم
د لاله پشان ے داغ په خون جگر دے
شاہ محمده دبیلتونه څهٔ گیله کړے
عشق ونه بیلتون گل دغم ثمر دے

# نعتیه

راوکړه نظر دِ) دَکرم رسول الله عربی
زهٔ دِ غلام یم د عجم رسول الله عَرَبی
نفس وشیطان ے دشمنان دوا ره غالب دی پما
دوئ ے کړه لاندے ترقدم رسول الله عَرَبی
نهٔ په زمین نهٔ په آسمان نهٔ چیل صورت وینمه
اوده غافل یمه هر دم رسول الله عَرَبی
سُستی غفلت دے په ما ذوره بیداریدے نشمه
ته دغفلت ے کړه دورغم رسول الله عَرَبی

---

(راوکړه نظر دِ) دَکرم ... الخ (۴)

دمعصیت په تیغ مجروح تمام بدن دے زما
دشفاعت راکړه مرهم رسول الله عربی

په دوارو سترګو یمه ړوند که ے رهبر شوے ته
په سمه لار به شمه سم رسول الله عربی

که دِ په سپو د درحساب کړمه خوشحال به شمه
نشته په داګښے زیات وکم رسول الله عربی

ستا په سبب کړله پاک رب چېله خدائی ظاهره
چرته به وو بابا آدم رسول الله عربی

رحیم کریم تاج د لولاک درته په سر ایښے دے
هم ئے آخر هم مقدم رسول الله عربی

زهٔ شاد محمد دِ سپے غلام که دلاسه راکړے ته
ځی ے ددوارو سترګو نم رسول الله عربی

---

بوناحقه په زړهٔ غم انبار ه وے
دبنادئ دیخه ځان اوزګار وے

لا فی شافی چه دعشق کړے په میدان کښے
دکمره ګویا ځان ګذار وے

چه د صبره سرور پخلا دعشقه
عبث غم ځان له اوده بیدار وے

---

ـه لولاک لما خلقت الافلاک (حدیث قدسی) ته اشاره ده یعنی اے پیغمبره که ته نهٔ وے نو ما به دا آسمانونه نهٔ وو پیدا کړی -

چه دِ صبر ذرّه نهٔ وی عشق غواړے
نکه ځان ته مړے ړے انکاره وے
عاشقئ کښے چه پټ راز د زړهٔ اظهار کړے
دمنصور پشانِ ځان په داره وے
(تاچه) ځان کړهٔ دعوه گیر په عشق کوره
په جفا صبر همیش اختیاره وے
چه تندے کړے ددلبر په جفا غوټه
په عاشقو خوشے ځان به شماره وے
په غرورچه وصالت ددلبر غواړے
تللے جنگ ځان ته واپس دوباره وے
خاک اوخس چه ددلبر دتلو نښے
خدائله وصل ته به ځان ازاره وے
د رقیب چه امید دوفائے کړے
په اسلام کښے حلال مال مرداره وے
اے ناصحه تهٔ چه ماته مسے پند کړے
په وصلو غمگین زړهٔ قراره وے
تهٔ محروم زما د زړهٔ دمرض نهٔ یئے
اے طبیبه لاعلاج زیات بیماره وے
چه ناهل دِ غوږ نهٔ بددی په خبرو
شاه محمد ورته دیران گلزاره وے

---

۱؎ (تاچه) ځان ..... الخ

لوئ رب دہ بیشکه چه قدیم دے
سیطان حُکه په لویئ درب غلیم[1] دے
چه لوئ کبر هوا لری دځنګه
په اسلام کښے دهغه سری غتبیم دے
عقیده بویه مضبوطه هرښدهٔ له
که ښهٔ بد مُومی اختیار درب رحیم دے
غرور کبرچه ابلیس وکړ شیطان شو
له درګاه نه هم په دا سبب رجیم[2] دے
چه بابا آدمؑ توبه په خپل قصور کړه
حُکه فضل پرے دوبار شوے عظیم دے
غرور کبر چه توبه کړه ترینه هیره
مغضب[3] شو نشت کرم پرے دکریم دے
حلم ښه دے غصّه قهر ښهٔ کار نهٔ دے
حُکه داچه پاک رسول زمونږ حلیم دے
دیوه[4] لار دہ ) داسلام دو یمه نشته
دا شیطان چه خلق تول په منځ کښے نیم دے
شادمحمدہ داسلام په لار کښے ټینګ شه
رب به خیر کړی وسیله چه دبل میم[5] دے

---

[1] دښمن [2] مردود - شړو نے - ربټلے شوے - رجم کړے شوے -
[3] په غضب کښے راغلے - دخدائے په قهر کښے راغلے [4] (یوه لار دہ ) داسلام ..الخ
[5] د میم نه مراد محمد صلی الله علیه وسلم دے - داتوضیح بیا بیا راغلے دہ -

په خنجر دبیلتانهٔ ے زړهٔ پرهر دے
دچشمانو ے د اوښو درّ هر دے
طبیبان ے مرض نهٔ پیژنی خلقه
عشق مرض ے په بدن کښے ددلبر دے
زهٔ دخوږ یواځے پروت یم بے دارونه
ددارو نصیب ے نشته بخت ے لر دے
ستا وصال ماله دارو دی نازپرورے
ستا په وصل ے پیوند دزنږکی سر دے
بے له یاره که اختر وی اختر نهٔ دے
کهٔ اختر دے نو دیار په مخ اختر دے
په سلګو دبیلتانهٔ ے اوښکے کوږ دے
چه آشنا زما دحاله ناخبر دے
عاشقان دبیلتانهٔ د لاسه ژاړی
هر عاشق ته بیلتانهٔ کړے لښکر دے
هغه کس به څهٔ ښادی کوی عالمه
چه هر وقت پرے دبیلتون ظالم نظر دے
په دوزخ دعاشقانو پروا نشته
څکه پروت دانګار مینځ کښے سمندر[1] دے
هر عاشق چه کړی فریاد دعشق له اوره
اور دعشق شادمحمد لره بستر دے

---

[1] یو فرضی ځناور دیا چینجے) چه په اور کښے پیدا کیږی او په اور کښے اوسی ۔

خبر نهٔ یم چه دا مرگ که مے هوس دے
که دِغم په ما دیو غمه په لس دے
ستا بیلتون زما اجل دے بے اجله
چه مے تن د بیلتون نار کښے لکه خس دے
خوړ طعام مے شی بے تا نه لکه زهر
ژوند تاوان را ته بے تا نه وایم بس دے
ذرهٔ ستی زما په جاله کښے دتن شو
په ظاهر د ذرهٔ مثال مے د قفس[1] دے
یو ساعت په ویښه خوب کښے خوشحال نهٔ یم
چه په غاړه مے غم ستا لکه جرس دے
دم په دم د دیره غمه وتل غوارم
طوطی روح مے تنګ درون په تن قفس دے
چه دعشقه سره سم اول بیلتون شو
دیدار څکه دالله د مرګه پس دے
پادشاهی دعاشقی رب چاله ورکړی
سر بالا هم په جهان کښے هغه کس دے
آخر سور به شے پرے پورته شاه محمد
چه اجل درته ولاړ زین کړے اس دے
ستا په ستم مے اوښے سیلاب ځی
په ځائے داوښو رانه خوناب ځی

---

[1] یو فرضی مارغهٔ چه دمرګ په وخت ځان ته اور بل کړی او پکښے اوسوزی - دا توضیح هم بیابیا راغلے ده -

لسکه مجنون یم په زړهٔ افګار · درد د هجران کړم ډیر ناقرار
بیلتون دِ سور کړم په سُور انګار · د تول صورت بوئی دکباب ځی
په زړهٔ مې اوری لړې د غم · دیار بیلتون کړم سورې شکم
څُکه اوځی مې له تنه دم · چه صنم مانه مخ په حجاب ځی
بې هوشه پروت یم له ډیره درده · شتیُ مې خینه ان په جګر د ه
څُونه مې تاو کړی د عشق زرده · خوراک مې دورشه هم را نه خواب ځی
زهٔ دِ زخمی کړم کوم فریاد · په ژوند خفه شوم لکه فرهاد
بیلتون بنره کړم په مخ دباد · باغ د طوطی دې ورله غراب ځی[1]
په وصال واخله زما خبر · بیلتون زخمی کړم د زړهٔ په سر
مرهم مې کیږ ده په زړهٔ پرهر · ګوندې لمانه رُوح په شباب ځی
چه منت نهٔ کړی څوک د دلال · حاصل به نهٔ کړی دیار وصال
تهٔ شاد محمد ه کوه تل سوال
مغرور همیش خانه خرابه ځی

---

[2] رزما) زړهٔ صنم نیولے په انګار بانده
څکه مې او بنے وینے دروی په رخسار بانده
دعشق په تیرې ضمیر کو سُورے سورے بنار و
اوکړه کرم کیږ ده مرهم په دل افګار بانده
زهٔ دِ په در ولاړ نهر غوارمه خیر د لبو
زړهٔ مې کړه سور چه مې کړے مور زنه انار بانده
ستا په تهمت شومه لت پت عالم خبر شو په ما
بې ننګی څنګ مهٔ کوه ننګ اوکړه په یار بانده

---

[1] کارغهٔ · [2] (زما د) زړهٔ ... الخ د؟)

خوله دِ صدف لب دِ مرجان گوهر دندان لرے تۀ
نشتۀ دے سیال ستا دجمال پۀ کل امصّار باندے
توړ دِ اوربل لکه مخمل زلفے وتول پۀ صدر
یمه مجنون ما کړه درون سینۀ گلزار باندے
زۀ شاد محمد دِ یم غلام لاس پۀ سلام یم مدام
لکه مسکین ولاړ غمگین ستا پۀ دربار باندے

---

څوک چه ما منعه کوی دیار د لوری
گو یا اونیسی پۀ لاس دآسمان ستوری
چه دصبر دم پۀ ما باندے شف شف کړی
لا تازه پۀ ہوکو باندے غلے اوری
ناصحان چه راته پند کوی د منع
دا همه طفلان گڼمه زۀ شیر خوری
که چا تینگ کو آباسیند پۀ بند د شکو
بس له هغے حال زما د زړۀ دِ گوری
غرض دا چه به دیاره منعه نۀ شم
که گولئ لکه باران را باندے اوری
زۀ دیار پۀ در کښے پروت لکه ملنګ یم
چه ے ځلے کړی داوږدو زلفو پۀ سوری
هر چه ځان گڼی عاشق پۀ عاشقئ کښے
بے دیاره پۀ دنړا وړے شبکوری

---

ئه بنارونۀ ـ دمصرجمع

یوساعت مے آرام نهٔ شی بے دیے ادہ
دبیلتون داور لتاوه کرو کور وی
بے دلبرہ پہ مرگ خوش وی د ژوندونه
دیر ستومان پہ هر زمان دژوندون نوری
دهجران لنبو وهلی بد ئے حال ئ
یو پہ تل داور لرونکی نه لا توری
پہ هغه عاشق بہ غم نهٔ وی بنادی وی
چہ دلبر ددهٔ پہ غم باند ے غمخوری
عاشقان دمعشوقو پہ مخ کینے چپ وی
غلی ناست وی زورهور مخکینے کمزوری
هر عاشق چہ یار اونهٔ وینی پہ سترگو
دمجنون پشان همیش یسے پہ شوری
دبیلتون دتاوه هغه بے پروا وی
چہ مدام پہ اس دوصل باندےسوری
عاشقان دمعشوقو وی شاد محمده
بے دیاره نهٔ دیلار وی نهٔ دموری

---

چہ څوک نهٔ کوی عمل زما پہ خولے
د هغه نه بہ زهٔ څهٔ کوم گیلے
گیله کیږی دهوښیارو نهٔ دخرونه
چہ پہ ښو بدو یک رنگ کوی حملے
که ظاهر خلق پہ رنگ دسرو ښکاری
سرِی کم دی اکثر دی دخرو گلے

عاقلان په وړاندے ځی په وروستو کوری
نو قدم په لارے نهٔ ږدی بے پیلے
د بے عقله ے لیدلی دی پخپله
چه دځانِ دوبی کړی جبالے
د بے عقلو خلقو تل په خونه غم وی
شر فساد ته کړی دوړایه واویلے
چه نهٔ خپل عقل لری نهٔ د بل اوری
دهغو مدام په برخه وی تپلے
ر د بے[1] عقلو) سره مهٔ کښینه تر ے تښته
په مثال خوږونکے مار دے د سلے
د بد[2] بختی چه شی) هوښیار سړے نادان شی
په جگر ئے د غم نخے کړی بَلے
شاہ محمد ہ دا نصیب دے دردسیږی
چه هر کس د دته په دنړ کښے وی خولے

---

چه ځوک گمان په ځوان د بازکوی غراب[3] اوخیژی
که په نظر گنړی سرهٔ زر یکښے تراب[4] اوخیژی
ستا په یقین به وی واعظ عالم فاضل او قاری
باطن پښان د دکران دقوم قصاب اوخیژی
که په ظاهر درته یک رنگ یکدل صادق ښکاریږی
یکښے دوړنگ او منافق ټگمن کذاب اوخیژی

---

[1] (بے عقلو) سره .... الخ (؟)  [2] (بد بختی چه شی)  [3] کارغهٔ
[4] خاوره -

که سینه سوے ترہ ے اوکړی پرے کمان د اوبو
چه ورله ورشی په هوس هغه سراب اوخیژی
په رنګ جسه قدو قامت که څوک غلط شی دچا
په خوئ خصلت په عقل سم لکه دو ابٌ اوخیژی
خیال دصابرکه پرے کوی دعاجزی په سبب
دشمن اودوست حیچی په مثل دکلاب اوخیژ ی
که ئنهٔ طعام سړی ته پروت وی دخوراک دپاره
ترے په نفرت اوکړی چه منځ کښے ئے ذبابٌ اوخیژ ی
زړهٔ که دِ خون شی په غیابت دآشنائی په یقین
دغه یقین به دِ پښان دخیال وخواب اوخیژ ی
قول دچاکه درته ښکاری لکه یک دکانړی
چه شی معلوم قول ئے نرم ترحبابٌ اوخیژ ی
کهٔ په امید دښو بدی ددوسته اوموې کړی
لکه چه پټ دبوسٔو لاندے پرے سیلاب اوخیژی
زهٔ شادمحمدځهٔ له کیله دخپله بخته کوم
هسک دتقدیر دے دچا ښهٔ دچا خراب اوخیژی

---

ن په زړهٔ ے دبیلتون دغم غوبل دے
عقل هوش فکر له مانه ځکه بیل دے
وصالت زما له تنه اوکړه ما ته
درد وغم هجر بیلتون راسره مل دے

---

^۱ ځناور ^۲ سپے . ^۳ پچ ^۴ ـړبوقئی

دافسوس لوګی ے څکه دخولے خیژی
چه ے اور دعشق دزړهٔ دپاسه بل دے
د وصال مرهم رااولیږه محبوبے
اندرون زړهٔ ے سورے دعشق په شل دے
بیلتانه ے تن قریب په ځنکدن کړ
چه یارنهٔ وینمه دغمه ے اجل دے
چه وصال زما دحاله بے پروا شو
ځکه تن ے دبیلتون په جرنده دل دے
له دے ژونده ے مرګ بنهٔ دے راشه مرګه
دا ژوندون ے دبیلتون واړه خلل دے
بیلتانهٔ دِ دهجران په اور نسکوره کړم
تول وجود ے ځکه اوچ لکه دنل دے
خوشحالی ځکه په ما شوله حرامه
چه ے غم دبیلتانهٔ په زړهٔ نهل[1] دے
لکه مرے ته پیشو پرته وی داو کښے
همسے ماته دابیلتون په زړهٔ کښے غل دے
دلسوزی چه دوصال ودباندے نشته
شادمحمد ځکه دغمه نیم بسمل[2] دے

---

[1] نهال دے ، بوټی ۔
[2] شاعر د "بسمل" لفظ په هرځائے د "میم" زور سره استعمال کړے دے۔ شاید چه د ضرورت شعری له مخه وی ۔

چه دِ نهٔ وینم جمال کمال نازنینے
غورځوم د ه پسے تورے د خو لے وینے
سرګردان په زړهٔ پریشان د ه پسے ګرځم
د مجنون په لا زبون کړمه ستا مینے
او چے شونډ ے رنګ ے زیړګریوان ے تورے
خوب خندا خوراک ے نهٔ شی دل سنګینے
زړهٔ زما دِ الوول اوس دِ یړے بل کو
چه دِ زلفے کړے تاوُ تاوُ په مخ مشکینے
ستا د عشق نوم به هغه په خولے اخلی
چه ځا ے کړی د تهمت په خوم رنګینے
(پنے پنے ابله) سرسرتور نهٔ خوشحال ناست یم
بے وصالـه دِ بد حال یم مه جبینے
د رحمت په لږ نظر باندے مے زرکړه
ستا مثال سنګ پارس بالا نشینے
ستا طرف ته لکه میاشت د اختر ګورم
په کتل کتل مے شولے سترګے سپینے
قراری صبر مے نهٔ شی بے لتانه
سرے لنبے لمانه خیژی آتشینے
ستا د دره جداۍ د ه راته ګرانه
تهٔ زما شاد محمد ان د زړهٔ تسکینے

---

ل (پنے پنے ابله) سرسرتور .... الخ (؟)

عقل هوش مې نن د سره دې وتلي
چه غمان مې د يار سره ليدلي
د غمان په لمسه مه ګيڼه صنمه
غمازانو مې د زړهٔ په سيخ پيئلي
هيڅ مجال مې د زړهٔ نشته بې مجال يم
بې له تا مې د جګر سر دې ډېبلي
زهٔ چه هسې سرګردان په ورانو ګرځم
د بېلتون سوړو لښکرو يم لوټلي
زهٔ چه تل د بېلتانهٔ دلاسه ژاړم
بېلتانهٔ لکه هسې يم تللي
بېلتانهٔ زړې زړې قطرې قطرې کړم
هم پښان ئې د اوړد يمه اخلي
د بېلتون او د وصال چه سره ويش وو
زهٔ په برخه د بېلتون يم رسيدلي
د افسوس نعرې وهم د عشق د درده
چه بېلتون د يار په غيږ کښې يم وهلي
بې اجله نشته مرګ چه ژوندې پايم
بې له تا يم ځوانې په مړو شمار سلي
زهٔ چه هر څو شکايت کړم د بېلتونه
بېلتون ستا مې برج د زړهٔ دې نړو سلي
د تهمت پروا مې نشته ستا په عشق کښې
که بدرد د ابانه دې وائي کوړو کلي

ذهٔ به خلقو کړے نهٔ دم ملامته
که یو ځلے یار و ماته روے کتلے
شاد محمد وائی چه مله به خوشحال شم
چه کوترې دشاه ددر سے بنګلو سے

---

دبے عقلے معشوقے عشق سقر دے
په خوکاره کښے سقر تر لا بهتر دے
ګنهګار په قدر خپل ګناه کړېږی
آخر دا جنت مومن له مقرر دے
دبے عقلو ترحم په هیڅ نهٔ شی
لکه رحم په مومن ورک د کافر دے
عاقل دوست کړی خپل آشنا دشمن دشمن کړی
بے عقلانو ته دشمن دوست برابر دے
دبے عقل په نظر الماس جوار وی
خرمهرے نه ورته سپک اصلی ګوهر دے
په خذمت منت خواری احسان برباد کړی
کم بیلتون په منځ ددهٔ په منځ د خر دے
عاقلان په شر ناراض په صلحه خوښ وی
بے عقلانو ته دصلے نه خوښ شر دے
دعاقل خبرے زخم له مرهم وی
داحمق هره خبره تېز خنجر دے
معشوقه دعقله ډکه د رب غواړه
په بے عقلے معشوقے کښے لوئے ضرر دے

عاقلان په اشاره د رموز پوهے شی
بے عقلانو ته عبث گذار دسر دے
د بے عقلو عشق په مثل کوټ بنکار دے
د هوښیار و عشق په مثل کره زر دے
غم په سرکے اختر په کال کښے په اختر کړے
بیلتون غم راته وصال بکه اختر دے
هر درے نهٔ یم چه هر درکښے او دریږم
شاد محمد په صدق ستانیولے در دے

---

هر چه کوږ دے پیدا شوے سم به نشی
چه خوړلے اژدها وی دم به نهٔ شی
که الله عزت د هرچا ډیر نصیب کا
په چغلئ د چغل خوار و کم به نهٔ شی
هر درخت نه چه نم اووځی اوچ خراب شی
په خذمت د اوبو ډیرو نسم به نهٔ شی
چه ئے بښکلے په ازل کښے خوشحالی وی
د حاسد په بد حسد په غم به نهٔ شی
هر چه برخه ئے د غم او د اندوه وی
په سرود او په مجلس خرم به نهٔ شی
که ئے وس دربانده برشو تک به درکا
په منت به د دوست مارلړم به نهٔ شی

---

۱ د "به" ترے دے "سره" پکار دے۔

خټکې که دسیلمئ دام په خپر دے
په خوږوالی په مزه کښے آم به نهٔ شی
داجل په تیغ که سر پرهر پرهر شوے
دحیات اوبو به[۱] ستا مرهم به نهٔ شی
پیدا کړے خدائے هر کس په تفاوت دے
خان سلطان به[۲] دا همه عالم به نهٔ شی
هر چه غر دے همګی دتور و کاڼو
هر یو کاڼے به[۳] الماس نیلم به نهٔ شی
که ښوک باغ په زینت جوړ کا بے حسابه
په بنالښت او په زینت ارم به نهٔ شی
چه ښوک زوړ شی دځوانئ موسم[۴] پرتیر شی
په خوراک[۵] به دوبار ځوان محکم به نهٔ شی
شاد محمده دادنیا ده نهٔ دا[۶]نګه
په حرص دحرصناک به لنګم نهٔ شی

---

لوغړن یم ستا دعشق په انګار محبوبے
روغ که په تن ښکارم درون زړه[۷] دا انګار محبوبے
ستا دعشق په دریاب ډوب یم    اندرون غوښ په قلوب یم
رب دپاره راشه په پښتنه دبیمار محبوبے

---

[۱] دا "ب" "تیرے دے" "هم" پکار دے  [۲][۳][۴] دلته د "به" حرف تیرے دے۔
[۵] دنیا عموماً څلور دانګه ګنړلے شی چه عام خلق ئے څلور دانګه بلی ۔ [۶] دا
مصرع صمدا ئے یک ده ۔

زماخون به په گردن کے[1] چه موزی سره گفتن کے

ترس دِ د زړهٔ نشته دغماز مِنے گفتار محبوبے

زما دخولے نه زما دود پہ افسوس سرهٔ په زود

اوړے په زړهٔ بل دے خوف مے اوکړه دآزار محبوبے

د زړهٔ زخم ناسور شهٔ حال پښان مے دمنصور شهٔ

غم زما به کم شی چه دِ سور کړمه په دار محبوبے

شاد محمد کرځی ملال

زانګی تل د غم په تهال

نهٔ مری چه لا پاتی دے دوصل امیدوار محبوبے

---

راغ[2] په تا دځوانئ واړ گل خندانے بناپیرئ

جوړ وے تل نوے سنګار په سر دتورهٔ سلارئ

(ستا[3] د نظر یمه) نهر اوکړه نظر دوصال

ما سرو مال کړ په تا هار[4] صنم دعشق په جوارئ

رنګ مے خراب زړهٔ مے کباب ځئ مے خوناب دستر کو،

یمه سُورے په زړهٔ افګار ستا دستم په کتا رئ

لکه مجنون سوے لړمون یمه بیرون دخو ده

د روغو خلقو شومه وینز ار په غم دِ سر ګریارئ

---

[1] په اصل کښے "کښن" لیک لړو۔ دکښن په ځائے "کے" اولیکلے شه چه ذکړے" مخفف دے [2] په دے غزل کښے ئے دسجع نه کار اخستے دے۔ یعنے هم قافیه الفاظ ئے راوستے دی۔ [3] (ستا دنظر یمه) [4] دهن کو) بیلل۔ بیلودل۔ هارنا۔

مهٔ کړه ستم او کړه کرم دوی مے کړه غم د دِ له
او منه روځ د یاک ستار زما قبول کړه زارئ
زهٔ دِ په اوی کړمه نکوی کومه شور محبوبے
یمه بے حده ناقرار وهم په زوی ه ککړئ
سوال دوصال دِهی محال کومه ډر به مدام
زهٔ شاد محمد غواړم عذار درنه هم پین صد رخیرئ

---

په دیدن باندے دِ یا ئم ناز نینے
که ته نهٔ ئے غوړزوم دی پسے وینے
آرزومنه دِ دوصلت یم بے حسابه
ستا طرفته مے شوے دواړه ستر کے پینے
راشه راشه تهٔ زما د زړهٔ آرام ئے
په لاس راکړه تور سنبل زلفے مهینے
سرګردان په زړهٔ پریشان در پسے ګرځم
بے له تا مے صبر نهٔ شی مهه جبینے
کل عالم راپورے توقے مسخرے کا
هسے رنګ له لیونے کړمه ستا مینے
په بل ځائے کنے راته تخت خاورے ایرے دے
ستا د درخاوی ے دی ماته عنبرینے
د عشق نوم دِ په خولے هغه خلق اخلی
چه جامے کړی د تهمت په خم رنګینے
شاد محمد ه هیڅ حیله دیاره مهٔ کړه
معشوقے دی پخوانئ په زړهٔ سنګینے

(پهٔ څو) قسمه لیونی عالم ـ ئے بُولی
پیدا مهٔ شه ناقابل دچا په غولی
ناقابل به د دشمن سره یخلا وی
دخپل دوست پهٔ کینړه ځی د فولاد شولے
یو مصرف چه د حاصله لاګټ[۲] دیرکا
عاقبت به په آخر کښے خوټے تولی
یو هغه چه د دنیا نه خبر نهٔ وی
په هغه همیش وارهٔ زارهٔ راتولی
یو هغه چه ئے حرص د دنیا ډیرځی
لکه مچ هسے راټول په غوړ کنډولی
یو هغه چه بے طاعته کند په سره
په یو ترخ کښے ئے چارهٔ په بل ځوی
شاد محمد ته ټول عالم لیونے وائی
څوک به جوړ کړی دهر یو خولے له برغولی

---

ستا د رخسار په شان شعلے صنم آفتاب نهٔ لری
دواړه عذار د نا عذار چه ئے ګلاب نهٔ لری
دواړه زلفان د الول لکه ماران په صدر
ستا د زلفانو سیاهی ځانګ دغراب[۳] نهٔ لری

---

۱ (پهٔ څو) قسمه ...... الخ (؟)

۲ (هندکو) خوڅ ، لګښت .

۳ کارغهٔ (دا معنیٰ بیا بیا راغلے دهٔ)

سینه یا غنچه خوله دِ غنچه ده په مثال دګلو
ګوهر الماس ستا د دندان پشان آب نهٔ لری
ستا عاشقان په دَ ر پراتهٔ په اور وراته دی لیلا
غوځ په ضمیر همیش شبګیر حاجت په خواب نهٔ لری
جوته پشان دنشهٔ ئی خورمه هروقت د لبره
په عاشقئ کښے چه دا رنګ مستی شراب نهٔ لری
عاشق دخلقو کناره ناست وی یواځے ځان له
سرود په سود د زړهٔ کوی لیکن رباب نهٔ لری
عاشق یواځے شکایت کړی معشوقے دلاسه
دمعشوقے په مخکښے هیڅ په خولے جواب نهٔ لری
زهٔ شاد محمد لکه لاله لرمه داغ په جګر
هغه عاشق نهٔ دے چه څوک سینه کباب نهٔ لری

---

زړهٔ مے هر ساعت تاوېږی لکه پړے
بیلتانهٔ کړمه دیار په مثال مړے
غمزه ده صورت ے خنهٔ شوکه دلے دے
روح او زړهٔ مے صنم تا په منګل وړے
که مے وژنے زړ مے اووژنه دلبره
ما اختیار ددله دمالو سر ددکړے
نور صبر د زړهٔ نشته زړ مے مړ کړه
ستا غمونو دبیلتون کړم په زړهٔ سټرے
دبیلتونه دِ په هیڅ حیله خلاص نهٔ شوم
که مے او چاوهٔ پرے ډیر دعقل زړے

داکرم په شاد محمد اوکړه محبوبې
زړۀ لاندې کړه دسره دلاس غړې

---

چه مې پرېوت طوق مرئ ته دعشق پړې
بېلتون ځکه کړم دیار په مثال سړې
داغیار په پښنو پرېووځم ستا دیاره
اچیئ لاس خسوخاشی ته وبو وړې
تن مې دیک وینه اوبهٔ لرمون مې غوښې
بېلتا نهٔ په اور دغم مې زړهٔ پخکړې
چه کشئ تاوونه اوخوری لاندې باندې
مُصفا شی ترې شی دور خیرې سپخړې
په څوچنده لا تازه شی د اوله
چه د اورلنبه ستی کاندی سرکړې
په ژړا او په افسوس به سترګې سرې کړې
که خبر زما په حال شو ګل وګړې
ستا درحمه به څهٔ کم نهٔ شی صنمه
چه دسره مې کړې لاندې دلاس غړې
معشوقې ته کړه ځان خاورې شاد محمده
فا ورې تل زرغونه وی دهر څهٔ زړې
(خدایه) زړهٔ مې په امان دغم له بادکړې
په هر قسم خوشحالو سره ئې بناد کړې

---

له داوسپنې تموته چه زمکه برې کښتې شی۔

پہ حُرمت دخپل محبوب شاہ لـــولاکؑ
بنـدی زړهٔ دغم لہ دامہ ے آزاد کړے
کہ ے ستا فضل کرم ربہ جلاب شی
دبد نہ بہ ے دوں دغـم مواد کړے
شتہ پہ نشتہ اونشت پہ شتہ سرہ حساب شی
الٰہی چہ پہ چا تۂ دفضل داد کړے
ھیځ بہ ستا دفضلہ کم نۂ شی کریمہ
چہ نامراد زړهٔ ے برټوړۂ دخپل مراد کړے
پہ ساعت کښے کہدا وروے تر تختہ
سپین قمر پہ درنگ کښے تور لکہ مدادۂ کړے
دپادشاہ کړے کند پغاړہ کچکول لاس کښے
تختوتاج گنجو املاکۂ ترینہ برباد کړے
ربہ زۂ چہ پہ عمل لکہ دنل یم
نل بدن ے تۂ پہ خپل فضل کوماد کړے
ماسرہ دخپلو اوسا تے دشـــــرمہ
دوست دوشمن نہ ے دشرم ورک ضیاعۂ کړے
تورہ لاس کښے بے کانتہیٔ گذارتہ جرپ دے
پاکہ ذاتہ رانہ ورک دسرجلاد کړے

---

۱ ددے تشریح وړاندے تیرہ شوے دہ ۔ ۲ (ھندی) پُورہ ډک ۔
۳ سیاھی ۔ ۴ خزانہ اوملکیتونہ ۔
۵ دلیتۂ شان نرمہ دواڼ چہ پہ بدن مبتلے شی ۔

بیمارِی بلا آفت لرہ ترے لرے
پہ نیکئی ے خوشحال زړۂ پہ خپل اولاد کړے
دفتح[1] غم راتہ مہ بناسئ قدیرہ
بیمارِی مرض تر لرے پہ هواد کړے
دعمل دمیوے ډک ے تر انار کړہ
سوبالا ے پہ مثال لکہ شمشاد کړے
شاد محمد کړے خدایہ نرموتہ ډیر نرم
سختو خلقو تہ تئ سخت لکہ فولاد کړے[2]

---

پہ وصال پسے دیار ے زړۂ کړیږی
دقفنس هسے دځان پہ اور تغړیږی
(بے[3] انصافہ) رنګارنګ ظلم بوے کاندی
زړۂ ے ځکہ دیتیم هسے ژړیږی
(زۂ امید[4]) کوم دوصل غنچ لہ غرہ
دغہ غرے د ذرے هسے وریږی
څۂ کہ سترګے ے پہ خوب شی ظاہر پتے
باطن ستا دعشق پہ خیال باندے غړیږی
مستقیم شومبنګیرک پہ باغ دوصل
شین طوطی ترے پہ ارمان ارمان شړیږی

---

[1] فتح محمد خان [2] داد مومن تخنبہ دہ چہ پہ دشمن "اشداء" وی او پہ خپلہ کښے "رحماء" [3] (بے انصافہ) رنګارنګ ..... الخ (؟) [4] (زۂ امید) کومہ .... الخ (؟)

که هزار ځله پښتی د صبر ورکړم
د بیلتون په زلزله مې زړهٔ نړیږی
د وصال دار وکه خورم هیڅ عمل نهٔ کړے
لا مې تن د غم یرقان باندے زیړیږی
که دسترګو په پول بند چه موج د زړهٔ کړم
هر یو څاڅکے مې په مخ د روی خوریږی
څوک له دیره جُرمه خلاص شی له سزا نه
څوک د لاسو پښو نه بے جُرمه تړیږی
چه خوراک مې سخت طعام د غم ستم شو
په شکم کښے مې پیچش کوی اړیږی
تیغبندی چه مې د صبر کړه یغار ه
ځکه مانه دِ ګولۍ د غم سریږی
د نرګس په طلب ځان بورا ملنګ کړهٔ
ځکه هر باغ کښے په هر یو ګل غوړیږی
دوه معمول دی څوک تنور او څوک اتهٔ خوری
شاد محمد وِتش په تش دیدن مړیږی

---

چه کوی د بے وفاؤ څوک یاری
تل به وینی د بیلتون سختی خواری
خوشحالی به پرے حرامه یو ساعت وی
همیشه به وی په خولے کښے د مزری
د غمونو په تلخیٔ به ئے حلق تریخ وی
شمکی نه به پرے تریخ سکی تری

(د یارۍ) د بے وفاؤ څوک هوس کړی
لکه ځان په زوړ بلا خوله ته سپاری
(دچا یار) چه په یارۍ د بے وفا شی
هغه کس به د موړ پلاړ وی آزاری
یو ساعت به ترینه کوز په زمکه نهٔ وی
په مرکب د غم به تل کوی سوری
بے وفا که ظاهر سپین سپین روی ښکاری
څهٔ که ښکاری لښته سپینه انباری
بد نصیبه چه شی ګیر په بدو چارو
یو زړه خوله مکان وی سخا د نسواری
د لوهار خوا کښے چه کښنے سړے سوزی
معطر کړی دماغ خوا د عطاری
چه اخته د بے وفاؤ په یارۍ شی
شاد محمد ده تل ئے بخره شی ناری

---

د بیلتون پلکونَ خورم په ککرۍ
چه اخښتے ے دے نوم ستا دیارۍ
عقل هوش صبر زمانه به څهٔ غواړی
ما باټللی دی دعشق په جوارۍ
د هوسئ پښان ے خوب په مین تون دے
یو ذرّه ے نشته خوب په قرارۍ

خوشحالی شوله په ما لیلة القدر

په غمونو کښے دِ ډوب یم تر مری
دا زما هسے اوده نصیب مے خوار شو
چه مے لښته غوښوی سکه مصری
د بیلتون داوړه تن زما بهر کړه
د وصال مے کړه قبول منت زاری
هغه دم تکه کباب مے په سیخ سور کړی
چه کړی تورے خماری ستر گے نری
آدم زادو کښے دِ سیال د جمال نشته
هم د حُسنه دِ شرمیږی بناپیری
د کرم د بحره کم به دِ څهٔ نهٔ شی
که دِ پیټ کړی شاد محمد په سلاری

---

چه مری د چاچه د عشق په دام شی
اواره ترے عقل فکر ننګ و نام شی
چه د عشق جنون ئے پښه په گردن کیښ دی
که فقط افلاطون وی عقل خام شی
عاشقی کړی هسے چارے لاس تر لاسه
چه غلام کاندی بادشاه بادشاه غلام شی
د هغے عاشق غم دروی په ماتے
چه سیراب دیار د سرو لبو په جام شی

---

لـه هغه څیز چه په لاس نهٔ راځی ئـه مصری توره ئـه شاعر دا لفظ
هر ځائے "په قطع" یا "په قطعی" په ځائے استعمال کړے دے ۔

چه عاشق جور ستم د یاره مُومی
په ځوانئ کښے الوول لکه دلام شئ[1]
چه ے یار په سپین رخسار زلفے خورے کړی
لکه ماتے د کفارو په اسلام شی
هر عاشق لرم د عشق په ضمیر اوخوری
باقی کله دهغه صبر آرام شی
بے صبری د هر عاشق په حق زوال دے
خاک په سر شی چه دچا صبر تمام شی
چه صابر نهٔ وی عاشق نهٔ وی دسره
د صابر عاشق ته عرش کرسی یوګام شی
شاد محمده په جهان به سربالا شے
چه قبول دِ دَ دلبر په درسلام شی

---

تل وفا د عاقلانو سریکار دے
هر بے عقل نالیدونے جفادار دے
په خمیر کښے دهوښیار وفاده کړه
دبے عقل بدخصلت جفا روزګار دے
دهوښیارو عاشقی ماوا[2] جنت دَه
دبے عقلو عشق مثال د دوزخ نار دے

---

[1] دلام دتوری (ل) په شان کوږ یا کونتي . [2] کور. دورستنیدلو ځائے . دارستوګنے ځائے . جنت الماوا۔

عشق گل دے گل پہ بوئی خپل معلومیږی
نۀ پټیږی بوئی غماز گل پرے اظهار دے
(دگل) څنګ کښے اغزے دے سرے خون کړی
هر عاشق د زړۀ مطلب گل ئے بے خار دے
پتنګ کیں چاپیر قربان کړی ځان ستی کړی
چراغ ځکه په جفا سره نامدار دے
که کونګټ په خطائے په ډیوه مرشی
بے پتنګه په عاشقو کله شمار دے
که عاقل اوکړی جفا بیا ئے وفا کړی
هر بے عقل د جفا نه خبردار دے
د وفا د کاروباره خبر نۀ وی
د جفائے همیشه گرم بازار دے
بے آشنا هوشیاره تل په مدار مو می
د احمق آشنا نه پښه د مار[1] مدار دے
د بیلتون زړۀ په عاشقو نۀ سړیږی
خزان غل زړۀ کښے د باغ د شین بهار دے
کله کله جفائی کله دفائی
نه چه یونیب د جفاغم په ما بار دے
ځان شاکر په خپل نصیب کړه شاد محمده
که دِ مرګ دیار دلاسه پاس په دار دے

---

[1] د مار پښے نۀ وی ۔ یعنے ناموندونے ښین د مرغئی پښئی ۔

په باران د صبر باغ ـے د زړهٔ شین د ے
د فریب د سیاهئ نه ے تن سپین د ے
کم به کم کرم تور په تور هر چا ته خیم
تن ے تله زړهٔ په مثل ـے آئین د ے
څهٔ که نشته د ے شمیر زما په لاس کښے
عقیده صبر ے توره هم سنګین د ے
عجز ښهٔ د ے تکبر یو لوئے آفت د ے
له درګاه په تکبر رجیم لعین[1] د ے
د اسبب د ے د شیطان چه بیل بیل واڼ
ګنده حق په حقه یو د اسلام دین د ے
د ینګ کوکس با تور که واړه په بت غټ دی
که وړه ده د مچئ لاړے ګبین د ے
لوئ رب له ده چه شاه د ے د شاهانو
چه خالق رازق او رَبُّ الْعَالَمِیْن د ے
لوئ کبر ـے په خیال نهٔ وه راغلے
څکه هر نعمت پیدا د د ے زمین د ے
په دنیا کښے که وروستے راغے ظهور ته
دوست د رب رسولؐ اول هم آخرین د ے
د نبیانو د سرتاج زمونږ نبئؐ د ے
هم د واړو مرسلانو بهترین د ے

---

[1] یعنے لعنتی شیطان د خدائے له درګاهه شړو شے د ے ۔

چه آدمؑ ابوالبشر د کُل جهان دے
دے رحمت خیرالبشر رو بنان جبین دے
چاریاران ئے څلور رکنه د اسلام دی
اصحاب ئے هر یو شاه مسند نشین دے
**شاد محمد** لمن تینګه د رسولؐ کړه
چه شافع په آخرت د مسلمین دے

---

بار د غم په الغیاث ے د زړهٔ کم شی
قد رے سپک شی چه ے دُور د سترګو نم شی
چه ے آه د خولے نه اوځی زړهٔ ے سپک کا
ګند زړهٔ به ے په تیغ د غریب قلم شی
زهٔ چه طمع د هوس د وصال اوکړم
هغه طمعه په بیلتون راته لوئے غم شی
چه سمنّد د خپل امید په لار روان کړم
د امید اس ے په بل طرف ته سم شی
د وصال په دنړائیی چه ے زړهٔ بند شی
درنګ لا نهٔ وی په بیلتون تیار هٔ تو د تم شی
چه په ما د صبر دم پوکے ناصحه
اژدها خوړلے د وغ کله په دم شی
د مجنون پشان به ولے ابتر نهٔ یم
چه د یار رابان دے رحم نهٔ کرم شی

---

له اس

دوحشی پیشان به نهٔ کوځم بے ځا یه
چه مے ستا زلفے په غاړه کښے خم خم شی
یو ساعت به قرارے صبر او نهٔ کړی
چه په تیر د عشق سورے د چا شکم شی
(ستاله عشقه) به وانه وړم ان که مړشم
که یقین مے دے په قول یا په قسم شی
په عاشق بے معشوقے صبر حرام وی
د بوړاپیره په کلو صبحدم شی
شاد محمد به هله ځان په روغو شمار کړی
چه خپل یار دے لاس ترغاړه فم په فم شی

---

په خولے حال د شرمه نهٔ شمه ویلے
د عشق تیر مے د ضمیره د ے ویتلے
یو طبیب مے د مرض تشخیص او نهٔ کړو
بیمار پروت یمه یواځے دم ختلے
د مریض د زړهٔ طاقت په طبیب جوړی
بے طبیبه هر بیمار وی غم وهلے
زهٔ د عشق په رنځ بیمار بے خوده پروت یم
بے وصاله بل علاج مے نشته بنکلے
د تهمت په خم جامے مے دی رنګ کړے
په سر ستر کو ستا تهمت مے د ے منلے

---

ل (ستاله عشقه) به ... الخ (؟) (دوفانه) به ... الخ (؟)

۲ خولهٔ په خولهٔ .

هر عاشق چه د تهمته کوی ډډه

عاشق نهٔ وی نفس شیطان وی شرموے

چه عاشق دیار په عشق کښې دیوانه شی

باطن روغ ظاهر ئے اولی کوړ وګلے

شاد محمد وائی توبه به له تانهٔ کړم

که مے مات شی د تهمت په کوتک اوے

---

کاروبار د دنیا واړه فریب دے

ټګی مکر د دنیا له زیور زیب دے

که پو هیږی څوک په مکر فریب جعل

په فراز وی ناخبره په نشیب دے

دینوی سړی له غم د دنیا نشته

بیا د هغه چه له مکره ئے ډک جیب دے

ظاهر ښکلے دا دنیا باطن ئے بد دے

بهر سُور په کښې سپین تور تخم د سیب دے

که د مکره څوک ژړا کړی ژړا نهٔ ده

ژاړی هغه چه زړهٔ ډک د چا غریب دے

اس د صدق په میدان کښې نهٔ کودیږی

د فریب اس په هر عیب کوډ په عجیب دے

مشهور شی بیل بیل ملک په خپل خپل فعل

لکه یاد په لوټے پرتوک وطن د کیب دے

---

له غریو ۲ قبلوونکے - جواب ورکوونکے -

آخر سوړ به شي پرے پوړته شاد محمده
داجل اس درته زين بلا ركيب دے

---

كړ رفتار آسمان د قهره ډك دے
ځكه غشے مے دغم په زړګی لك دے
دمحی مسے ترپيږم تويښه لاند ے
چه مے ښخ په وجود ستاد عشق سِك دے
تير په كړت آسمان اشراف دعشق ولی
بے بهرے او د ارزالو په كومك دے
چاق چمند نفس شيطان رقيب غماز شو
دعاجز مسكين عاشق په ملك كښے سك دے
زمانه آسمان چه دواړه سره يوشی
په پالنه ده كمين كښے څه شك دے
د رقيب غماز ضرر د بل عادت وی
دما رسيږی د بل خوړل دلړم تك دے
لږ نظر زما ديار په حق كافی دے
مس آهن لره اكسير يكار يو كك دے
په شعاع دعشق له شرمه كوشه گير شوم
لكه پټ چه تل د نمر بنا پيرك دے
عاشقی لذيذ طعام دے بے مثال دے
مج بيلتون پكښے تبيح وصال نمك دے

---

له هغه سُنبه چه دكبا نوښكاد پرے كوے شي۔

دغم زهر ے په کل وجود خوارهٔ شو
نکو ے ماد بیلتون رابانده چک دے

چه هیڅ عدل ئے بادشاه د وصال نهٔ کړی
شاد محمد ځکه د نګیں ولاړ هک پک دے

---

چه په مخ د الوول خوارهٔ اشعار شی
هغه د رنګ ے زړهٔ په تن کښے ناقرار شی
د رنځور صحته نهٔ شی بے حکیمه
په لیدو د طبیب روغ زړهٔ دبیمار شی
بنهٔ صحته د رنځور په طبیب کیږی
بے طبیبه لږ مرض په رنځور بار شی
تهٔ طبیب مرهم زما په جګر کیږ ده
بے لتانه ے د زړهٔ زخم بسیار شی
تهٔ زما د زړهٔ مرهم ئے اے دلبره
بے لتانه په ے روح له تن بیزار شی
د رحمت په لږ نظر اوګوره ما ته
مس وجود به ے د سرو زرو په شمار شی
چه د خاور ے دکوڅے رابانده راشی
مشک عنبر هم شرمنده راته عطار شی
ستاد مخ پیشانے نور مخونه نشته
چه بشکاره کړے کل کلونه شرمسار شی

---

ے ویښتهٔ ۔ دشعر یا شعر جمع

کله کله زهٔ په تخت د وصل کښینم
کله کله تلے غم راته دوبار شی
ستا زلفان دے دی نیولی پرے به نهٔ بندم
که وجود دے کل قطرے په ذوالفقار شی
په هیڅ وزن به وانهٔ وړم ستا له دره
که دے سر لکه منصور[1] هسے په دار شی
یو ساعت دے بیلتون کفر دے له یاره
چه جدا شی هغه کند دے ته کندار شی
شاد محمد ستا د بیلتونه امان غواړی
چرے خلاص په روئ د پاک غنی ستار شی

---

لاس په نام درته ولاړیم په زاری
هم وهم په دواړه لاسه ککری
خوب خوراک خندا دے نشته رنگ دے زیړ دے
اوچے شونړ دے گریوان لوند تبه نری
دا کل واړه په وجود دے محصلان[2] دی
هسے رنگے په ما اوکړے ستا یاری
کله ناست یمه خفه کله خوشحال یم
کله ډوب یمه په غم کښے تر مری

---

[1] د منصور ذکر وړاندے تیرے شوے دے.
[2] مالیه یا ټیکس وصولوونکے.

دا همه وړه قبول زما په ځان دی
که له دینه نورے سختے وی خــواری
بے بیلتونه چه بیلتون مے قبول نهٔ دے
که مے ځوړند څوک پشان کړی دتوری
جدائی دیاره کفر قطــعی ده
څهٔ وړوکے څهٔ بالغ څهٔ په پــیری
وابه نهٔ وړم ستا ددړه په آسانه
که د سر زما کړهٔ لاندے ترســری
عاشقانو کښے به هله سربالاشم
که پخپله د کرم مــــــړ په کتاری
چه بناسُت زما دیاړ په هسے شان دے
ترے به ځار کړم کل آدم او بنا پیری
شاد محمد به په سرو هــله حساب شی
که دیت کړهٔ دوصلت پــه سـ لا ری

---

مظهر چه ددلبر راته مجمر د رخسار شی
باتورے په ضرور لکه سپند په یو وار شی
په ننګ چه مے دجنګ زما ملنګ کو وصال راغ
بیلتون سوے لړمون به د راتلو توبه ګار شی
خمخم چه د صنم زلفے هر دم په صدر تپال خوری
دما ر هسے لیوال راته هر حال دګذار شی

---

[1] زنانه دینمین څادر، پړونے، شال [2] دابنکاره . [3] انګیټۍ د سپیلنے .

سوری جام که د انعام راته په کام کړی د سرو لبو
ملال به هغه جال د ابد خصاله اغیار شی
مارو که په رورو د لبو سرو کړی تینګ لرے
معدن د ګلبدن به د ګوهرو اظهار شی
دکه ۱ داستا ء لب خندان زما د ځان سره که مل شی
قریب بلا رقیب ے تر حبیبه ریبار شی
غرقاب چه په نقاب سی د آفتاب له خجالته
بیرون که له درون په بنه مضمون ے دلدار شی
هیر تیر غمونه دیر به شی د ذرهٔ د شاد محمد ه
تار تار که تور اشعار ے ستا د غاړے ز نار شی

---

که عاقل وی چه زر نهٔ لری خودخر وی
که احمق وی دیر عاقل وی چه ئے زر وی
دُنیا دار ته چا کم عقل د ے ویلی
بے دُنیا که وی عاقل هم آخر لروی
دُنیا دار ته خلق د لرے پورته کیږی
بے دُنیا ته خلق بے هیڅه نیغ په شروی
دنیا دار که چا له یو دمړے ورنهٔ کړی
هر سړے ئے امیدوار ولاړ په در وی
محبت د لی قلبی له منځه لاړ شو
دنیادارو بے طلبه خلق نوکر وی

---

۱ دکه داستا) لب خندان ..... الخ (؟) ۲ ویښته

هیڅ لحاظ د دوستئ پاتے نهٔ شهٔ ورک شو
دنیا دار گنړی خلق دوست که ان کافر وی
که سردار وی چه دنیا ورځنه نهٔ وی
د هندو نه سپک د خلقو په نظر وی
دولتمند هندو به خلق لاله جی بولی
خوار عالم په مُلاگی نوم مقرر وی
میاں ملا که بے دنیاوی سپک ئے گوری
دولتمند یهود مجوس به ورته غر وی
دُنیا خلقو دین ایمان هم ئے عزت کړهٔ
په دے وقت کښے د دنیا مرید اکثر وی
ټول عالم دنیا پرست شو دین ئے پریښود
د دنیا دشمنان وی به خو کم تر وی
په دوستئ کښے د دنیا ایمان ترِ لاړ شو
د قارون به تر قیامته پنډ په سر وی
د دنیا مثال داور دے خلق سیزی
نزدیکت داور د بل سیزل خبر وی
فرض واجب سُنت به نهٔ کوی الله له
د دنیا په طلب تل بسته کمر وی
لوئے واړهٔ په دُنیا هسے راغوریږی
لکه مچ چه په گبین کښے بوخت وزر وی

---

ـه یو قوم چه داور پرستش کوی ۔ ـه دحضرت موسیٰ علیه السلام د تړهٔ زوئے چه ډیر دولتمند وو ۔ خود حضرت موسیٰؑ د دښمنئ له کبله خدائے پاک په زمکه کښے سره د خپلو خزانو ننخ کړ ۔

دا دنیا بد ده بلا ده په باطن کښې
په ظاهر کښې دهر چا لکه جګر وی
نادیده ته غم بنا دی سره یکسان وی
ګوندے چاکړے په ځانے دغم اختر وی
شاد محمد ده دُنیا دیر دی شرموله
باطن خار ظاهر په مثل د ثمر وی

---

هر ساعت زما په زړهٔ د آشنا خیال دے
امید صبر پرے بل نقش د وصال دے
چه عاشق شی بے امیده صبر لا ړشی
کبرجن شی واڼ کبر له زوال دے
عاشقی صابر له صبره کړی بے صبره
د بے صبر و عشق اوګوره څهٔ حال دے
عشق بے صبره د عاشقه صبر غواړے
د صابر عاشق جهان کښې عدم سیال دے
بیلتون تخبنه کړم ګولو ته د غمونو
په سرچیت ے وظیفه د صبر ډال دے
که خوبان د زمانے بے زیبه نهٔ دی
زما یار د توُل زیب د جبین خال دے
په مرض د عاشقئ چه څوک رنځور شی
بے صبرئ نه په عاشق باندے بوخ پال دے

---

ے یعنی سیال نے نشته.

دوصال عمر ذرّه په عاشق تیر شی
دبیلتون ذرّه ساعت په عاشق کال دے
ربے نه عشته ے یو ژک د صورت نښته
د عشق بوټے د زړهٔ په سر نهال دے
د عاشق چه وسیله د دیدار نهٔ وی
دوصال هم هغه عاشق کنګال دے
چه دیاره سره کښینم په خلوت کښے
دبیلتون د راتلو هلته څهٔ مجال دے
شاد محمده چه غلام د دلبر نهٔ شی
یقین اوکړه چه هغه عاشق ارزال دے

---

زړهٔ ے دک د جواهرو ګنج د روم دے
په ظاهر کښے دینار باز دے ظاهر بوم دے
علم لږ عمل پرے دیر کول واجب دی
شیطان بنهٔ که خبردار په کل علوم دے
چه په ځان په بل پیرزو کړی داسخی دے
بل لا پریږدہ چه ځان هیرکړی دغه شوم دے
چه په ظلم لاس اوږدهٔ کړی رحم پریږدی
بے ګناه سزا د ظلم بل مظلوم دے

---

له خوار بے ماله مطلب دا چه د وصال نه محرومه دے - له دا مصرع
هم داسے نیک ده - بناقی چه داسے وی - "په ظاهر کښے دینار باز دے باقی
بوم دے". (دینار باز ته هم وائی او) بوم کوڼکی ته وائی -

په صفا آئينـه[1] کښې رنګ صفا ښکاريږي
غبارې آئين کښې رنګ صفا لزوم دے
عنقانۀ دے چا ليدلے نوم ئې ښته دے
دوفا هم په دنيا باندے تش نوم دے
زهر مرګ کړي چه په خوندے ئې نۀ پوهيږي
څۀ ترخ دے ډير دوا هم ډير زقوم[2] دے
دوه هو ښيار په اومه تار بسته ګوزان کړي
دوه کم عقلو ته نارئي[3] لکه تار اوم دے
ځي راځي غم و ښادي هم يو تر بله
جوړ ناجوړ ته خپل اجل کله معلوم دے
ځان لنډے کړي بډيره کله بريت په تاؤ کړي
لکه هفت اقليم وارۀ زير محکوم[4] دے
غير فاسد خيالونه وارۀ دذړۀ دور کړه
شاد محمده رب اسره کړه رب قيوم دے

---

(۳) ساعت دعشق دردونه په ما زور وي
په بدن باندے ے بل دمينے اور وي
يو ساعت ے بے لتانه آرام نۀ شي
چه ډِ نه وينه اور کښې زما کور وي

---

[1] "آئين" پکار دے [2] يو ډير ترخ بوټے [3] دځومنے لاک نوے يا مضبوطه رسئ [4] محکوم دلته دحکم په معنے استعال شوے دے. يعنې دحکم لاندے -

ستا دیدن ته زما هسې ستلوسه ده
لکه تږې د ما بنام روژې ته کوری
په وصال یې مې ستا جگر زخمي شو
هسې شان لکه دیبلې چا په لوږ وی
کناره یواځې ناست یمه ځان ژارم
په طرف د دریاب سترګې څلور وی
که د ړیرې دراتلو په ما چا اوکړ
سرو مال به ور پیشکش کړم که څه نور وی
د ورېځو هسې ترس په ما اوشو
چه ئې اوښې دم چا د پاسه اوری
تښک راشی ترې چا پیرشي ځان پرې مړکړی
چار وایه د عاشقانو سخت پیغور دی
ستا په عشق کښې مې رنګ زیړ شو نړې مې اوچې
په ژړا مې شولو سپین د سترګو تورې
بې له یاره مې همه وجود ستی شو
لکه سیخ چه د کباب په اور نسکوری
تورې زلفې د کمند زه د پرې بند کړم
ګوره اوربل دی لکه جال را باندې خوری
معشوقه چه هر څوک غواړی په آسانه
لکه اونیسی په لاس د آسمان ستوری

په خدمت د معشوقې خوشحاله اوسه
لکه زوی په خدمت د پلار د مور ی
معشوقې ته هسې اوسه شاد محمزه
شرمنده لکه مخ تور چه په خره سوری

تمت بالخیر

کاتب حقیر عبدالودود از موضع مردان بتاریخ ۳۰ سنه ۱۳۳۰ بیست ماه رجب
باتمام رسید فقط

## دمردان دپښتوژبے نامورشاعراوخان

# شادمحمدخان مرحوم

## دپښتو اشعارو دیوان سریزه

په قلمه دعبدالحلیم اثر افغانی

پس له حمده له دی ودہ واۓ دا
دا په دی دَ ښکلی مخ ولاړ گدا

داشعر دحضرت عبدالحمید بابا مومند دماشوگگر دپښتو منظوم کتاب نیرنگ عشق او لنے شعر دے اوما عبدالحلیم اثر افغانی زوئ دسید کریم زوئ دحافظ سیداحمد چه دسوات دباباجی غوث دسید و مرید وو اود ۱۳۸۱ھ مطابق ۱۸۶۳ء عیسوی دسوکاوئ په جهاد کښے شامل وو . داشعر د خان شاد محمد خان مرحوم دمردان زوئے دخان میرافضل خان زوئے دخان احمد خان دمردان ددیوان په سریزه کښے راوړی - خان احمد خان دمردان هم دسوات دباباجی غوث دسید و مرید وو اودسرکاوئ په جهاد کښے شامل وو .

خان شاد محمد خان که دمردان دخانانو دکورنئ یو معزز فرد وو . نو ورسره شاعر وو ، ادیب وو ، عالم وو ، عارف وو . ددهٔ د دیوان په سریزه کښے مونږ دحمید بابا پورتنے شعر په یو ښو خاص مناسبتونو سره راوړے دے -

**اولنے مناسبت :-** دشعر اوادب په صفت کښے اشتراک دے . خان شاد محمد خان شاعر اوادیب وو - حضرت حمید بابا هم شاعراوادیب وو - اوظاهره خبره ده چه د ښکلی مخ سره مینه دهر یو شاعر دشاعرئ بنیادی محرک وی - چه شاعروی د

عشق او محبت منزلونه په ے سرکړی وی ۔ که هغه د ن ورځے نه دسل کاله مخکښے زمانے خان شاد محمدخان دمردان وی که دهغه درباری شاعرد کالوخان یین وی ۔ دیسین دیو غزل دمطلع او مقطع شعر ونه دی ۔

مطلع   زبخت خویش ملولم جور جانان څهٔ کووُم
پہ ورځ دغم یمه پیدا دوړ دوران څهٔ کووُم

مقطع   حب الوطنی من الایمان دے ویکن یسین
بےله ماموته دوکودر دکالو خان څهٔ کووُم

دمړیو شاعریو محبوب وی هغه یاده وی ۔

دویم مناسبت :۔ دحمید بابا دپورتنی شعر په مثال کښے دراوړلو دویم مناسبت دادے چه دحمید بابا زوئی وو عبدالقادر چه په ۱۱۷۲ سنه هجری مطابق ۵۹-۱۷۵۸ء کښے دپانی پت په جهاد کښے شهید شوے وو ۔

۲ ۔ دمردان دخان شاد محمدخان شجره ده شاد محمد خان ابن میر افضل خان ابن محمد خان ابن لنگر خان ابن خان فتح خان او دا خان فتح خان هم دپانی پت جهاد کښے دحضرت سید عبدالقادر گیلانی ابن عبدالحمید بابا گیلانی مومند دماشوگگر ابن حضرت السید الشیخ عبدالحق دمتنوسره اوږه په اوږه دپانی پت په میدان جهاد کښے ملگرے وو ۔

دحمید بابا دزوئی عبدالقادر دوه زامن وو (۱) احمد (۲) محمد

محمد ابن عبدالقادر ابن عبدالحمید بابا :۔ دحمید بابا دزوئی عبدالقادر قبر دخپل نیکهٔ عبدالحق دمزار سره په متنی کښے دے او دمحمد ابن عبدالقادر قبر د خپل نیکهٔ حمید بابا دقبر سره یو ځائے دموضع ماشوگگر په جنوب او دشیخ عبدالمومن قادری دمزار نه مخ په قبله دے ۔

احمد ابن عبدالقادر ابن عبدالحمید بابا :۔ دے خبرے ته اشاره اوشوه چه دحمید بابا زوئی عبدالقادر او دمردان دخان شاد محمدخان نیکه فتح خان د

پاڼی پت په جهاد کښې ملګرې وو۔

د پانی پت د جهاد نه پس واپس کیدلو د مردان د خان فتح خان په وینا لوے غازی احمد شاه ابدالی د حمید بابا نوسی احمد له د مردان په طورو کښې سیرئ ورکړه۔

طورو :- د مردان خانان په قام کمال زی دی۔ د کمال الدین داود متوفی ۷۲۷ هجری مطابق ۱۳۲۷ء زیږه دے۔ د دے داود بی بی صاحبه سیده میمونه په قام ګیلانی سیده وه شجره ئے داده۔

سیده میمونه بنت سید ابراهیم غلزائے غزنوی ابن نور الدین ابن عبدالقادر ثانی ابن عبدالله ابن شیخ عبدالقادر جیلانی۔

(د روایت د نواب خواجه محمد خان ارهړی د کتب خانے د قلمی کتاب مجمع الانساب دے) په دے وجه په طورو کښې د ګیلانی سادات و بوه لویه کورنئ د شیخ عبدالقادر جیلانی د زوئ سیف الدین عبدالوهاب په اولاد کښې د حضرت سید شیخ محمد شاه مندورن متوفی ۸۰۰ هجری مطابق ۱۳۹۷ء د اولاد ده۔ دموق په شمال کښې شاه بابا نه دے نسله دے۔ اود خان شاد محمد خان د نیکهٔ احمد خان په همعصرو کښې حضرت سیده خدیجه ګیلانی د موق له دے خاندان څخه وه۔ داهغه عارفه عالمه بی بی وه چه په سید احمد بریلوی ئے د کفر فتوی لګولے وه۔

۲ دویم ګیلانی خاندان :- په طورو کښې دویم ګیلانی خاندان د حضرت شیخ میران محی الدین عبدالقادر جیلانی د بل زوئ سید شمس الدین عبدالعزیز د زوئ محمد الهتاک د اولاد دے۔ په دے خاندان کښې د حضرت السید الشیخ محمد یونس ګیلانی مزار مبارک د طورو په مغرب کښې د ناله کلپانی په تبلیزه غاړه په خاوره کښې دے د طورو عالمان لکه مولانا محمد اسماعیل مولانا محمد اسرائیل مولانا عبدالجمیل مولانا عبدالجلیل زامن د سید حفیظ الله ګیلانی له دے نسله دی۔

۳ دریم ګیلانی خاندان :- په طورو کښې دریم ګیلانی خاندان د حضرت میران محی الدین شیخ عبدالقادر جیلانی د زوئ ابوالفضل محمد جمال المسندین

د اولاد دے دا هغه محمد دے چه د دهٔ په نوم حضرت شیخ عبد القادر جیلانی ته ابو محمد عبد القادر وائی - دمردان دصوابئ دمیان ډیرئ ګیلانی سیدان له دے نسله دی -

احمد ابن عبد القادر ابن عبد الحمید ابن عبد الحق دد ے ابو الفضل محمد له اولاده دے - دماشوګګر حمید بابا مومند په قام ګیلانی سید وو - د دهٔ نوے احمد چه طوړو ته راغے په نوړو لفظونو دکمال زو خانانو مرکزی مقام طوړو ته دګیلانی سید انو غلورم خاندان راغے - د طوړو په کاغذات مال کښے دد ے احمد نوم په ملا احمد د توړو یادشوے دے او د ماشوګګر په یاداشتونو کښے سیه احمد توړو یادیږی - د دهٔ د ده زامن وو -

(۱) عبد الرحمان :- داحمد دیو زوئ عبد الرحمان مزار دمالاکنډ ایجنسئ دسوات رانیزی زی په موضع بتار کښے دے ګویه کوونئ ده دسوات دبابا جی پیرخانه ده -

(۲) عبد الله :- داحمد دبل زوئ عبد الله مزار دصوابئ خواته په مینئ کښے دے - د دهٔ یو زوئ وو -

علی زین العابدین چه په کومو ورځو کښے سید احمد بریلوی په هوتی مردان حمله کړی وه او دمردان دخان شاد محمد خان نیکهٔ خان احمد خان سره دخپلو ورو دسید احمد بریلوی په خلاف جنګیده - دسید احمد بریلوی په خلاف علی زین العابدین ابن عبد الله ابن احمد د تورو ابن عبد القادر ابن حمید باباهم جنګیده - علی په دے جنګ کښے شهید شهٔ دسید احمد بریلوی ملګرو کلیاړئ ته ګذار کړے وو - دطوړو په مغرب کښے دمنی خیله سره دکلیاړئ نه را اوبنکلے شه - مزارئ دمنی خیله په مغرب کښے دلارے په غاړه دے -

دحمید بابا اودخان شاد محمد خان دواړو ترمنځه دا تاریخی مناسبتونه وو چه دد ے له مخه دشاد محمد خان دپښتو اشعارو دیوان په سرېزه کښے

اثر افغان دحمید بابا دکتاب نیرنگ عشق او لنډ شعر دلته راوړے دے ۔

دعشق نیرنګئ :۔ داد عشق نیرنګئ دی چه دپښتو نخوا دیرلوئے لوے مشاهیر بزرګان بادشاهان، خانان او قومی سرداران نے شاعران کړی دی۔ مثلاً د ۶۳۲ھ مطابق ۱۲۳۴ء دزمانے دحضرت خواجه غریب نواز مشرمرید دے۔ حضرت خواجه قطب الدین محمد بختیار کاکی دحغه شعر دے۔

په فراق کښے دغ اوباسم له خونه زړګی کوکی
زۀ بختیار خاورے ایرے شوم راته اوګوره ملوکے

دد ۀ نه مخکښے دحضرت تاج الدین محمد ملکیار المعروف په تاج الدین بوری الشاعر شهید ماه صفر ۵۷۹ ھ/مئی ۱۱۸۳ء دملتان دجنګ ماه ذی قعده ۵۷۱ھ مئی ۱۱۷۶ دورخو یو نظم دے ۔

یا رانو راشئی تول شاو خواشئی
دشهاب پر ملاشئ- څۀ لبه تبنتو
ځښتن مو مل دے

اسماعیل پوشنجی :۔ دتاج الدین محمد بوری الشاعر دوالدماجد علی شاه مردان کشر رور وو اسماعیل چه د بلوچستان دپښین داستوږنے په وجه په پوشنجی نامه یادیږی دده لور په تاج الدین محمد ملکیار وادۀ وه - ملکیار د بلوچستان په وادئ بوری کښے وو - دسلتان په جنګ کښے دغه رجزیه نظم ئے ویلے وو - او بیا دوادی سنده په سرحد دبحیرۀ عرب په غاړه په بیانه کښے شهید شوے وو۔

سلیمان ماکو غزنوی په خپل کتاب تذکرة الاولیاء زمانه تالیف ۶۱۲ھ مطابق ۱۲۱۵ء کښے دملکیار دغه نظم داسماعیل پوشنجی پارکے اودموسی - حسن علی شاه مردان

---

په حواله د تاریخچه سبکها ئے پښتو طبع کابل تالیف دآقا ئی جیبی مرحوم (اثر)

او اسماعیل پوشنجی ځلوړو وارو دباباجی حضرت عبدالله بیتنی نیکه یو نظم
راوړے دے ۔ دهغه د اول سر یو شعر دے ۔

لویه خدایه لویه خدایه ستا په مینه هر هر ځایه

دغه زمونږ مشران نیکونه دی چه هم بزرګان دی اوهم دمیدان جنګ
شهسواران دی اوهم د پښتو ژبے شاعران دی ۔

ددے مثالونو راوړلونه غرض :- ددے مثالونو راوړلو نه دا غرض دے.
چه پښتون چه یونګیالے جنګیالے او توریالے قوم دے ۔ ددے قوم مشرانو
لکه چه دجنګ په میدان کښے توری وهلی ۔ دشعر او ادب میدان ئے هم سرکړے
دے ۔ چه خبره دحسن او عشق وی نو لکه دمردان دامازو ګړهئ دحضرت
سید حسین بابا وائی ۔

واحسین دے چه صفت کړی دګلرخو
که نسیم د صبحدم دے غنچی سپړی

دخان بابا خوشحال زوئ عبدالقادرخان خټک نقشبندی چه د لاهور د
حضرت شیخ سعدی صاحب مرید دے او حضرت شیخ سعدی صاحب دسید السادات
آدم بنوری مرید وو او په دغه نسبت عبدالقادرخان خټک ته خلیفه صاحب وائی
ددے بزرګ عبدالقادرخان شعر دے ۔

چه ئے مینه دښځو په زړګی نهٔ وی
د مغوئ مخونه نهٔ دی دکتو

ددهٔ یو بل شعر دے ۔

زما داغ عارضی نهٔ دے چه به ورک شی
دلاله غوندی مے داغ له ځانه راوړے

دحسن سره مینه چه په زړهٔ کښے کوم درد پیدا کوی ۔ لوئے ځیز دغه
درد دے او دا یو داسے صفت دے چه دا دقدرت عطیه ده ۔ دحسن سره مینه

اکثر داسے اوشی چه په اول سر کښے مجازی وی ـ بیا حقیقی شی د صورت سره مینه د صورت پید اکوونکی طرف ته وراندے شی ـ

حمید بابا فرمائی سه

حقیقت وته چه پل مجاز وایه شی
می باید چه دی شکست ته ساز وایه شی
ورانول د سازه ولو په مطلب
هیځ عیب نهٔ لری ملا سه چیچه لب

اوچه کله دیو شاعر مینه د حقیقی مینے شکل اختیار کړی نو ددهٔ ذرهٔ هم د انوارو مرکز اوګرځیږی ـ بیا که د رحمان بابا وائی سه

که نوی خلق قدمونه بږدی په زمکه
ما دے ایښے په آسمان قدم د ذرهٔ

بنیادی ځیز مینه ده ـ مینه یو لطیف احساس دے د ښکلا سره تعلق لری او چه د مجاز د فانی ښکلا د حقیقت دابدی ښکلا سره مینه پیدا شی نو دداسے شاعر په شعرونو کښے معنویت او روحانیت پیدا شی ـ بیا د فطرت د اسرارو ترجمانی کوی ـ انسانی فضائل په نخښه کوی د اخلاقو درس ورکوی د خان شاد محمد خان هم عصر او درباری شاعر مرحوم عمردین عمر د مردان وائی سه

چه هر څو وته نظر کړم اثر وینم ستا د مینے
هسے نه چه شه یو ځے ستا د مینے اثر دیخوا

یو شاعر په داسے حال کښے ټول کائنات د مینے په دریاب کښے ډوب وینی ـ عمر دین وائی سه

اے په قد لکه الف د الحمد
یا خو سرو یا چنارے سر تا پا
ګل رخسارے ګل عذارے ګل بدن نے
ګل اندامے خو ګلزار نے سرتا پا

عمردین هم نکه دنوی و شاعرانو عشق ته دولت واٸی -

چه دولت د عاشقئ در تخته نشته

د عمر په عقل خوارے سر تاپا

اتفاق داچه خان شاد محمد خان د مردان په دوه لحاظ سره خان وو - یو داچه دخانانو دیولوئے باعزته خاندان نه ؤ وو بله داچه د عاشقئ دولت ئے لرلو -

بله داچه په ځله هم شاعر او ادیب وو او د خپلے زمانے د شاعرانو ادیبانو سرپرستئ کوله - په هغه دوی کښے دوه قسمه شاعری وه -

(۱) عوامی شاعری چه د چاربیته ، نیمکی ، ټکلئ شاعری وه -

(۲) ادبی شاعری چه د مشرانو پښتنو شاعرانو په طرز دادبی سبک شاعری وه -

او خان شاد محمد خان د مردان د دے دواړه قسمه شاعرانو سرپرستی کوله -

(الف) کلاسیکی ادب :- یوه بله چه خان شاد محمد خان ئے سرپرستی کوله دپښتو ژبے د کلاسیکی ادب د شاعرانو وه د عمردین عمر د مردان د کلام نمونه درج شوه ده د عوامی ادب د شعرای و نمونه په لاس نه ده راغلے -

یسین د کالو خان :- د خان شاد محمد خان سره د مردان د صوابئ د کالو خان یو شاعر او سید ه - یسین نوم ئے وو - یسین د پښتو ژبے کلاسیکی شاعر وو - او د پښتو ژبے د مخصوص صنف چاربیتے هم قادر الکلام شاعر وو - د هغه زمانے د اصطلاح مطابق د عوامی ادب شاعر ته به ئے اخون ویلو - په ۱۳۴۴ھ ۱۹۲۵ء کښے زۀ اثر افغان د طوری و په شمالی کنډی شامت پور کښے وم په دے کنډی کښے سکنه د خان نو می یو سری به په ډیره خوش آوازی د کالو خان د یسین اخون یو غزل ویلو ماته د دے غزل فقط د مطلع او مقطع دوه شعرونه یاد پاتے شوی دی -

مطلع　　زبخت خویش ملولم جو رجانان څۀ کوم

په ورځ د غم یمه پیدا دوی دوران څۀ کوم

مقطع حب الوطن من الایمان دے دیکی یٔیں

بے له ماموته دوگو در دکالو خان خهٔ کوم

مشهوره ده چه یٔیں علم نهٔ وو حاصل کړے ۔ لیکن دده اشعار و د لوستلو نه پس خوګ به اووائی چه یٔیں بے علمه وو ۔ په دے دوؤ شعرونو کښے دوه جملے (۱) زغنت خویش ملولم (۲) حب الوطن من الایمان دے ۔ دا دواړه جملے په دے دلالت کوی چه یٔیں د فارسئ او عربئ ژبو قادر الکلام شاعر وو ۔ او کهٔ مونږ دا اووایو چه یٔیں بے علمه وو ۔ ددهٔ اشعار ئے تردید کوی ۔ دیٔیں دکالو خان دعوای شاعرئ یوه چاربیته چه تاریخی اهمیت لری ۔ افسوس دے چه دلته ئے درج کولے نهٔ شو ۔

دد ے چاربیتے پس منظر ډیر عجیبه دے ۔ اشاره به ورته اوکړو ۔

الف :- په ذی قعده ۱۳۱۳ھ مطابق اپریل ۱۸۹۶ء کښے دا نګریزانو شل زره فوځ د نوښار چاونړئ نه روان شه چترال ته تللو چه خان عمرا خان کوم انګریزان په دروش کښے قلا بند کړی دی چه هغه راخلاص کړی ۔ میرمنشی عزیز الدین عزیز چه په کال ۱۳۱۵ھ مطابق ۱۸۹۷ء کښے د برټش ایجنسی چترال میرمنشی وو هغه پخپل کتاب تاریخ چترال طبع اګره پریس اګره کښے دا واقعات په تفصیل سره لیکلی دی مسټر چرچل چه په دویم جنګ عظیم کښے د برطانیه وزیراعظم وو ۔ دے د ۱۳۱۳ھ مطابق ۱۸۹۶ء په دے لام کښے کیپټن وو او د اخبار سول اینډ ملٹری ګزټ نمائنده وو ۔ دهٔ هم پخپل کتاب مالاکنډ فیلډ فورس کښے دا واقعات بیان کړیٔ

(ب) د علاقه دیر د نواباںو نیکه خان رحمت خان په ۱۳۱۲ھ مطابق ۱۸۹۵ء کښے چه په حق اورسیده هٔ د هغهٔ زوئ محمد شریف خان په ګدئ کښیناستو ۔ په دهٔ باندے خان عمرا خان مست ځیله حمله اوکړله ۔ د تاریخ چترال الفاظ دی

*عمرا خان کے چارسو خونخوار قواعد دان جوانوں نے محمد شریف خان کے چھ ہزار فوج کو شکست دیکر محمد شریف جلا وطن بنایا ۔*

محمدشریف خان کابل ته لاړ بیا راغے په مردان کښے د خان مرحوم شاه محمد خان سره اوسیدهٔ - د خان شاه محمد خان د حجرے نه جنوب ته دهٔ - د دے حجرے په جنوبی اړخ کښے چه کوم کمرے دا سے دی چه د ځهٔ کمرو نه مشرق طرف ته او د ځهٔ شمال طرف ته دهٔ - په د غه حصّه کښے محمد شریف خان اوسیدهٔ - انګریزانو چه چترال ته لام اوتړلو - لارے په دیر وه - ابراهیم خان چغتی شهزاده ئے سول افسر وو - لام چه کله مردان ته راورسیدهٔ محمد شریف خان ئے د ځان سره روان کهٔ -

**اهمه خبره** :- په دے واقعه کښے اهمه خبره -

(۱) یوه داده چه خان شاه محمد خان د مردان د علاقه دیر خان محمد شریف ابن رحمت خان ابن غزن خان ابن قاسم خان شهید ابن ظفر خان ابن غلام محمد ابن اسماعیل ابن عبد الله ابن اخوند الیاس نقشبندی مرید د سید السادات آدم بنوری له پناه ورکړے وه - هر یو پښتون بل پښتون له پناه ورکوی لیکن د محمد شریف د خان شاه محمد خان سره پناه اخیستل په داسے حال کښے چه په د غه ورځو کښے په مردان کښے د نورو ګڼړ شمیره خانانو مشاهیر موجود وو - دا بناً چه د خان شاه محمد خان شخصی طور یو خاص اهمیت وو -

(۲) دویمه اهمه خبره داده :- چه په دے لام کښے چه د انګریزانو سره - مشرانو خانانو، ملکانو، قومی سردارانو، میاګانو، ملایانو، پیرانو امداد کړے دے - د خان شاه محمد خان درباری شاعر د دے ټولو مشرانو د بیل بیل نوم اخستے دے - غداران، قام شرمی او کافران ئے ورته ویلی دی - د دے نه د خان شاه محمد خان د انګریزانو په خلاف پښتنی احساسات معلومیږی او دا هم معلومیږی چه دومره فراخه حوصله ئے لرله چه د دهٔ یو درباری شاعر دوخت د انګریزانو حاکمانو په خلاف په دومره لغړو الفاظو کښے داسے تاریخی چاربیته لیکلے شی -

(۳) د ریښه اصله خبره دا ده :- چه هر کله خبره د پښتو د ننګ او غیرت ده نو د دیر محمد شریف خان له ئے پناه ورکړے وه او چه خبره د اسلامی ننګ او غیرت شوه نو دوا (دی) پیښبو (ه) د پیښبو د د مردان د ملاکنډ ایجنسئ مشرانو د انګریزانو امداد ته ملا تړلے وه - او خان شاد محمد خان د انګریزانو امداد له نهٔ وو تلے بلکه د دهٔ درباری شاعر یټین دکالو خان د انګریزانو د غه کاسه بس په دا سے سپکو الفاظو یاد کړی دی چه حد ئے کړے دے او د ایټولے خپرے د خان شاد محمد خان د تعریف ډیرے اچھے خبرے دی -

## باورے اخون

خان باور خان چه باورے تخلص ئے کولو - کله به د صوابئ په زیده کښے وو کله په کړی پنج پیر کښے په دے وجه هم د زیدے دو هم د پنج پیر وو - باور خان باورے د مردان د خان شاد محمد خان درباری شاعر وو - د دهٔ یوه چاربیته چه په هغه کښے ئے د خان شاد محمد خان د سخاوت او جوانمردئ صفت کړے دے - هغه دلته داوړم -

### چاربیتــه د باوری د کــړی

په مخ بانډے د توری زلفے برغ وهی تها لونه
ګلاب د برغ ډک دی پکښے ایښی سحری دی

په مخ بانډے د توری زلفے ویښم او یږ اند سے
پرتے دی په سینه کړے غړی لکه ماران دی

راسکه شے په بام په عاشقانو پورے خاندے
وهے د ښال د ورونه درسره دے مزدوران دی

بهیږی ے دستر کو په مخ پیینے اوښکے تاند سے
بر سیر ے دوا ره کسی شو خته په ویر د خان دی

بے هوس شمه په هوش - هوش رانه لاړ په منزلونه
په مخ باندے دِ تورے زلفے برغ وهی تهالونه

دویم بند پنجے مے د ضمیر د پاسه ښخے دزمری دی
ګلاب د برخے ډک دی پکښے الیبی سحری دی
پنجے دی د ضمیر د پاسه ښخے شوے بغرګے
دس په ټکولو مے سوده شول دواړه لاس

داستا جور و جفاے ګونه زیړه کړه د مرګے
بیلتون به دِ په کوړ نغاره اوکړی د نخاس
همیش مے روسټی په غاړه پروت نکه د ګرګے
نارے وهی په زوړه الغیاث والغیاث
پاسه مے دکوتی دحسن مڼه کوه سوالونه
په مخ باندے دِ تورے زلفے برغ وهی تهالونه

(ربعیت) رایت دی په قوت په حسن اصل بناپیری دی
ګلاب د برخے ډک دی پکښے الیبی سحری دی
دریم بند په حسن باندے پوره - خسته حوره د جنت ئے
خلاف نهٔ وایم زهٔ دلله ددګرے خالق توان دے
سم نه کرځی خوبرو مغروره ګمان ته په زښت ئے
وجهی ته چه دِګورم دویم ماه تابان دے
بناسُت دے غلبه دے زوړه په قوت ئے
دروغ نهٔ وایم زور دے د دارا حاکم په شان دے

قبول راکړه دیارتہ مهٔ بند ده نیتے میاشتے کلونه
په محبٔ بانډے دے تورے زلفے برغ وهی تیالونه
پیشکش کړه راته لعلے لبے لاړے دی ترې دی
ګلاب د پرخے ډک دی پکتے ایښی سحری دی

## څلورم بند

پیشکش مے درته څکه کړے پیالے دلعلو لبو
چه دیرا وکړیدے اوژړیدے په زوره زوره
زما د بنا ګست شور دے په بوستان کښے دغیغو
ن څان سنبالو مه صبا حَم دخپله کوره
سورتیک سورمے پیزوان سورپکتے اوردے د ذهبو
په خله مے اخلے هوش راوړه څان اوساته داوړه
ن زلفے غورومه په اختیارمےدی میلونه
په محبٔ بانډے د تورے زلفے برغ وهی تیالونه
راغوښتی مے شیشے دعطر ولس دعطاری دی
ګلاب د پرخے ډک دی پکتے ایښی سحری دی

## پنځم بند

په شانته د شیشی دی روغ زما دخولے ویٔل
پوچ نهٔ یم پوچ نهٔ وایم پوچ ویٔل دپوچو کار دے
هاروته مے د دَی وپه خپل فکر او پیٔل
سالک یم په سلوک بانډے مے خلق خبردار دے
نیو لے مے په لاس کښے ده لمن د پیر کامل
نوکر د شاد محمد یم په رښتیا سخی سردار دے

باور واقی اکثر ے پہ سر بن دی زرین شالونه

پہ مخ باندے دِ تورے زلفے برغ وهی تالونه

سردار دے صفتونه ئے لازم پہ باوری دی

گلاب دپر خے ډک دی بکښے اثنی سحری دی

د باور خان باوری دا شعر ۔

نوکر د شاد محمد یم پہ رشتیا سخی سردار دے

باور واقی اکثر ے پہ سر بن دی زرین شالونه

دے نه د خان شاد محمد خان داد ب دوستئ او ادیب پرورئ ډیره پته اندازہ لگیدے شی دخان شاد محمد خان پہ معصرو شاعرانو کښے دآدینا د صاحبزادہ غلام قادر مرحوم مشوانی نوم دیادولو دے ۔ چه مشهور عوامی شاعر وو ۔ ددهٔ مره یوه چاربیته دیلے نه زیاته ده ۔ ددهٔ دیوے چاربیتے دمطلع شعر دے ۔

نهٔ به ژوندے یم نهٔ به تیر عمر زما راشی

نهٔ به گلرنگه دیانګه پہ خندا راشی

## نور هم عصر شاعران :-

نور هم عصر شاعران چه د خان شاد محمد خان ورسره صحبتونه وو او د مغوئ سرپرستی ئے کړی ده ۔ پہ دے لړ کښے به دوه کسان یادکړم ۔

دلیل اخون د نوښار :- ولادت ۱۸۰۵ء مطابق ۱۲۲۱ھ وفات ۱۹۰۴ء مطابق ۱۳۵۹ھ عمر ۹۵ کاله په کال ۱۳۱۴ھ مطابق ۱۸۹۶ء کښے د ۱۵۱ کالو وو ۔ پادری هیوز ددهٔ ذکر کړے دے ۔ ددهٔ دیوے رباعی دمطلع او مقطع شعر ونه دی ۔

مطلع :- یو ساعتے زهٔ دغمه اوزگار نهٔ شوم

بیهوده یم پہ ثنا د غفار نهٔ شوم

مقطع :- قافلے تیار یدے زما پہ مخکښے

زهٔ دلیل پہ همه عمر تیار نهٔ شوم

خان عبدالقادر خان دجنډی (صوابئی) ؛- (۱) ولادت ۱۲۷۴ھ ۱۸۵۷ء

(۲) وفات ۱۳۵۶ھ مطابق ۱۹۳۷ء - عمر ۸۰ کاله (۳) په ۱۳۱۴ھ مطابق ۱۸۹۶ء کښې د ۳۹ کالو په عمر وو - (۴) د عبدالقادر خان یوه چاربیته او یوه رباعی ۱۳۶۸ھ مطابق ۱۹۴۸ء کښې جناب عبدالمالک استاد دجنډئ ما افغان ته رالیږلے وه - دده د رباعی د مطلع او مقطع دوه شعرونه دا دی -

مطلع:- غم په زړه ئے اندرون د جانان پریووت
څکه داغ ئے په زړګی د هجران پریووت

مقطع:- عبدالقادر وائي مخ تورن یم خدایه تا ته
چه دلاسه ئے د عدل میزان پریووت

د مردان خاوره په هر لحاظ زرخیزه ده کثیره شاعران ئے په هردور کښې پیدا کړی دی او شامدام د مردان خانانو دغوئ سرپرستی کړے ده - په دے نږدے زمانه کښې د مردان د طورو د صاحبزاده علی حیدر شاه خاکسار مثال په واخلو - دده یو شعر دے - ؎

بیلے د فکر په پوپه کله په تراټ دے زما
لکه سرکټ د کهاډئ د قلم کاټ دے زما

د خان شاد محمد خان په لاس کښې به توره وه - د هغه زمانے مشهوره وسله توره وه ، چمدروو - لیکن دد ے نامور خان په لاس کښې به قلم هم وو - او دده د قلم کاټ به د کهاډئ نه زیات وو -

صاحبزاده علی حیدر شاه خاکسار د نوابزادګانو د خاندانونو استاد وو - د دوئ بال بچ له به ئے درس ورکولو - د درس نمونه ئے د ملاحظه کولو ده

په دنیا کښې چه د چاشپے ورځے بنی دی
په دے پوهه شه محنتی یا جفاکش دے

تن پروری هیسے تش بوت څه چه تش بوس دے
ژندګی خو کشاله یا کشاکش دے

دا ز ما د تمام عمر تجربه ده    ما خلو لیدلی کاله بنهٔ سوچ په باریان اوکړی

حفاظت دسر او مال او ناموس یو یه

هر چرے که چا سره دی دوزګار اوکړی

سر به بائلی - ډیر به خوارشی ډیر به سپک شی

که دی مرکله په چا اعتبار او کړ

په ادبی لحاظ سره په دے دویم درس کښے په دے شعرونو کښے لف او نشر مرتب دے - یو ادیب او شاعر که د فکر په تاد داسے مرغلرے پیلے شی - قدردانی غواړی قدردان غواړی هغه یوه مصره ده ؏

کړے چا په خپل هنر قدردانی ده

داد مردان خان شاد محمد خان ووجه دکړی د باور خان په سرئے د قدردانئ په طور سرهٔ شالونه اچول او د پیسو د اکبر پورے محمد رفیق اخونزادهٔ ورسره دیره وو - او هغه له ئے خلعتونه ورکوول د شاعرانو ادیبانو عالمانو قدردانی کول د مردان د خانانو په صفتونو کښے خاص صفت دے - دا تعریف ئے پرون هم وو او ون هم دے -

## د خان شاد محمد خان د نسب شجره

زهٔ په دے موقع اول د خان شاد محمد خان مرحوم د نسب انفرادی او بیا اجتماعی شجره راوړم - بیا به نور بحثونه کوو -

انفرادی شجره :- خان شاد محمد خان ابن میر افضل خان ابن احمد خان ابن لینکر خان ابن قطب الدین زید خان المعروف په فتح خان - فاتح جهاد پانی پت -

---

دا مصره داسے هم لوستلے شی ؏

کړی چا په خپل هنر خود نوازی ده

## مختصره شجره




ددے شجرے نه معلومیږی چه په موجوده دور کښے امارت او حکومت ددے خاندان د عزتمندو افرادو سره دے ـ عزتمنده کورنئ ده ـ

زۀ اثر افغان په څو وجوهاتو ددے خاندان قدر کوم ـ

(الف) یو په دے وجه چه ددے خاندان نیکه فتح خان او زما اثر افغان نیکهٔ محمد میر خان د پانی پت په غزا کښے ملګری وو

(ب) دخان شاد محمد خان په دے وجه قدر کوم چه د انګریزانو د امداد په خاطر

په ۱۸۹۶ء کښے د مالاکنډ په لام کښے نهٔ وو شامل شوے .

## خوانین هوتی :-

نواب محمد اکبر خان هوتی :- دهوتی په کمال زو خانانو کښے نواب محمد اکبر خان د عمر او علم او فضل په لحاظ لوئے سړے وو۔ مورخ وو۔ د پښتنو په تاریخ ئے یکل یادګار پاتے دی۔ د دهٔ یادګار بله هغه عظیم الشانه لائبریری ده چه په پښتونخوا کښے ئې مثال نهٔ لری۔

خان امیر محمد خان دهوتی :- ذهٔ اثر انغان د ۱۳۴۷ه مطابق ۱۹۲۸ء نه تر ۱۳۵۲ه مطابق ۱۹۳۳ء پورے د خدائی خدمتګار تحریک سرخپوش وُم۔ په سرخپوش تحریک کښے دهوتی خان امیر محمد خان جادوبیان مقرر وو۔ او د دهٔ لور بیګم نسیم چه د باچا خان د زوئ ولی خان بیګم ده۔ داهم جادوبیانه مقرره ده۔

خان محمد علی خان دهوتی :- خان محمد علی خان دهوتی نخوانے مسلم لیګی دے۔ او زما اثر افغان د مسلم لیګ د ورځو زوړ ملګرے دے دده څله د مرکزی حکومت پاکستان وزیر تعلیم پاتے شوے دے۔ موصوف صوفی دے۔ عالم دے۔ د خیل خاندان تاریخ ورته تر څهٔ حده معلوم دے۔ یکن چه څهٔ ورته معلوم دے هغه ئے نهٔ دے لیکلے چه چاپ کړے ئے وے۔

## خوانین مردان :-

د مردان په خانانو کښے (۱) خان محمد اسلم خان کمالی بره خانخیل د مردان (۲) خان صاحب محمد انور خان رستم خیل د مردان (۳) خان محمد ایوب خان سالار چه د صوبه سرحد د حکومت وزیر وو زما اثر انغان ورسره تعلق وو۔

میرمن زری سرفراز خان :- د مردان په خانخیلو کښے میرمن زری سرفراز د مغربی پاکستان د ون یونټ اسمبلی ممبره ده او په دغه ورځو کښے زهٔ اثر افغان هم د دے اسمبلئ ممبر وُم۔ ښځه کاله ملګرتیا موتیره شوے ده۔ په دومره

ملګرتیا کښې مانه معلومه شوې وه چه علیا بیګم زری

(۱) جادو بیانه مقرره ده - اعلیٰ تعلیم یافته ده په تقریر کښې ئې زور وی۔

(۲) ډیره لویه دشجاعت او سخاوت خاونده - په یونټ اسمبلۍ کښې دسرحد او قبائلو یو اوښا ممبران وو او ټولو له به ئې په هفته کښې یوه ورځ پخپله کوټۍ کلبرګ کښې میلمستیا ورکوله۔

(۳) چه د اسمبلۍ نه په ۱۳۷۸ھ بمطابق ۱۹۵۸ء کښې واپس شوه نو دپښتو ژبې دشاعرانو او ادیبانو سرپرستي ئې شروع کړه - پرېمیر شوګر ملز مردان چه په ایشیا کښې دچینو جوړولو دټولونه لویه کارخانه ده - دا کارخانه د محترمه بیګم زری سرفراز خان دکشر ورور میرافضل خان په نوم ده - ددې کارخانې له طرفه پښتو رساله قند جاری کړے شوه ایډیټر ئې قمر الزمان خان راهي وو - ددې رسالې دجاری کولو تحریک په اصل کښې د محترمه زری بیګم وو - په دې مینځ کښې علیا زری بیګم صاحبې دمردان او پیښور دپښتو ژبې دادبي تنظیمونو سرپرستي شروع کړه - ذاتي طور زۀ اثر افغان په دغه تنظیمونو کښې نۀ ووم شامل شوے - لیکن ددې ادبي سرګرمو ځنې به ے دا اندازه لګووله چه په دې خاندان کښې

(الف) دخان شاد محمد خان مرحوم روح راژوندے شوے دے دشاعرانو ادیبانو سرپرستي کوی -

(ب) دخان شاد محمد خان مرحوم دسخاوت روایات بیا راژوندی شوی دی -

(ج) او دا ژوند ورله محترمه بیګم زری سرفراز ورکړے دے -

په مجله قند مردان کښې زما اثر افغان ادبي او تاریخي مقالے هم شائع کیدے۔

(د) دمجله قند په اشاعت رجب ۱۳۹۵ھ مطابق جولائی ۱۹۷۵ء کښې د ډاکټر امین الحق دمردان یو نظم چاپ شوے دے عنوان ئې دے میرمن زری ته - زۀ دا نظم دلته په دے مناسبت درج کوم چه دادب دوستۍ او ادیب پرورۍ په بنا

چه څنګه ګ باور خان د ګړی د خان شاد محمد خان تعریف کړے وو ـ هم دد غه ادب نوازئ په بناء د ډاکټر امین الحق د شاد محمد خان په اولاد کښے دعزتمندے بیګم زری سرفراز صفتونه کړی دی ـ جناب ډاکټر امین الحق فرمائی ؎

# میرمن زری ته[1]

اے د ننګ پښتو میرمنے چه پاکی ستا د لمنے
د پښتو د ناوے داج شی په حیا عزت شتمنے

پلوشے خو زر زری ستا د پښتو د شپے صبا شی
ستا دمخ دحیا شمعے تیرو لارو کښے رڼا شی

دحیا دی دروند پړو نے د سر سوړ د پښتون شه
د نمانه چه میمون دے په دهٔ دا سوړ میمون شه

ستا دفکر په ډیوو کښے د پښتو په لاره یون شی
ورک له ځانه چه پښتون دے ځان مومن ل به د پښتو شی

دحیا مشالے سم کړه د پښتو د زلفو ولونه
نوی ژوند له ئے سنګار کړه چه پراته دی پرے ګردونه

په مشال د ځپل افکارو دی تیرو له مرکنی مات کړه
ته د پوهے پلوشه شه ناپوهئ له کورمیرات کړه

ته ئے ژبه شه ویناشه د پښتو ګونګیان ګویا کړه
ورکه لاره د پښتون ده ته ئے لارسره آشنا کړه

پښتنه ئے پښتنه ئے ستا دا غیرت د پښتو ده
ته د دنه ئے ته د رنه ئے ستا دا غیرت دسیالو ده

---

[1] اوګوری ګورے وریځ) ص۲۳ د ډاکټر امین الحق امین (پښتنه ...)

ستا د غیرت ته دے سترګے    ستا د غیرت کښے ننګیالی وو

ستا د غیرت کښے وو بناغلی    توریالی وو بریالی وو

په دے غیرت کښے خلجی وو    په دے غیرت کښے لودهی وو

په دے غیرت کښے سوری وو    دغه بخت سے د تندی وو

په دے غیرت کښے میروس وو    چه ګورجین لره قفس وو

د پښتو توره ئے لاس کښے    چه عظمت ته ئے هوس وو

په دے غیرت کښے شیرشاه وو    چه تقدیر لره تدبیر وو

چه د پوهے یو مثال وو    چه د پوهے یو بهیر وو

په دے غیرت کښے دریا وو[1]    چه پښتون وو بے بها وو

چه د ننګ د ایلم غر وو    چه دښمن ئے تل رسوا وو

په دے غیرت کښے ایمل وو[2]    د پښتو د پګړئ ول وو

د پښتو د پت پتنګ وو    او دښمن لره اجل وو

په دے غیرت کښے یو ملنګ وو    چه د سوز د رباب ترنګ وو

چه رحمان وو چه وجدان وو    چه د نفس سره په جنګ وو

په دے غیرت کښے خوشحال وو    همه غر د استقلال وو

د پښتو د بنړ طوطی وو    بے مثاله لا مثال وو

په دے غیرت کښے ابدال وو[3]    چه د کفر له زوال وو

د پښتو د ننګ شمله وه    چه دښمن ترے نه پائمال وو

---

[1] د شیرشاه سوری د وه ملګری وو (۱) عمر دریا خان (۲) عمر خواص خان (اش)

[2] د شیرشاه سوری د نیکه بهاءالدین احمد کشر ورور وو صدرالدین اسماعیل ـ ایمل خان د دغه اسماعیل له نسله وو ـ (اش)

[3] دلته د ابدال نه مراد احمد شاه ابدالی دی ـ (اش)

اے دننگ پښتو میر منے ـــــ درونده په دوئ ووستا پرونے
اوس پرونے دی سپکیږی ـــــ چه سپک نهٔ شی غیر تمنے
اے د پت پښتو میں منے ـــــ دروند شه دروند شه ستا پرونے
لکه مور غیرته خوره کړه ـــــ اوکړه دغه کار خوبږ منے
تهٔ راجمع پښتانهٔ کړه ـــــ ته یو ځائے دانه وانه کړه
آبا غلی په پیدا شی ـــــ دروند پرونے به بیا ستا شی
اے دننگ پښتو میر منے
ننګیالی زری میرمنے

دډاکټر امین الحق کوهر دامنظوم افکار ددے خبرے ثبوت دے چه میرمن زری سرفراز لکه دخپل نیکهٔ شاد محمد خان مرحوم ادب نوازه اوادیب پروره ده - اولاد په دوه قسمه وی (۱) خلف (۲) ناخلف یو ه مصرعه ده -

ع ـــ ناخلفه زوئ نوم دبابا ورک کا

میرمن زری سرفراز په خپل کردار دخپل نیکهٔ شاد محمد خان نوم ژوندے ساتلے دے - دائے یو صفت دے - دویم صفت داچه دخپل نیکهٔ دنوم ژوندی کولو دپاره دمغه دپښتو اشعارو دیوان چاپ کول غواړی - زهٔ اثر افغان په دے تاریخی او ادبی کارنامه دمیرمن زری سرفراز په شان کښے دقصیده مدحیه په ځائے په دے خاندان تاریخی بحث کول غواړم دا یوه داسے موضوع ده چه ترن ورځے پورے په دے بحث نهٔ دے شوے -

## دخان شاد محمد خان مشر نیکهٔ فتح خان

---

دخان شاد محمد خان اود مردان دنوروخانانو مشر نیکهٔ چه په فتح خان نامه یادیږی ددهٔ لقب قطب الدین وو او نوم ئے په یو روایت زید خان او په بل روایت با زید خان وو - لیکن اولنے روایت زیات مستند دے -

قطب الدین زید خان دحضرت غوث الافغان میان محمد عمر د چمکنو مرید وو ۔
لوئے غازی احمد شاہ ابدالی چہ د پانی پت غزاله په دریم حل په ۱۱۷۶ھ
مطابق ۱۷۶۲ء کښے تللو نو ددهٔ سره څلوښت زره په اسونو باندے سوارهٔ غازیان
وو چه په دے کښے اولس نیم زره دحضرت سید میان محمد عمر صاحب مریدان وو ۔
په صفوئ کښے د یو څو مریدانو به نومونه یاد کړم ۔
(۱) د تور ډیرې داخوند حافظ سید محمد شعیب د تور ډیرې شهید دنوښار دترکئ
غونډئ د جهاد په خلاف دسکهانو چه په دے جهاد کښے ورسره د مردان د
خانانو نیکه بیګ خان زما اوافغان نیکهٔ سید خواص خان منګری وو ۔
د تور ډیرې دیاباجی محمد شعیب والد ماجد میان ګل ، محمد رفیع الملقب په
رفیع القدر د پانی پت په غزا کښے د مردان دخان فتح خان منګرے وو ۔
د میان ګل ، محمد رفیع ، رفیع القدر د پلار نوم محمد رفیق وو ۔ د صفهٔ یو منظوم
کتاب دے په صغ کښے فرمائی ۔

محمد رفیق زمانامه دهٔ        اصل ځائے زماکنړه دهٔ
یم په اصل ابدالے        په ابدال کښے درانے

میان ګل محمد رفیع هم د غوث الافغان میان محمد عمر درانی ابدالی مرید وو ۔
(۲) میان سید ګل محمد الرمرالحسنی له نسل د سید ابو الطیب علی متوفی ۵۵۳ھ
مطابق ۱۱۵۸ء له نسله د سید محمد اکبر سا ئرالصابرین الحسنی دے محمد اکبر
کشر ورور اوو دالامیر دحضرت شیخ عبد القادر جیلانی متوفی ۵۶۱ھ مطابق ۱۱۶۵ء
نیکهٔ وو ۔
(۳) د هشنغر دتنګی دخان فتح خان ماموزی زمانه ۹۸۵ھ مطابق ۱۵۷۷ء په اولاد
کښے خان عبدالصمد خان المعروف په سمند خان چه د پانی پت د غزا په ورځو
کښے د وادئ سنده په تهټه حکمران وو ۔ او دے جهاد له دسندهٔ نه تلے
وو ۔

(۴) سید شکر اللّٰه الحسینی له اولاده دحضرت خواجه غریب نواز الحسنی چه دا سید شکر اللّٰه په تهته کښې وو - او دسمند خان سره یوځائے دپانی پت جهاد له تلے وو -

(۵) قطب الدین زید خان دمردان چه موښ ئے حالات لیکو -

## میدان پانی پت

ددهلی په شمال کښے ددوه دیرش میله په فاصله سونی پت دے - د سونی پت نه دڅلویښت میله په فاصله کونال دے او دکونال په شمال کښے سرهند دے - دسونی پت او کونال ترمنځه څلویښت میله دپانی پت میدان دے چه په منځ کښے ئے دجمنا سیند بهیدے دے - په دغه تهته جمنا موجونه وهل جنګ د جمنا سیند په دوا ړه غاړو وو - سید ګل محمد ارمړچل سواره غازیان په موج وهونکی دریاب ورواچول چغه ئے کړه یا میان عمره راسیږے د دریاب نه پورے وتلو په مرهټه فوځیانو وریوت -

دپانی پت دګنج پوره په میدان کښے چه کوم کسان شهیدان شول نومونه ئے دادی -

(۱) سید اخوند حافظ میاں ګل محمد رفیع رفیع القدر ابن محمد رفیق ابن محمد علی ابن محمد زاهد ابن عبداللّٰه مزار کنړه ابن عبدالرحمان مزار دصوابئی لاهور ابن موسیٰ چه مزار ئے دسوات دخوازه خیلے په مشرق کښے په لنګر کښے دے ابن سید دولت چه مزار ئے په ګوهی دولت زائی کښے دے - ابن اسماعیل چه مزار ئے په سم رانړی زئی کښے دے - ابن صدرالدین محمد عارف ابن عبدالحق ابن جلال الدین احمد ابن یحیٰ کبیر غورغشتی ابن الیاس کرلانی حکمران بنګال تخت نشینی ۷۴۰ھ مطابق ۱۳۳۹ء وفات ۷۶۰ھ مطابق ۱۳۵۸ء ابن شیخ الاسلام مخدوم العالم محمد توری (ترین) چه په تمام درانے ابدالی وو -

دا شجره مے په دے غرض راوړه چه دخان شاد محمد خان دنیکه خان لښکرخان

تعلیم و تربیت په تور ډهیری کښې حضرت سید اخونزاده حافظ محمد شعیب د تور ډهیری فرمایلے وو او اتفاق دا چه د تور ډهیری د صاحبزادګانو سره خپله د نسب شجره نشته دے لکه چه د مردان دخانانو سره د خپل نسب شجره نشته دے . په دے حقله به نور بحث اوکړو .

(۲) سید شکر الله حسینی شهید شو .

(۳) خان سمند خان د تنګی فتح خان خیل ماموزے شهید شو .

(۴) د مردان پیر ضامن شاه ابن پیر عرب شاه شهید شو . پیر عرب شاه چشتی وو . د دهٔ زوی عرب شاه نقشبندی وو د غوث الاوقات میان محمد عمر د چمکنو مرید وو . نو کے غازی احمد شاه ابدالی د شهیدانو له د صندل د لرګی تابوتونه جوړ کړل په شاهی اعزاز ئے روړل .

(۱) میاں ګل محمد رفیع المنقد په رفیع القدر له په تور ډهیری کښے

(۲) پیر ضامن شاه د مردان له دخپل والد ماجد پیر عرب شاه د مزار سره په مشرقی اړخ کښے .

(۳) (۴) د سید شکر الله او سمند خان د واړو د چارسدے په لویه هدیره کښے د دواړو قام د مزاراتو په چار دیوارئ کښے د تنګی د خان فتح خان د زوئ خان علی خان د مزار نه د سل قدمه په فاصله نور ختاته طرف ته ئے دفن کړل . دلته دا یاد لرل پکار دی چه په دے علی خان د بایزید انصاری المعروف په پیر روښان لوریٔ بی بی کمال خاتون واده وه دے بی بی قبر د علی خان د قبر خواته په خان له احاطه کښے دے د دهٔ زوی وو مرزا خانی ، مشهور شاعر مرحوم جناب خادم محمد اکبر له دے نسله وو .

## قطب الدین فتح خان

د پانی پت په میدان کښے چه د مرهټهٔ کوم لښکر جنګیده د دهغې د سردار نوم وو سدا شیو بهاؤ وو او د هغه زوئ ملهار راو بهاؤ د فوځ

لوئے سپہ سالار وو ۔ قطب الدین زین خان حمله اوکړه ۔ ملهار راؤبها و
ئے قتل کړ مرهټه فوځ شکست اوخوړ تر دکنه پہ ماتے لاړ . پیښور د
موسیٰ زئ کلی د وه د ونړه وو په قام موسیٰ زی سیدان وو ۔

(۱) برهان الدین چه په پانی پت کښے وو ۔ د احمدشاه ابدالی د فتوحاتو کتاب
برهان نامه ئے لیکلے دہ ۔ احمدشاه ورله دچچ دحسن ابدال په بره جاګیر ورکړے
وو ۔ برهان کلے د دۀ په نوم دے ۔

(۲) رکن الدین رکن عالم دے په دغه ورځو کښے په دکن کښے وو۔ رکن الدین شاعر وو ۔
د اشعر د دۀ دے ۔

مشهور چه په عالم دے   نوم زما رکن عالم دے

رکن عالم لیکی چه مرهټه دښکی چه په ماتے دکن ته راغے د احمد شاه ابدالی
د فتوحاتو نه خبر شوم ۔ او دا فتح د قطب الدین زید خان په نوم ده ۔

د صوابئ په مرغز کښے د حضرت مجدد الف ثانی د مشر زوئ عروة الوثقی
محمد معصوم اولاد آباد دے ۔ په دے خاندان کښے حافظ مرغزی فاروقی هم د
حضرت غوث الافغان میاں محمد عمرؒ د چمکنو مرید او د پانی پت په جهاد کښے شامل
وو هغه هم په خپل کتاب فتوحات احمدشاه ابدالی کښے د ا ذکر کړے دے ۔

یو سیّد دے عمرخطاب مزار ئے په موضع دهوبیان صوابئ کښے دے ۔ د دۀ
د زوئ نجیب صاحبزاده قبر د صوابئ په لاهور کښے دے . د دۀ د زوئ دا محمد دادین
قبر په اکوړی کښے دے ۔ دادین په ۱۲۱۹ھ ۱۸۰۴ء کښے چه دے د اویاؤ کالو په عمر
وو ۔ د غوث الافغان میاں محمد عمرؒ د چمکنو په مناقب کښے ئے منظوم پښتو کتاب

---

ئه هغه دوه تورے او دوه قالینونه چه د پانی پټ په جنګ کښے په مرهټهؤ د فتحے
سوندلونه پس احمد شاه بادشاه ابدالی دے ډیران خان فتح خان په انعام کښے ورکړی
دو لاهن هم دهوتی د خانانو سره موجود دی ۔  (طاثر)

لیکلی دے - دادین دخان فتح خان دمردان تعریفونه کړی دی -

## معزالله مومند:-

معزالله خان مومند دکوټله محسن خان د پیښبو ر دغوث الافغان مرید وو - د پیښبوړ بنار حکمران وو کتاب ئے لیکلے دے مناقب میان عمر ده هم دخان فتح خان دمردان ذکر او تعریف کړے دے -

## نور محمد فاروقی دسوات :-

د ملاکنډ ایجنسی دسوات رانیزی د موضع تهانړه نو رمحمد فاروقی د غوث الافغان حضرت میاں محمد عمرؒ د چمکنو مرید وو - دهٔ پخپل کتاب مناقب کښے د مردان دخان فتح خان ذکر کړے دے - صفتونه ئے کړی دی -

## مسعود گل پسنی:-

د ضلع پیښبوړ تپه مومند ذیلی تپه سرکانی کښے دمشترزو په تپه کښے دیو کلی نوم دے پسنی دد ے کلی مسعود گل پسنی دحضرت غوث الافغان میاں محمد عمرؒ د چمکنو مرید وو - دهٔ پخپل کتاب مناقب میاں محمد عمر کښے دفتح خان دمردان تعریفونه کړی دی - دد ے کتاب چاپ شوے نسخه په پښتو اکاډمی پیښبور کښے ده -

احمد شاه ابدالی چه د میدان پانی پت فتح دقطب الدین زید خان په نوم کوله دا دیره لویه خبره ده دهغه دوړ ټولو لیکوالو ئے تعریفونه کړی دی -

دفتح خان په اولاد فتح خان خیل کښے لبنکر خان دټولو نه کشر وو او خدائے پاک عزت شهرت دولت امارت دهٔ له او ددهٔ اولاد له ورکړلو -

## لبنکرخان قادری سحر وردی وو

تعلیم او تربیت ئے په تورډهیری کښے د حضرت اخوند حافظ سید محمد شعیب شهیدؒ نه کړے وو - او دسوات بابا جی صاحب غوث دسید وئے همدرس وو او په سلسله قادریه کښے ئے پیر بهائی هم وو او په ۱۲۳۹ھ مطابق ۱۸۲۳ء کښے دے - او دسوات بابا جی صاحب دخپل پیر دتورډیری صاحب سره دسکهانو برخلاف دنوبنار دترکو

په جهاد کښې شامل وو - د راقم الحروف اثر افغان نیکهٔ صاحب سید خواص هم د

نوښار د ترکو په جهاد کښې شامل وو او بیا د نبنګر خان زامن چه پورته ئې نومونه

درج شوی دی د ۱۳۸۰ه بمطابق ۱۹۶۳ء د سرکاوی په غزا کښې شامل وو. خان عمراخان

په مخکښې ئې ذکر شوے دے چه د چیمبرلین په خلاف د سرکاوئ غزا کیدله - د

عمرا خان "افغان پنوئین" نیکهٔ فیض طلب خان هم د سرکاوئ په غزا کښې موجود

وو -

## سهروردیه طریقه

نبنګر خان صاحب مرحوم د قادریه او نقشبندیه سلسلو نه علاوه په سلسله

عالیه سهروردیه کښې د حضرت شیخ رحمکار صاحب المعروف په کاکا صاحب په نیځه

زامنو کښې د مشر زوئ ضیاء الدین علی شهید په اولاد کښې د حضرت سید عبد الشکور

ابن سیر الدین ابن سید قیاس الدین ابن سید ضیاء الدین شهید ابن سید شیخ عبد الرحیم

المعروف په رحمکار کاکا صاحب ابن سید عبدالله بهادر ابن سید هدایت الله ابن

سید عبدالله الغالب قدس سره مرید وو -

جناب بابا والد ماجد وو سید آدم ابن یسین - دے یسین د ټولو نه مشر

زوئ وو ثور الدین محمد عطار دده زوئ وو علاء الدین علی عطار چه دے

علی عطار مزار مبارک د علاقه سم رانړی زی په پلئ کښې دے -

### غوث دسیدو او نبنګر خان

لکه چه څرګند غوث د سیدو او نبنګر خان په قادریه سلسله کښې د تورډهیری

د بابا جی صاحب مریدان وو - نو باید دا خبره په علم کښې راشی چه بابا جی صاحب

غوث د سیدو او نبنګر خان دواړه د زیارت کاکا صاحب د سید عبد الشکور کاکاخیل

هم مریدان وو -

د حضرت غوث د سیدو په حالاتو کښې دا خبره لیکلی ده چه د سوات بابا جی صاحب

په زيارت کاکاصاحب کښې ځهٔ موده تيره کړې ده ـ بلکې په دے بانډے دا معلومات اضافه کړے شي چه حضرت غوث دسبدو په زيارت کاکاصاحب کښې د حضرت سيد شيخ عبدالشکور صاحب سره ديره وه ـ دسوات دباباجي اودبنګر خان دواړو ډير تعلق وو چه د بنګر خان ترلرزامن احمد ، محمد ، منصور ـ

الف:ـ  دسوات دباباجي مريدان وو ـ

(ب)  په ۱۲۸۰ھ سنو ۱۸۶۳ء کښې دسرکاوئ په جهاد کښې دسوات دباباجي دبيرغ لاندے دانګريزانو په خلاف جنګيدل ـ

(ج) دسرکاوئ په دے جهاد کښې دعمراخان ابن امان خان ابن فيض طلب خان نيکهٔ فيض طلب خان هم شامل وو ـ په دے حساب شاد محمد خان او عمراخان معصرووُ ـ

(د) شاد محمد خان ابن مير افضل خان ابن احمد خان

عمراخان ابن امان خان ابن فيض طلب خان

(ه) اوچه کله انګريزانو په عمراخان لپے لام اوکړ ـ شاد محمد خان پټ اوننګ اوپالهٔ ـ دعمراخان په خلاف په لام کښې شامل نهٔ شهٔ ـ

## دمردان دخانانو
## دنسب شجره اوپه هغې ځيړنه

---

دعربو مقوله ده ـ

آثار الآباء يظهر في الابناء

(ترجمه) دپلرونو نيکونو آثار دهغوئ په اولاد کښې ښکاره کيږي ـ

دپښتنو متل دے ـ

دباز دجالے نه باز پورته کيږي ـ دچتې دجالے نه باز نهٔ پورته کيږي ـ

دمردان دخانانو مشر نيکهٔ قطب الدين زيده خان صاحب که دپانی پت

په میدان کښے مړانه کړے وه او فتح خان نوم ئے ګټلے وو - لازماً دده په ګونو کښے دداسے زمریالو او توریالو نیکونو پاکه دبهادرئ دکه وینه وه چه فتح خان دد غه نومیالو ننګیالو نیکونو نوم ژوندے کړے دے اوپ ننګیالئ میړنی زړی چه دده ننګیالی توریالی خاندان دادیب او عالی قدر خان مرحوم شاد محمد خان دیوان چاپ کوی ما ته افغان له ئے دا موقع راکړه چه د خان فتح خان د خاندان په مشرانو یوڅو معلومات په اختصار سره دلته راوړم او ضمناً کښے دنورو داسے خانانو هم ذکر اوکړم

## دفتح خان نیکهٔ د آباؤاجداد شجره

په پورتنو کرښو کښے دمردان دخانانو د ۱۱۷۶ھ مطابق ۱۷۶۲ء دزمانے د مشر نیکهٔ فتح خان پوری دنسب شجره درج شوه - هرکله چه دده نه په بر ه شجره کومه شجره چه افغان مورخینو په تاریخ صولت افغانی او حیات افغانی کښے درج کړے ده په هغے کښے حد درجه اضطراب دے اوله دغه شجره درج کوو. او بیا پرے تحقیقی او تاریخی بحث کوو -

په تاریخ حیات افغانی طبع ۱۲۹۳ھ مطابق ۱۸۷۶ء صفحه ۱۶۰ کښے دا شجره درج کوو.



چه دا شیرخیل د سوق او مردان د خانانو شریکه دے د شیرخان په اولاد
کښے یو نوم اشرف خان یاد کړے دے ۔

(اقتباس ختم شۀ)

# غلط شجره

راقم الحروف اثر افغان یوه ورځ د پښتو اکاډمیٔ ډائرکټر جناب محمد نواز طائر
اکاخیل ته دا خبره کړے وه چه د تاریخ حیات افغانی اکثر بیانونه او تاریخی حوالے
او د نسب شجرے غلط دی ۔ ترڅو چه دد ے کتاب تصحیح نۀ وی شوے ۔ تر هغے دا کتاب
د نوی کول پښتو شاه زمو له ورکول نۀ دی پکار ۔

په دے ئی کښے د مردان د خانانو د مشر انو نیکونو د نسب شجره چه په څومره
غلطه طریقه ئے درج کړے ده ۔ دا یو مثال دے او دد ے نه زما د خبرے تائید کیږی ۔

## د غلطئ بنیادی وجه :-

هغه ټول کتابونه چه د افغانانو تاریخ ئے بیان کړے دے ۔ دد وی په بیانونو
کښے د غلطئ بنیادی وجه دا ده چه دوی په دے یو څو علمونو نۀ پوهیږی ۔
(۱) علم الانساب (۲) علم اصول انساب (۳) علم تاریخ (۴) علم اصول تاریخ
(۵) علم الالتباس (۶) علم تعیئن زمانه (۷) علم جغرافیه (۸) او د قومونو
تاریخی مزاج علم ۔

## علم الالتباس :-

د علم الالتباس نه مراد دا دے چه په یو نوم په یو ملک یوه علاقه یوه
زمانه کښے دوه کسان وی د یو اولاد ته د بل اولاد او وئیلے شی ۔ یا په یو نوم
دوه داسے کسان وی چه په زمانه کښے ئے فرق دی ۔ یکن یو مورخ د غے ته فکر
او نۀ کړی غلط بیانی اوکړی۔

## موجوده شجره

په موجوده شجره کښې یو عبدالله الهداد په تاریخي اعتبار سره د زمانې اندازه ئې ددې نه لګېدې شي چې دده پلار جلال الدین احمد اکا د ۷۶۰ هـ مطابق ۱۳۵۸ ع د زمانې او عبدالله د ۷۹۳ هـ ۱۳۹۱ ع د زمانې دے او قندهارے دے .

او دده احمد اکا د مشر تره موده د زوی یوسف ابا او احمد اکا دواړه هم عصر دي . او د احمد اکا او یوسف ابا زیږه وادي سمه او وادي سوات زمکوته د مرزا الوغ بیګ د لاسه د ختشي او غوري قبائیلو د واقعه قتل نه پس پېښور ته ورپسې وادي سمه . وادي سوات ته راغلي وو .

مرزا الوغ بیګ په ماه نومبر ۱۴۴۷ ع رمضان ۸۵۱ هـ کښې د کابل په جنوب مشرق کښې په تپه مرنجان کښې د ختشي او غوري قبائل وژلي وو . راقم الحروف اثر افغان په ۱۹۵۹ ع عیسوي کښې دده شهیدانو د مزاراتو سلام کړے دے .

د شیخ ملي ویش په مقام د کاټلنګ په ۹۳۱ هـ ۱۵۲۴ ع کښې شوے دے . دده ویش نه وړاندې دوی سوات په دوه ویشت کاله کښې قبضه کړے وو . په نورو لفظونو دوی په کال ۹۱۲ هـ مطابق ۱۵۰۷ ع کښې سوات فتح کړے وو . او په کال ۸۹۰ هـ مطابق ۱۴۸۵ ع کښې سوات ته ننوتلي وو . د تاریخي تحلیل و تجزیه ده . دوی په ۲۸ کاله کښې سوات او سمه قبضه کړې وه . که د جلال الدین احمد اکا اولاد پکښې شامل وو . نو هغه د ۸۵۰ هـ مطابق ۱۴۴۶ ع نه دوستو راتللونکے خلق دے . لکه د مند نو یوسفزي او یوسفزي قومونو د پلار ابوالفضل ابراهیم شوریاني زمانه د ۶۶۰ هـ مطابق ۱۲۶۱ ع دده دے زامن وو .

عمر ، حسین ، یوسف

د دوی اولاد ته عمرزي ، حسین زي ، یوسفزي وائي .

د عمر زوے یوسف د پښین په کوټ مند کښې وه په دغه باندې د خېل تره یوسف لور واده وه . تره هم یوسف . وراره هم یوسف د فرق د پاره د

ترۀ اولادته یوسفزی او دوارۀ اولاد ته مندړ یوسفزی وائي. دکابل نه
په نقل وحمل کښې دابراهیم شوریاني ددرے زامنو اولاد هم راغلي وو. ددے
ابراهیم والده ماجده سیده عائشه نومیده ه - ددے پلار وو شمس الدین
عبدالعزیز چه ددۀ پلار وو میران محی الدین شیخ
عبدالقادر جیلاني

دکتاب قلائد الجواهر في مناقب شیخ عبدالقادر جیلاني طبع مصر بیان دے
چه دشمس الدین عبدالعزیز د زوئ نوم وو محمد الهتاک او سیده عائشه چه
لویه عالمه محدثه او زاهده وه د عبدالله خویشکی قصوری دکتاب اخبار الاولیاء
په روایت دابوالفضل ابراهیم شوریاني ابن جلال الدین ابن سراج الدین ابن بهاءالدین
عبدالله ختنی ابن تاج الاولیاء ابوالوفا محمد ابن یوسف شان والده ماجده
وه - افغان مورخین یوسفزی او مندړ یوسفزی پیژني حسین زی نۀ پیژني
دسلطان ابراهیم شوریاني نه پس دهغۀ جانشین سلطان حسین حکمران قلات
وریے ددۀ زوئ سلطان عبدالمجید دربان آستانه رسول وو. بیا ددۀ نه پس
سلطان میرشمس الدین محمد امین سویدی حکمران قلات وو.

دقلات علاقے ته توران وائي. پښتو الفاظ دی - تور - توران ترسنی.
عربي الفاظ دی سود - سودان - سویدی ربه معنیٰ د تره کی او ترین.
محمد امین سویدی یو خواته حکمران وو بل خواته عالم - محدث قاری محقق
او مورخ هم وو. د دۀ دوه کتابونه په عربي ژبه کښې لیکلی دی.

(۱) مجمع الجواهر الکبیر في لغات الاحادیث والتفاسیر

(۲) سبائک الذهب رچه ددے نوم پښتو معنیٰ ده دسرو زرو د پانړې.

دا دواړه کتابونه په مصر او د جرمنی په لیډن کښې چاپ شوی دی. زۀ اشرافغان
دسبائک الذهب نه حوالے اخلم او ددغه حوالو وضاحت کوم.

د محمد امین سویدی په اولاد کښے .

عبدالله ابن عبدالله ابن عبدالصمد ابن عبدالغفور ابن سلطان محمد امین سعیدی حکمران قلات ابن سلطان عبدالمجید ابن سلطان شاه حسین ابن سلطان ابراهیم شوریانی دوه زامن

(۱) بایزید المعروف په بابو
(۲) شمس الدین محمد

دوارو د قبائلو په دے نقل وحمل کښے وادی سمه ته راغلی وو . دمردان د علاقه بایزی د کاټلنګ په شمال مشرق کښے دوه کلی بابوزی د بایزید بابو په نوم او شموزی د شمس الدین محمد په نوم یادیږی . دا بابوزی ، شموزی هم الله داد خیل دی علوی دی د پلار د طرف نه ګیلانی میران دی د نیا بی بی له طرف نه د بلوچستان د قلات حکمران خاندان میران - د دکن او د ګجرات د دوارو د بابی خاندان حکمرانان له دے نسله دی . دهندوستان د تقسیم په وخت کښے د دکن حیدرآباد وزیراعظم میرلائق علی خان په قام بابی وو - انتهائی خوبصورته انتهائی مدبر او قابل انسان په رشتیا میرلائق علی وو په ۱۹۵۲ء کښے زهٔ اتر افغان یوه غرمه دموتمر عالم اسلامی د مندوبینو سره ددهٔ میلمه شوے وُم - آیا د سردان خانان له دے نسله دی صرف په دے نسبت چه دوئ هم الهداد خیل دی - زمونږ د راتلونکی تحقیق نه به معلومه شی چه واقعات نو رڅهٔ دی .

بهرحال د دے نوے تول قومونه او قبائل نوی سمه وال او نوی سواتیان دی

شدید التباس

شدید ترین التباس

په دے سلسله کښے شدید ترین التباس چه تاریخی مشکلاتے پیدا کړی دی صفحه دا دے دی چه دوه مشاهیر دی .

(۱) د نوے سواتیانو نیکه بهاءالدین عبدالله ابن احمد اکا

(۲) دَ نورو سواتیانو نیکه جلال الدین احمد ابن عبدالله۔

یو عبدالله الله داد دجلال الدین احمد اکا زوئی دے قند هارے دے۔

دویم جلال الدین احمد دالله داد زوئی دے سواتے دے۔

دجلال الدین احمد اکا شجره مونږ درج کړے ده ددے احمد شجره دا ښے ده۔

جلال الدین عون الله کلک شندی ابن عبدالله الله داد ابن سلیمان ابن اسماعیل

ابن جمال الدین یوسف ابن یونس ابن ابوبکر ابراهیم ابن هارون ترین۔

درے دونږه وو علی الکزیونی ۔ هارون ترین ۔ سلیمان ثانی زامن دابراهیم کاکړ

ابن اسحاق لکی ابن یوسف شالی المعروف په ابو اسحاق شالی ۔ابن ابراهیم الدروزی

(چیل درون شام) ابن عبد الرشید قیسی (چه افغان مورخین دخپلے بے علمئ په وجه

ترے یهودی النسل قیس عبد الرشید جوړ کړے دے ۔ دده زونږه وو۔ عبدالله غورغشتی

عبدالرزاق بیټنی ۔ عبدالرشید قیسی ۔ درے واړه زامن داحمد کاکیشی ابن عبدال

ابدال چشتی)۔

هر کله چه دهارون ترین مشر نیکه ابو اسحاق شالی دے ۔ دابوبکر ابراهیم

درے زامن علی ، یونس ، محمود دبر سوات سیج بونی ته راغلل ۔

دوه کارونه اوشول

(۱) هر کله چه دوئ دابو اسحاق شالی اولاد دے ۔ علی ، یونس ، محمود چه

په کومه دره کښے اباد شول هغه ددوئ په نوم په دره شالی زی یاده شوه۔

(۲) دوئ چه په کوم کلی کښے وو دهغے نوم سیج بونی دے ۔ لیکن هر کله چه

دری شالی زی رونږه ورته راغلل دے رونږ وته سه بوجنی وائی ۔

## شاه میر سواتی

په دے خاندان کښے تاج الدین محمد ابن داود ابن محمود شالی زے دشاه میر

سواتی په نوم په ۷۲۷ھ مطابق ۱۳۲۶ء کښے دسید شرف الدین بهلول ابن موسی لودی

په بلنه کشمیر ته لاړ ۔ په کشمیر بادشاه شه ۔ دتاریخ مخزن پنجاب طبع نولکشور

جلد ۲ ۱۸۷۶ء بیان دے چه د شاه میر سواتی اولاد پلاد بیا دهغه زوئ بیا د هغوئ زوئ پوله پسے پلار په نسکه دوه سوه اته نحوس (۲۵۸) کاله حکومت کړے دے په دوئ کښے نامور حکمران سلطان سیلمان کفار شکن وو - په مخزن پنجاب طبع ۱۸۷۶ء کښے دده حکمران خاندان د ټولو سلطانانو مکمله شجره د نسب درج ده - یکی چه دده خاندان آخرینے حکمران سلطان جمشید وو - چه اکبر مغلی بادشاه د دهلی پرے په ۹۸۵ھ مطابق ۱۵۸۰ء کښے حمله اوکړله او دده حکومت ئے ختم کړ -

اثر افغان وائی د اکبر په دے کار ټول سوات د اکبر باچا برخلاف راپورته شؤ - اکبر باچا په سوات هم راغے یکن نامور سرداران او وزیران ئے پکښے قتل شول داچه د اکبر مغل مقابله ئے کووله دا زاره سواتیان په قام یوسفزئی وو او د مردان خانان دده نسله دی -

د عبدالله الهداد سواتی ابن سیلمان

څلور زامن وو - محمد، احمد، داود، یوسف

### ۷، محمد شان الله :-

دده مزار پر انوار د مردان علاقه بابزی د موضع لوندخوړ په شمال مشرقی اړخ کښے دکلی سره متصل د موضع میان عیسیٰ د لارے په ابتدا کښے دے لارے په مغربی گوښه کښے د حسن یغری بیابانی د مزار پر انوار نه جنوب مایل مشرق ته دے - قبرے پوخ دے گنبد نه لری - د مزار په احاطه کښے ئے نور گڼ مزارات دی ما اثر افغان دده د مزار دوه ځله سلام کړے دے یو ځل اتفاقی چه د لوندخوړ سید عبدالرزاق کوثر راسره وو - او دویم ځل چه دوئ عبدالرزاق کوثر ته په خوب کښے وئیلی ووچه د تخت بهائی عبدالحلیم اثر افغانی چه زما سلام له راغلے وو - ورته اووایه چه بیا راشی هغه زۀ نۀ یم پیژندلے چه ما او پیژنی - دوباره حاضر شوم - د پیره معلومه شوه چه دده نوم سید محمد شاه ن الله دے - د

پلار نوم ئے عبدالله الهداد ابن حسام الدین سلیمان دے ۔

دد ے محمد شان الله نور رونړه دی په دے ترتیب

(۲) احمد اعوان الله چه مزارئے د بوسوات په دوړبن ګاد کښے دے ۔
(۳) کمال الدین داور چه مزارئے په دوش خیله کښے دے ۔
(۴) یوسف چه مزارئے په ګدائی زو کښے دے ۔

## سلطان احمد سبحان شاه:۔

د سید محمد شان الله د مزار د سلام نه پس د کوترصاحب په ملګرتیا کښے د محمد شان الله د ارشاد مطابق د لوند خوړکی د کالج په جنوب کښے چه کومه لاره د لوند خوړ ته نوے خوړ چه د حسن بغری بیابانی د مزار په وجه ورته بګړا واقی د دے په مغرب کښے په اوچته آواره زمکه د سید سلطان احمد سبحان شاه صاحب مزار دے ۔ مقامی خلق ئے په سبحان شاه نامه یاده وی په کتاب مجمع الانساب کښے دده پوره نوم سلطان احمد دے ۔

## سلطان محمد میران شاه:۔

د سلطان احمد سبحان شاه زوئ دو سلطان محمد میران شاه دے د سلطان بهلول لودی په بلنه هندوستان ته تلے دو ۔ مزارئے په دهلی کښے دے ۔

## کمال الدین محمود:۔

دده مزار هم په دهلی کښے دخپل پلار د مزار سره دے او د دوئ دواړو پلار او زوئ مزارونه د دهلی سره نژدے چه د جمنا سیند په غاړه د عمر ملکیار متوفی ۹۵ مطابق ۱۲۹۵ ابن یوسف مهیار ابن محمد تری ابن اسماعیل وردک مزار دهغے مزار په احاطه کښے دے ۔ دا عمر په ملکیار پران یادیږی دده اولاد هم په سوات کښے دے ۔ د سوات د علی ګرامه ابراهیم پران له دے نسله دے ۔

دسلطان محمد میران اولاد




دزوجه صفیه زامن چه اولادئ صفوخیل بللے شی




دنصرت دویمه بی بی او ساکرن چه ددکن دراجه شیام راج بوره وه ـ مسه ـ
شوه نصرت چه په ۹۹۱ھ مطابق ۱۵۸۳ء کښې وادی سمه ته راغی او ساکرن ورسره وه ـ
ددواړو قبرونه د زیدی خواته په رانا ډهیری دی ددوئ زامن دی ـ

دنصرت د زوجه او ساکرن اولاد اوساخیل




(بهلول)

## احمد عون الله

ددهٔ مزار پرانوار دبرسوات د درهٔ روړین ګار په ابتدائی جنوبی حصه کښې
دموضع کاټ ایلی نه مخ په قبله دموضع سوات نه جنوب طرف غزیدلی سلسله

کوه کلک په تاریخی مقام

# کلک شندی

چه د کوه کلک په مشرقی لمن کښے دے او دغه مقام نن ورځ د دوئ په لقبی نوم عون الله بانډے اون پیلے شی۔

احمد عون الله هغه جلیل القدر انسان دے چه په پیاشت جمادی الثانی ۸۲۱ھ قمری / جولائی ۱۴۱۸ء کښے په مقام داون کښے وفات شوے دے۔ مزار پرانوارئے دد ے کلی په شمالی اړخ کښے دے۔

احمد عون دوادی سوات هغه جلیل القدر عالم دے چه په علم تاریخ علم انساب علم جغرافیه بانډے یو تاریخی کتاب ئے د

صبح الاعشی

دتیاری رڼا

په نوم لیکلے دے۔ داکتاب په مصر کښے اود جرمنی په شهر لیډن کښے چاپ شوے دے او اوس افغان ترے حوالے اخلی۔

احمد یوسفزے د درهٔ شاهی زی سواتے دهغه زمانے دے چه ددهٔ مشر نیکهٔ جمال الدین یوسف په ۷۷۶ھ کښے دسوات په دره شاهی زی کښے وو ښځلی دے په ۸۲۱ھ کښے په برسوات کښے وو۔ زمونږ هغه مورخان چه یوسفزی او منډنړ یوسفزی یادوی باید چه کله دکال ۸۵۳ھ نه پس داتلونکی نوی یوسفزی چه یادوی نو دسوات دا زارهٔ یوسفزی سواتیان هم یاد کړی خصوصاً هغه احمد عون الله چه ښځل علمی او تاریخی کتاب ئے دسوات نوم روښانه کړے دے۔

داحمد عون الله په اولاد کښے دعبد الله بودا بابا مزار د درهٔ دورین کار په مشرق مایل په جنوب حصّه کښے دهغه لارے سره نږدے دے چه دمته په منځ کښے سلبټ ته تلے ده ددے بودا بابا دنسب شجره داسے ده۔

عبد الله بودا ابن محمد ابن احمد ابن یوسف ابن ابراهیم ابن احمد عون الله

د بوډا بابا زوئ وو -

(الف) شاه پسند خان دده زوی وو شاه نظر خان المعروف په نظر بهادر -

(ب) مبارک خان دده زوئ وو عبدالصمد خان المعروف په دلیرجنگ بهادر - دا عبدالصمد دلیرجنگ بهادر او شاه نظر بهادر دواړه په دکن کښے وو - او سالار دلیرجنگ بهادر عبدالصمد خان د پښتو ژبے شاعر وو - دده څلور غزلونه د راقم الحروف (ثر افغان) سره دی دا شعر دده دے -

تو دلبر دخان همراه نهٔ کړے صمده
د رقیب له سره کله غروږ خیژی

## داود خان

---

دده مزار د مغربي سوات دکوه برچړئ په مغرب د دریائے پنجکوړه په مشرق کښے د دبولئ نوے مقام نه جنوب او د دریائے سوات په شمال کښے په مقام روش خیله کښے دے - دده د زوئ سعید مزار د دریائے سوات په شمال دکوه برچړئ په جنوب دکوز بادوان په مغرب کښے دے - دا علاقه دده په نوم په بنارک زئ کښے دے دده د زوئ جلال الدین په نوم د موضع تهانړه او لنډاکی ترمنځه جلاله نوے کلے دے - دده مزار د دے کلی په مشرق کښے د چنارانو په بنړ کښے دے - دده د بوزوړ عمرچه د جلاله او لنډاکی ترمنځه په کټ کوټو کښے وو - د وفات نه پس د خپل والد ماجد د مزار سره دفن شوے دے - دده د زوئ جنید قبر په کټ کوټو کښے د شاهراه عام په عین کناره جنوب طرف ته دے - دده دوه زامن وو - بلندخان دده قبر د شیرشاه سوری سره د صوبه بهار په سهسرام کښے دے - د جنید د زوړ عالم شاه قبر د چکدرے په مغرب کښے په دوه کلوچے اوبټ کښے په بټ نو ے کلی کښے دے - د مودان د بایزو شاه بټ خیل دده اولاد دے راقم الحروف د کمال الدین داود په اولاد تفصیلي بحث نه لری - دلته ورته مختصر اشاره اوشوله -

# جمال الدین یوسف

جد امجد خوانین ھوتی - مردان وصوابی

متوفی ۸۲۴ھ مطابق ۱۴۲۱ء په بل روایت متوفی ۸۲۷ھ

---

دا هغه یوسف ابن الهداد دے چه په تاریخ حیات افغانی صفحه ۱۶۰ کښے په انتهائی مسخ شوی شکل کښے درج شوے ده - ددهٔ دنسب شجره په دومره گنړ وحوالو دراقم الحروف اثر افغان په لاس کښے ده چه که ټولے حوالے دلته راوړم خبره به اوږده شی - یوه حواله دمردان په شمال کښے دجمال ګړهئ دخداداخیلو ده - دومره شجره ده -

دعزیزی عبد اللطیف ولادت دویم تاریخ ماه ذوالحجه بروزهفته ۱۳۵۵ھ/۱۳ فروری ۱۹۳۶ء په خانداني شجره کښے چه کوم معلومات درج دی - دا دباجوړ دعلاقه اتمانخیل دسوات دډروش خیل دسوات دتهانړے دجلال خیل دسم رانړی زی دشیرخیل دمردان دموضع جمال ګړهئ دخداداخیل دخانداني شجره وسره مطابق ده - ددے نه معلومیږی چه -

(الف) دا جمال الدین یوسف دمردان دخانانو نیکهٔ دے -

(ب) دحیات افغانی بیان غلط دے -

زما (اثر افغان) تاریخ ولادت دے ۱۹۱۰ء په دے حساب عبد اللطیف ولادت ۱۹۳۶ء زما نه شپږ ویشت کاله کشر دے - لیکن ددهٔ په دے تاریخی یادداشت زهٔ ورته دعاکوم او دتشکر په طور ددهٔ شجره دلته راوړم -

عبد اللطیف ابن عبد القدیر ابن عبدالرحیم ابن عبد الجبار ابن حاجی تیمور ابن خان شاه ابن خواجه عبد الله ابن حمز الله ابن فیض الله ابن گل محمد ابن نور محمد ابن عبد الله الهداد متوفی

۱۰۲۵ھ مطابق ۱۶۱۶ء مزار دجمال ګړهئ په مشرق کښے په الهداد خیل یا دیږی

ددهٔ ورور دے اخوند عبدالغفور چه مزار ئے دمردان په شمال کښے په اخون کلی کښے دے ۔

دالله داد متوفی ۱۰۲۵ھ مطابق ۱۶۱۶ء شجره دا ده ۔

عبدالله الهداد ابن نور الدین عبدالرحمان (مزار کانجو سوات) ابن سلیمان ۔
(مزار دموضع گوجر گړهٔ په شمال کښے دکنډی خویشکی سره متصل دشاه عالم مزار بت په اولاد کښے داحمد بت مجذوب دمزار نه په قبله په ډیری باندے د سلیمان بابا مزار دے ۔)

سلیمان ابن عبدالرزاق (مزار باجوړ علاقه ماموند) ابن خواجه خضر (مزار در تمانخیلو په علاقه کښے دکوه کیمور په شمالی لمن کښے دعلی زو دعلاقے په جنوب مشرق کښے) ابن یحیٰ چه ددهٔ مزار دباجوړ دوادی ماموند په نصف مشرقی حصه کښے په موضع تنړی کښے ددریا ئےکنګ او دبلوټ دلارے په مشرقی غاړه دے ۔

د یحیٰ ابن جمال الدین یوسف ابن الله داد ابن سلیمان نه دمشر ورور ابراهیم مزار مبارک دموضع تنړی نه په مشرق کښے دماموندو په علاقه اریازی کښے په تتر کښے دے ۔

دورکنګ نه مخ په قبله علاقه په دوه نومونو یادیږی (۱) ګکی زی (۲) اکازی او د وروکنګ نه مخ په نورخاته علاقه په اریازی یادیږی ۔ په دے علاقه کښے په یو قطار دکلو نا ے دی ۔

(الف) په مغرب کښے تنړے (۲) ددے نه نورخاته ته تتر (۳) ددے نه مخ په نورخاته تړله (۴) ددے نه مخ په نورخاته تور دے څلور مقامات په یو قطار پراته دی ۔ تور ۔ تړله ۔ تتر ۔ تنړے ۔
په تتر کښے ابراهیم او په تړله کښے ددهٔ مشر ورور اسماعیل او په تور کښے ددهٔ مشر ورور عمر اوسیده عمر مجذوب دے او ډیر لوئے بزرګ دے ۔ اثر افغان چه کله ددهٔ دمزار سلام له ورشی نو ددهٔ دمزار نه دواپسی په وخت کښے دډیر احترام

په وجه دده مزار ته نهٔ شاکوی . په پښی شا ترے واپس راځی . دده یو کرامت
تر اوسه باقی دے چه د تور . تهله تتر . متنی نه په بره توله علاقه کښے لړم
چیچل نهٔ کوی دد ے خط مستقیم نه لاندے لړم چیچل کوی او که دا لړم اوښو لے
شی او دد ے خط مستقیم نه په بره ګذار کړے شی نو بیا هم دغه لړم چیچل نهٔ کوی
دا د عمر تور بابا یعنے هغه عمر چه مزار ئے په تور کښے دے د هغه ژوندے کرامت
دے .

د ستر ابراهیم زامن دو

احمد — محمد — یونس

محمد
عثمان عرف اتمان

په حیات افغانی کښے په سالمه شجره کښے فقط دا یو نوم ئے صحیح لیکلے دے یونس
نور نومونه ئے لیکلی دی . په دے ترتیب (۱) بابو (۲) مرجا (۳) یونس
(۱) دده نوم احمد دے په بابو قره کښے وو
(۲) محمد دده پوره نوم میرزاهد دے . دده زوئ دو اتمان دده زامن وو .

اتمان

جلال الدین قاسم — نور الدین محمد غوث

**جلال الدین قاسم:**

مزار علاقه اتمان خیل دکوه شیر کښے په
جنوبی لمن کښے دماران نو ے شا کښے دروبار باجوړ
په شمال کښے دموجوده ملک عمرخان عمرخیل
دقلاله شمال طرف ته دده د زوئ یوسف دقبر
نه مخ نور ځائے دکانړو نه جوړه یوه کچه شان
چار دیواری کښے چه په مزار کښے ئے یوه ونه
د خونه ولاړه ده دمزار په توله احاطه
ئے سورے کړے دے . دده د قبر خواته نزدے

**نور الدین محمد غوث:**

مزار تهانه سوات رانی زی د موجوده تهانړه
کلی په مغرب کښے او دموجوده کالج په مشرق
کښے په یوه لویه احاطه کښے دے ورسره دده
د بی بی صاحبے سیده عائشه ګیلانی مزار دے
دده اولاد په مغربی سوات کښے دجو لاګرام
د دمیری دسم رانړی زی د ددګئی دشرخانے
د کاټلنګ دمردان دهوتی . ددکن حیدرآباد
د پنجاب دلاهور خان دی . دده داولاد شجره

په طرف دجنوب دده دزوی سید عمر
مزار پرانوار دے - عمر دباجوړ دعمرخیلو
دسوات دعمرخیر نیکهٔ دے - دده دزوی
یوسف دصوابئ دکلابټ دخانانو نیکهٔ
دے - داولاد شجره ئے داده -




سلطان احمد — محمود — محمد درویش

مزید مانی ابراهیم یوسف ددے یوسف زوی دے جلال الدین حین شاه عالم عیسیٰ خان عرف کاچو دالله دنږ دیرئ د کاچوخیلو نیکه دے -

محمود — بهرام — محمد علی اصنکس

محمد درویش — ابراهیم — محمد درویش — میان داد — د اشعارو دیوان ئے موجود دے -

محمد غوث

سعید — حبیب — رحمت — نعمت

علی شهباز — موسیٰ — عمر — علی

العروف په علی شیرچه د مورے نمرهٔ په ویخ کښے دملاکنډ ایجنسئ په تپه بائیزئ کښے دشیرخانے کلے دده په نوم دے -

بلند مزار دکن حیدرآباد — جلال مزار لاهور — هیبت خان مزار دکن حیدرآباد

دمردان دبایزو دکاتلنګ په علاقه کښے بلندئ نومے کلے دده په نوم دے - د شاه جهان په زمانه دکن ته تلے وو - تاریخی زمانه ئے ۱۰۲۲ هـ ده - دبلند خان مزار په دکن کښے په بیجاپور کښے دے -

په بلندئ کښے دبلند خان اولاد آباد دے

## جلال الدین احمد

دے دشاه جهان په زمانه لاهور ته تلے وو څه زمانه په لاهور حکمران وو

مزار مبارک ئے په تمهور کښے د کاتلنګ د بابو محمد د بایزید بابو - محمد شمس الدین په اولاد کښے د محمد شمس الدین شموزی د زوئ موسٰی امیر کلان د زوئ محمد دلیل الله د زوئ علی اکبر د اولاد سره وو - په دے وجه د جلال الدین احمد ابن شیرخان او د جلال الدین احمد ابن علی اکبر ابن محمد ابن موسٰی ابن شمس الدین محمد په نوموړو کښے التباس پیدا شوے دے او ځنے کسانو د مردان جلال الدین خان یوسفزی ترین سید له نسله د هادون ترین ته د سلطان محمد توکی ترین له نسله وئیلے دے -

د نوموړو دیوشان والی په وجه له دے قسمه التباسات پیدا کیدل عامه خبره ده -

## هیبت خان کاکړ

د مردان د خانانو د مشر نیکه جلال خان نه کشر رور هیبت خان هغه دے چه دے د خان جهان لودی سره په دکن کښے وو - د سید ناصرالدین محمود پیر سباک زوئ فرید الدین محمد هم په دے مهم کښے په دکن کښے وو - د عبدالله بودا بابا د زوئ شاه پسند خان د زوئ سید مبارک شاه دوه زامن

(۱) عبدالله الملقب په نظر بهادر - او د دهٔ نه کشر رور عبد الصمد خان المعروف په دلیر جنګ بهادر هم په دکن کښے وو -

## غیاث الدین دولت کیلانی

د غیاث الدین دولت ګیلانی لور بی بی په نور الدین محمد غوث وادهٔ وه دے بی بی شجره داسے ده -

سیده عائشه بنت غیاث الدین دولت متوفی ۹۸۹ھ ۱۵۸۱ء ابن سید عبدالقادر ثانی ابن جمال الدین محمد ابن جلال الدین احمد ابن سید سلطان عبدالرشید ابن ابراهیم ابن جعفر ابن محمود ابن بهاءالدین عبدالله ابن داود ابن جمال الدین علی

ابو صالح نصر ابن تاج الدین عبد الرزاق ابن میران محی الدین شیخ عبد القادر جیلانی

ددے غیاث الدین دولت اولاد په سوات کښے دولت زی یادیږی - ددے دولت زوئ وو قاسم المعروف په خداداد ددهٔ اولاد د مردان په جمال گرهی کښے دے - ددهٔ په اولاد کښے جلال الدین او جمال الدین او د مردان دخانانو نیکه شیرخان ثانی ابن جلال الدین دګن ته تلی وو - په جمال گرهی کښے د بونیرا بابا د نوسی عبد الصمد خان دلیر جنګ بهادر د ورعبدالهادی خان مزار د جمال گرهی نه مخ په نورخاته په شکل ننګی کښے دے - هادی خان دکن ته نهٔ وو تلے - ددهٔ زوئ اسدالله خان بیا دکن ته تلے وو ددهٔ لقب جلال الدین دے -

## سلطان محمد خان

د مردان دخانانو د نیکه جلال خان حکمران لاهور زوئ وو سلطان محمد خان دے دکن ته تلے وو - دا بیا د اورنګزیب عالمګیر زمانه وه - سلطان محمد خان د ۱۰۸۸ھ د زمانے دے -

## جلال الدین اشرف خان نظر بهادر

د سلطان محمد خان زوی وو جلال الدین اشرف خان نظر بهادر د هوتی او مردان خان ددهٔ په نوم اشرف خان خیل یادیږی - دے د ۱۱۳۲ھ د زمانے دے - دوه زامن ئے وو -

جلال الدین اشرف خان

| شمس الدین محمد شمس خان | قطب الدین زید فتح خان فاتح پانی پت |
| --- | --- |
| شهید پانی پت - لاولد ددهٔ لوریه خیل ورارهٔ شاه ولی خان وادهٔ وه - د شاه ولی خان د اولاد شجره راقم الحروف ته په لاس نهٔ ده راغلے - | ددهٔ د اولاد شجره مونږ مخکښے درج کړے ده - دخدائے رحمت دوی په ټو خانان او خصوصًا چه دخیل پلار نیکه نوم ئے ژوندے ساتلے دے یا ئے ژوند ساتی تکه میرمن ذړګی سرفراز |

بنهٔ سری لعل و یاقوت دی موندل نشی　　　　خر مهره غوندے لږ نهٔ دی ناکسان
(خوشحال)

## هیبت خان کاکړ

دموداں دخانانو دنیکهٔ جلال خان نه کښې دوه وو هیبت خان کاکړ ددهٔ
په اُفتځا راتو کښې پوهه نویه خبره داده چه کله دے دخان جهان لودی سره په کال
۱۰۲۲ سنه مطابق ۱۳ / ۱۶۱۲ سنه کښې په دکن کښې وو - نو دنعمت الله خان هروی چه د
سلطان محمد خان ابن دوست محمد خان بابړ اشترانی له اولاده وو - او دوست محمد خان
بابړ هروی په ۹۱۲ھ مطابق ۱۵۰۶ سنه کښې په هرات کښې وو - دپښتونیکو نو تاریخ ئے
لیکلے دے - هیبت خان ترین کاکړ او نعمت الله خان اشترانی بابړ دوارو په شریکه
تاریخی کتاب "تاریخ مخزن افغانی" لیکلے دے - داکتاب د

(الف) تاریخ خانجهانی په نوم او دبنګال ایشیاټیک سوسائټی کلکته

(ب) اردو بورډ پنجاب لاهور د تاریخ خان جهانی په نوم

(ج) د زرداد خان د ریاست کرولی وسطی هند پخپل کتاب تاریخ صولت افغانی طبع نولکشور ۱۸۷۶ء کښې د مخزن افغانی په نوم -

(د) ددے پښتو ترجمه دافضل خان خټک په تاریخ مرصع کښې چاپ شوے ده یکن افضل خان داصل کتاب شکل مسخ کړے دے -

## اولاد

دهیبت خان زوی وو ابراهیم خان ددهٔ دوه زامن وو ملوک خان ،
قلندر خان یکن دهیبت خان اصلی معنوی فرزند ددهٔ کتاب مخزن افغانی
دے چه ددهٔ نوم ئے ژوندے ساتلے دے -

## دسمه او دسوات افتخارات

(۱) داحمد عون الله تاریخ احمد کلک شندی دے -

(۲) د عبدالصمد خان دلیرجنگ بهادر داشعار و دیوان دے.
(۳) د تهانړے د نورالدین محمد غوث په اولاد کښے دکوزه دروش خیلے د خانانو دنیکه محمد درویش میان داد د پښتو اشعار و دیوان دے.
(۴) او د هیبت خان کاکړ تاریخ مخزن افغانی دے.
(۵) دا یو خاندان دی زاړه یوسفزی دی داادب او تاریخ خدمت ئے کړے دے.
دخدائے رحمت دِ وی په دوئی.

---



